د قرآن او حدیث په رڼا کې

# د میت مسائل

## (بشپړ او مدلل)


لیکوال

مولانا محمد رفعت قاسمي

مدرس دارالعلوم دیوبند

ژباړن

عبدالله ګل "ریان"



مکتبۂ رشیدیہ

سرکی روډ کوټه فون: ۲۶۶۸۲۵۷، ۲۶۶۲۲۶۳

**دکتاب ځانګړتیاوې:**

**دکتاب نوم: دمیت مسائل**

**لیکوال: مولانا محمدرفعت "قاسمي"**

**ژباړن: عبدالله ګل "ریان"**

**کمپوز: سواد فرهنګي ټولنه**

**کمپوزر: بشیراحمد "ریان"**

**تصحیح کوونکی: مولوي سفرمحمد "عابد"**

**دچاپ کال: ۱۳۳۱ هـ ق (۱۳۸۹ المریز)**

**خپرندوی: رشیدیه کتابخانه، کوټه**


# لړلیک

بسم الله الرحمن الرحیم

## انتساب

زه دخپلې دې پلټنې (مکمل ومدلل مسائل میت) هابیل، د آدم (علیه السلام) وژل شوي زوی ته په انتساب نیکمرغي ترلاسه کوم، چاچې دحق په خاطر ترټولو وړاندې، دمړینې جام غړپ کړ.

قَالَ لَأَقْتُلَنَّكَ قَالَ إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللَّهُ مِنَ الْمُتَّقِينَ .

محمد رفعت قاسمي
ددیوبند ددارالعلوم خادم
١۴ شعبان المعظم ١۴٢٩ هق
١٦ اګست ٢٠٠٨ دشپې مهال

## دليکوال عرض

الحمدلله وحده والصلوة والسلام على من لانبي بعده.

امابعد:

دغیر معمولي (ناروغی له امله) دځنډ نه وروسته داده الحمدلله یوویشتم کتاب (مکمل ومدلل مسائل میت) ستاسو په خدمت کې دی. په دي کې دناروغ دپوښتنې اداب او فضائل، دمړینې دشیبې احکام او مسائل، ترمړینې وروسته غسل، کفن، دجنازې دپورته کولو او په اوږو اېښودلو مسنونه طریقه، عامه هدیره، وقف شوي هدیره، مملوکه هدیره، دمخلوطې هدیرې مسائل، دجنازې لمونځ به څوک ورکوي، دامامت حق دچا دی؟ څوک دجنازې لمونځ ورکولای شي؟ دخښولو مسنونه طریقه، ترخښولو وروسته مسائل، دمړي اهل ته به ډوډۍ څوک ورکوي، څو ورځې او څوک یې جوړولای شي، دثواب رسیدلو مسنونه طریقه، دفون، لیک، جلسې او دنورو په ذریعه تر مړینې وروسته تعزیې ته حاضریدل. دمیرمنې عدت، دمړه شوي دلمانځه، روژې، زکوة او حج او نورو دفدیې مسایل.

لنډه داچې دمړینې له نښو رانیولې، دثواب ببښلو، دقبرونو د زیارت نژدې تولې اړینې مسئلې پکې شته. داټول دالله تعالی فضل اوکرم دی او ددارالعلوم او ددارالعلوم دمفتیانو برکت او ثمره ده.

الله تعالى دي دنورو پخوانيو کتابونو په څېر دي ته هم په خلکو کې دمنلو درجه ورکړي. دمړینې او وروسته ترمړینې دي راسره دفضل، کرم او بخښنې معامله وکړي.

أنت وليّي في الدُّنيا وَالآخرَة تَوَفَّني مُسلِمًا وَأَلْحِقْني بِالصَّالِحينَ.

آمين يا رب العالمين.

محمدرفعت قاسمي.. ذدیوبند ددارالعلوم خادم

۱۴ شعبان المعظم ۱۴۲۹ هق

۱۶اګست ۲۰۰۸ دشپې مهال



د دیوبند ددارالعلوم دشیخ الحدیث او صدر المدرسین فقیه النفس مولانا مفتي سعیداحمد صاحب مدظله:

## تقريظ

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ والصلوٰة والسلام على عبده ورسوله الكريم محمد رحمة للعلمين وعلى آله واصحابه اجمعين.

اما بعد: ماته دخوشحالي ځای دی چې، محترم ورور، د دیوبند ددارالعلوم استاذ، مولانا قاري محمدرفعت صاحب د(میت) مفصل احکام ترتیب کړي دي. نوموړی ماشاءالله بریالی دی، دهغه په قلم ډیرکتابونه لیکل شوي دي او په عام او خاصو کې مقبول دي.

له همدې امله، پوره هیله ده چې داکتاب (مکمل ومدلل مسائل میت) هم هغسې بلکې ترهغوی لابنه شي، ځکه انسان هره راتلونکې ورځ دپرمختګ پړاوو نه وهي او دښیګڼو لورته په مخ ځي.

دعا کوم چې همدا کتاب هم دخدای تعالی په دربار کې دقبول شرف حاصل کړي او امت ته یې فیض ورسیږي.

کتبه:

سیعداحمد عفی الله عنه پالن پوري

خادم الحدیث دارالعلوم دیوبند.

ددیوبند ددارالعلوم دمفتي مولانا محمود حسن بلندشهري:

## تقریظ

الحمدلله نحمده ونستعينه ونعوذ بالله من شرور انفسنا ونشهد ان لااله الا الله وحده لا شريک له، ونشهد ان سيدنا محمدا عبده ورسوله، ارسله الله تعالى الى كافة الناس بشيرا ونذيرا وداعيا الى الله باذنه وسراجا منيرا .

امابعد :دمړي او دهغه اړوند په شرعي احکامو مشتمل کتاب (مسائل میت) مي توري په توري وکوت .په حقیقت کې دادټولو مسلمانانو لپاره ګټور بلکې دااهل علم کسانو لپاره لا هم غوره ډالۍ ده.له مستندو حوالو سره ،دشریعت حکم معلومیږي.دفتاواوو اصل کتابونو ته هم په اسانۍ سره رجوع کیږي.الله تعالی دي دکتاب مؤلف (مولانا قاري محمدرفعت صاحب مدظله) او دهغه مرستندویانو ته ښه بدل ورکړي، دټولو لپاره دي داکتاب دآخرت ذخیره وګرځوي او ددعاوو په قبول دي ونازوي او له ټولو فتنو څخه دي خوندي ولري.(آمین)

هذا ماكتبه احقر الزمن العبد محمود الحسن بلند شهري غفرالله له ولوالديه واحسن اليهما واليه . خادم التدريس والافتاء جامعه دارالعلوم ديوبند.

۱۰ ذي الحجه ۱۴۲۹ هـ يوم ثلثا قبيل صلوة العصر.



دمولانامفتي زین الاسلام قاسمي صاحب :

## تقریظ

حامداً ومصليا ومسلماً :

درانه ملګري محترم مولانا قاري محمدرفعت قاسمي صاحب دام فیضه وعم نفعه ته دي الله تعالی نیک اجراو بدل ورکړي،د خپلو مطبوعاتو په لړ کې په یوویشتم کتاب (مکمل ومدلل مسائل میت) یې هم دنورو کتابونو په څیر دفهقي اوفتاواوو له مستندو کتابونو څخه دمیت په اړه هر ډول جزیات رایوځای کړي دي.ځینې ځایونه یې په خپل قلم څو کرښې ګټور توضیحات لیکلي دي.ما دامجموعه له پیل څخه ترپایه وکتله ،هره مسئله په معتمدو حوالو ښکلې شویده ، په استناد کې یې کومه خبره نشته ،په پوره ډاډ سره داخبره کیدلای شي چې داد مسجدونو داامامانو لپاره خوراګټور کتاب دی.

دعاکوم چې داکتاب هم دالله تعالی په دربار کې دعام مقبولیت شرف ولري او امت ته یې برکت ورسیږي.

ددرویشانو دپښو خاوري زین الاسلام قاسمي .

## په ناروغتیا کې د درمل او دعا حکم

کله چې کوم مسلمان ناروغ شي ، هغه او خپلوانو ته يې لازمه ده چې د ناروغي علاج يې وکړي، کوم داکتر ،ماهر يا بل چاته دې ورشي. ځکه په حديث شريف کې راځي:

تداوو عبادالله فان الله تعالى ما خلق داء الا وقد خلق له دواء لا السام والهرم.(مشكوة شريف ج١ ص ٣٨٨ او ابوداود شريف ج٢ ص٥٣٩)

ژباړه : دالله بندګانو ! علاج وکړئ،بيشکه الله تعالى چې څومره ناروغۍ پيدا کړي دي دهغوی دوايې هم پيدا کړي ده خو نه دمرګ او زوړتوب لپاره.

په بل حديث شريف کې راځي :

[ لكل غم فرح وكل داء دواء.]

ژباړه :(دهر غم لپاره خوشحالي شته او دهرې ناروغۍ لپاره دواء.)

يعني الله تعالى چې څومره ناروغۍ پيدا کړي دي، دهغوی دلرې کولو لپاره يې دواوې هم پيدا کړي دي چې ددې ناروغيو دعلاج خاصيت يې پکې ايښې دی.

دناروغيو په درملنه کې غوره داده چې اعتدال پکې مراعات شي، ماهر داکترته چې له خدايه ويريږي او ښه خُلق ولري، مراجعه کوئ. ددرملني کار ژر ،ژر مه بدلوئ، ددوا تر معقول اثر پورې پاته کيږئ، ديوه مشير په تدبير باندې اکتفا کوئ. ترڅو چې امکان ولرې په درملنه کې داسې څه مه استعمالوئ چې هغه حرام وي. ځکه الله تعالى په حرام او



ممنوع شيانو کې شفاء ايښې نه ده. لکه په حديث شريف کې چې راځي:

ماجعل الله شفاء كم فيما حرم .(بخاري ج ٢ ص ٨٤٠)

په حرامو شيانو کې الله تعالى ستاسو لپاره شفا ايښې نه ده ، خو که کوم حاذق او ماهر طبيب دکوم ممنوع او حرام شي په هکله داپريکړه وکړي چې ددې ناروغ لپاره په دې کې شفاء شته ،له هغه پرته يې درملنه نه کيږي، شريعت په داسې څه کې دځان ژغورلو اجازه ورکړې ده. ددې کار په کولو دې مريض او دهغه خپلوان له خپلې دې ګناه څخه توبه وکړي او ډير استغفار دې ووايې،ترڅو الله تعالى په ټولو رحم وکړي ، لکه په قرآن کريم کې چې ارشاد دی :

[واستغفروا الله ان الله غفور رحيم.]

(له الله تعالى څخه ښنه وغواړئ، بيشکه هغه ښونکی او مهربان دی.)

په حديث شريف کې دي :

توبوا الى الله قبل ان تموتوا.(ابن ماجه ص ٧٨)

(تر مړينې وړاندې په توبه کولو کې بيړه وکړئ.)

دګناوو ډيروالی، دمنهياتو او محرماتو ارتکاب او دحق ضايع کول هم دناروغيو سبب ګرځي ، له همدې امله په ناروغي کې توبه او استغفار کول ضرور دي. په حديث شريف کې راځي :لكل داء دواء و دواء الذنوب الاستغفار.

هرې ناروغۍ ته درمل شته، دګناهونو درمل استغفار دی.
داهم په یاد ولرئ چې ځیني خلک دخطرناکو ناروغیو له دواءاو دعا له نتایجو څخه نا هیلي کیږي ،دشریعت خلاف شیان کوي ،په منهیاتو او حرامو کې واقع کیږي. دشرع خلاف نذر ، جنتر منتر ،سحر او جادو کوي. داسې تدبیر نه داچې یوازې حرام دی بلکي ګټور هم نه دی. نو مسلمانانو ته ضرور ده چې هغوی ددې بې پایښته ژوند لپاره په داسې کړو، وړو خپل دین او ایمان برباد نکړي ،بلکې ددې لپاره دخاتمې دخیر دعا وغواړي او غوره داده چې دناروغۍ دزیاتوالي په صورت کې مستحقو خلکو ته صدقه او خیرات ورکړي ،دمسکینانو او بې وزلو دعاوې وګټي. په حدیث کې راځي :

[تداووا مریضکم بالصدقه.]

دخپلو ناروغانو درملنه په صدقه سره وکړئ.

درسول الله صلی الله علیه وسلم لارښوونه ده :

لاترد البلاء الا الصدقة. صدقه بلاوې لرې کوي.

همداسې په هر مسلمان باندې فرض دی چې په خپل ژوند کې داخرت دتوښې دبرابرولو خیال وساتي. دافرض خورا مهم دی.ځکه ژوند بې پایښته دی یوازې دساه په پورته کښته کیدلو پورې ژوند تړلی دی، امکان لري په خورا معمولي علت یا ناروغۍ سره دساه پورته کښته تلل راتلل ختم شي او ددنیا او دین ټولي هیلي پای ته ورسیږي.نو هر مسلمان ته لازمه ده چې هغه داخرت انتظام وکړي.که بدمرغي وي او



ددې ژوند په ډیرو کارونو کې راګیر شي او دې لوری ته پاملرنه ونلري ، دناورغي په شپو ورځو کې که یې عقل او حواس په ځای وي نو دې لورته متوجه شي ، که شتمن وي، د خپلو بې وزله خپلوانو ،دوستانو، ګاونډیانو او دلویدلو خلکو مرسته دې وکړي ،په نیکو کارونو کې دې شتمني ولګوي.دوارثانو دحق خیال دې وساتي .له خپل حیثیت سره سم دې دخیر په لګښتونو کې برخه واخلي .په دې حدیث شریف دې عمل وکړي.

خیرالمال ما انفق في سبیل الله .

غوره شتمنې هغه ده چې دالله تعالی په لار کې ولګیږي.

## دمړیني دبستري حکم

انساني ژوند ددنیاوي اړتیاوو له امله په ډیرو ناخوالو کې تیریږي، ځیني وختونه خو ،اړتیاوي انسان دبغض او کینې دې حد ته ورسوي چې ورته جایزې بریښي. مسلمان ته چې شریعت حکم کړی دی ،نو که کله داسې پیښ شي چې له کوم خپلوان ،دوست ،ګاونډي یا کوم بل مسلمان سره ورته څه زړه بداوي پیدا شي ، تر دري ورځو ډیر دې په زړه کې کینې او کرکي ته ځای نه ورکوي،څومره چې کیدلای شي جوړه دې کوي.دافسوس ځای دادی چې موږ دشریعت دنورو احکامو په څیر، دې حکم ته هم شا کړي ده. ډیر کسان په کینه ،حسد ،کبر ، غرور ،ځان ښودنه او ریا اخته دي. که دژوند مصروفیتونه ،ځان غوښتنه ،دخوندونو او سیالۍ جذبات

ورته دارام او راحت په وخت کي دا اجازه نه ورکوي چي داناروغي له زړه څخه وباسي ،نو انسان ته لازم دی چي مړيني ته په نږدي والي کي ، دناروغي په شپو کي داناولي شيان له زړه څخه لري کړي.دهغو کسانو خوشحالي ترلاسه کړي چي دارامي په وخت کي يي کړولي وي.

په دي لړ کي دمريض لپاره تر هرڅه وړاندي دا فرض دی چي دهغه عزيزانو ،دوستانو ،ګاونډيانو ،خدمت کوونکو او عامو مسلمانانو خوشحالي ترلاسه کړي ،څوک چي يي کړولي وي، کينه يا بغض يي ورسره وي،هغوی ته عذر ووايي.

په داسي حالت کي چي انسان دناروغي يا مړيني په بستر پروت وي، دعامو خوشحالول دده بار سپکوي.دده ټپي او مړواندی زړه ورسره غوړيږي.ناروغي يي تخفيف پيدا کوي يا مړينه ورباندي اسانه کيږي.له دي سره ،سره يو مسلمان چي دناروغي په بستر پروت وي په دي هم غور وکړي چي دده دلاسه چاته تکليف رسيدلی دی، دده دژوند په مصروفيتونو کي دچا حق ضايع شوی دی.په دي توګه که دغسي څوک ورته ياديږئ.له هغوی څخه دخپلو تيروتنو ببښنه وغواړي او په معافي او ببښنه غوښتلو کي دشرم احساس ونکړي. که يي وس وي دهغه زيان بدل دي ورکړي، دچا حق چي يي ضايع کړي وي هغه ورته تلافي کړي او که وس ورسره نه ؤ نو معافي دي ورڅخه وغواړي. ځکه شريعت مسلمانانو ته وايي چي حق ضايع کول خورا بد ګناه ده.د هغه



چا چي حق يي ضايع کړی دی،که يي هغه په خپله معاف نکړي نو الله دده جرم او ګناه نه ببښي.

نو مسلمان ته لازمه ده چي دچا حق ضايع نکړي، که داسي کومه ګناه ورڅخه وشي ،نو په دي ژوندکي دي تري دبښلو ووايي، ترڅو په اخرت کي يي له پوښتني خلاص وي.

موږ وعده کوو چي انشاء الله بيا به دعباداتو او فرايضو له اداء کولو سره ،سره معاملي هم سموو، دخدای مخلوق ته به ګټه رسوونکي کيږو او پاته ژوند به له شريعت سره سم تيروو.له بديو توبه کوو بيا به دخدای دبندګانو دتکليف رسولو څخه ځان ساتو.له هر هغسي عمل څخه به لري اوسو کوم چي پکي چاته دناحق تکليف رسولو ويره وي.

الله تعالی دي زموږ توبه قبوله کړي او په نيکو خلکو کي مو دي شامل کړي.آمين . محمد رفعت قاسمي.

## په اسلام کي دناروغ پوښتنه کول

دناروغ پوښتنه ،تسلا او دهغه خدمت،رسول الله صلی الله عليه وسلم دلوړي درجي نيک عمل او منل شوي عبادت بللی دی.په مختلفو طريقو سره يي ددي ترغيب کړی دی.درسول الله صلی الله عليه وسلم خپل معمول داوو چي دناروغ به يي پوښتنه کوله ،هغه ته به يي داسي خبري کولي چي ورباندي تسلا به يي کيدله او غم به يي سپکيده.دالله تعالی نوم او کلام به يي وايه او په مريض به يي دم کاوو.نورو ته به يي هم دغسي تلقين کاوو.

ابوموسي اشعري رضی الله عنه ،د رسول الله صلی الله علیه وسلم یو ارشاد روایت کوي:

په وږیو خواړه وخورئ، د ناروغانو پوښتنه وکړئ، کوم کسان چي ناحقه بندیان شوي دي، دهغوی د خلاصون هڅه وکړئ. (صحیح بخاري)

له ثوبان (رضی الله عنه) څخه روایت دی چې، رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ارشاد وکړ:مؤمن بنده چي دایمان خاوند وروره پوښتنه وکړي، تر بیرته راتلو ګواکي هغه د جنت په باغ کي واوسید.

ابوهریره رضی الله عنه روایت کوي، رسول الله صلی الله علیه وسلم لاربښوونه وکړه :څوک که دکوم ناروغ پوښتنه وکړي، دالله له لوري په آسمان کي یو منادي غږ وکړي :ته مبارک،ناروغ ته ستا ورتګ مبارک، داچي تا داکار وکړ،په جنت کي دي ځان ته کور جوړ کړ.

(معارف الحدیث ج ۳ ص ۴۴۷ د ابن ماجه په حواله.)

## دناروغ عیادت(پوښتنه) کول

که دچا کوم خپلوان او یا دوست ناروغ شي، دهغه دلیدلو او دهغه داحوال معلومولو لپاره ورتګ مستحب دی ، دي ته عیادت یا دناروغ پوښتنه کول وایي.

که دناروغ کوم خپلوان یا داحوال معلومولو څوک نه و، نو په داسي حالت کي دهغه ناروغ خدمت په هغو مسلمانانو چي ورباندي خبر دي کفایي فرض دی.

دعیادت دفضیلت او دهغه ثواب په هکله ډیر احادیث راغلي



دي ، زه هغه ټول نه بیانوم، دوه دري لنډ احادیث به بیان کړم.

دصحیح مسلم په یوه حدیث کي دي چي، الله تعالی به دقیامت په ورځ ووایي :ای زما بنده!زه ستا پرودګاریم.زه ناروغ وم تا زما پوښتنه ونکړه.بنده به عرض وکړي:

ای خدایه! ته دعالم پرورګاریې، ستا عیادت څرنګه کیدلای شي؟ (یعني ته نه ناروغه کیږي) ارشاد به وشي.فلاني بنده مي ناروغه ؤ،تا دهغه عیادت ونکړ.که ته دهغه عیادت ته ورغلی وای زه به له هغه سره وم.

نبوي ارشاد دی :څوک چي سهار دکوم ناروغ عیادت وکړي، دهغه په هکله تر ماښام پوري اویازره ملایکي دمغفرت دعاوي کوي او څوک چي ماښام عیادت وکړي، د هغه لپاره تر سهاره اویازره ملایکي استغفار وایي.

(سفر السعادت)

"څوک چې دخپل مسلمان ورور عیادت وکړي، هغه ته په جنت کي یو باغ ترلاسه کیږي."(ترمذي او بخاري ج ۱ ص ۱۶۵)

رسول الله صلی الله علیه وسلم خپلو غوره اصحابو ته داحکم کړی دی چې، تاسو دناروغ پوښتنه کوي او له جنازي سره یې ځي.(صحیح بخاري شریف،علم الفقه ج ۱ ص ۱۸۳)

مسئله :له پیسو اخستلو پرته له کوم بیمار سره یا قبرته نژدي تلاوت کول صحیح دي.داجرت اخستلو لپاره تلاوت کول حرام دي، اجرت اخستونکي او ورکوونکي دواړه ګنهګار دي.ثواب ورته نه رسیږي. (فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۲۴۸)

## دعیادت آداب

دعیادت په آدابو کې دادي چې اودس وکړي، فقط دثواب او دالله تعالی دخوشحالي دترلاسه کولو لپاره ورشي، له بیمار څخه دحال پوښتنه وکړي، تسلا ورکړي، هغه ته دروغیدلو هیله پیدا کړي او دناروغي چې کوم ثوابونه په حدیث کې راغلي دي هغه ورته ووایي. دروغتیا دعا ورته وکړي او له هغه څخه هم دځان لپاره ددعا غوښتنه وشي، له ناروغ سره تر ډیره وخته نه کښیني، که یي ناروغ په ناسته خوشحاله وي نو بیا ډیر کیناستل ورسره غوره دي. (شرح سفر السعادات)

درسول الله صلی الله علیه وسلم دامبارک عادت ؤ چې که به یي کوم خپلوان ناروغ ؤ، د هغه عیادت ته به یي تشریف وروړ، دناروغ له سر سره به کیناست، دهغه دحال پوښتنه به یي کوله او ویل به یي طبعیت دي څرنګه دی او زړه مو څه شي غواړي؟ که به ناروغ څه وغوښتل او ورته زیانمن به نه وو دهغه شي دورکړي امر به یي کاوو او خپل ښی لاس به یي د ناروغ په بدن کښیښود او دعا به یي ورته کوله. کله به یي دا الفاظ ویل: **اللهم رب الناس اذهب الباس واشف انت شافي لاشفاء الاشفاءک شفاء لایغادر سقما.**

ډیروخت به یې دري ځله دعا کوله: ای الله! دټولو خلکو پروردګاره! ناروغي تري لري او روغتیا ورکړي. ته صحت ورکوونکی یي او صحت هغه ده چې ته یي ورکړي، ده ته



صحت ورکړې چې کومه ناروغي یي پاته نشي.

له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه دا هم منقول دي چې دغیر مسلم ناروغانو عیادت یي کړی دی. یوه یهودي ځوان درسول الله صلی الله علیه وسلم خدمت کاوو، کله چې ناروغ شو، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم یي عیادت ته تشریف یووړ. هغه ته یي دمسلمان کیدلو لاربښوونه وکړه، دهغه نیک مرغي وه چې مسلمان شو.

کله چې یي کاکا، ابو طالب ناروغ شو، هغه مشرک ؤ، رسول الله صلی الله علیه وسلم یي عیادت ته ورغی، له هغه څخه یي وغوښتل تر څو مسلمان شي، خو دازل کاتب یي دانیک مرغي په برخه کي لیکلي نه وه او ددي لاربښووني له تعمیل څخه بي برخي پاته شو.

له همدي امله د ډیرو علماوو رایه داده چې عیادت د اسلام په حقوقو کې نه ده، بلکي دصحبت په حقوقو کې ده. له چا سره چې یي ملاقات شوی وي، د هغه عیادت مسنون دی، که هغه مسلمان وي او که غیر مسلمان.

(شرح سفر السعادات، علم الفقه ج ۲ ص ۱۸۴)

مسئله: مستحب دادي چې مړه کیدونکي د خپل ځان په هکله په الله تعالی باندي نیک ګمان وکړي. ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد کوي: [دمړیني په حال کي ضروري ده چې انسان په خپل حق کي په الله تعالی باندي نیک ګمان وکړي چې هغه را باندي رحم کوي او ګناه مي راته

معافوي.]

په بخاري او مسلم کې دي چې :"الله تعالی وايي :زما په هکله چې زما بنده څرنګه ګمان کوي،زه ورسره هغسې معامله کوم." (کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۰۹)

مسئله :تر مړيني وروسته دې مړی داسې ځای کښېښودل شي چې هلته خلک وي،میت دې یوازې نه پرېږدي.که ورسره کښيناستل ستونزمن وي، لکه روغتون یا نور ځایونه،لرې دې کښيني په تسبيح او تهليل دې مشغوليږي او د مړي لپاره دې دمغفرت دعا کوي.(فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۱۱٦ ، درمختار ج ۱ ص ۷۹۸)

مسئله :که د چا د مړينې خبره واوريدله شي يا له کوم مړي سره نژدې وي، که هغه مسلمان وي او که غیر مسلمان،د هغه په ليدلو دې ورته خپله مړينه يادیږي او ورته غوره الفاظ دادي :انا لله وانا اليه راجعون.(فتاوی محموديه ج ۲ ص ۴۱۴)

مسئله :که د مړينې نښې څرګندې شي ،حاضرين دې د شهادت کلمه په لوړ اواز او دیاسين سورة ولولي. څوک چې دمړي ستر ګې ورپټوي په لوړ غږ دې ووايي :بسم الله وعلى ملة رسول الله . په جامه کې تر پټولو وروسته په ورو ډول په تلاوت مشغولیدل ثابت دي .

(فتاوی شامي مع رد المحتار ج ۳ ص ۷۸-۸۵ ،احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۲۵ ،فتاوای هندیه ج ۱ ص ۱۵۷ طحطاوي على المراقي ص ۳۰۸ ،کبیري ص ۵۷٦ ،بهشتي زيور حصه ۲ ص ۵۲.)

.........

........



## داسلام ستر احسان

مړينه په يقيني توګه راتلونکې ده ، کوم وخت يې معلوم نه دی، له همدې امله مسلمان ته مناسب داده چې هيڅ وخت ورڅخه غافل نشي، تل يې په ياد ولري او دآخرت دسفر لپاره تياري وکړي ، په تيره که ناروغ وي نو خپل دين او ايماني حالت دې سم کړي اوله الله تعالى سره د خپل تعلق دصحيح کولو دې ډير فکر کوي. دنورو وروڼو دخدمت ،همدردي او دغم دسپکولو دښو يادولو هڅه دې کوي. دالله تعالى دنوم او کلام په ويلو دې ورباندې دم کوي،دصحت او روغتيا دعا دې کوي.له هغه سره دې داجر او ثواب او دالله تعالى درحمت خبرې کوي.په تيره که وپوهيږي چې ناروغ په ښکاره دښه کيدلو نه دی او داخرت سفريې نژدی دی نو دهغه زړه دې دالله تعالى لورته متوجه کوي، او دايمان دکلمې دیادونې دمناسبې طريقې کوشش دې کوي.کله چې مړينه راشي،اقارب دې له صبر څخه کار اخلي،له فطري غم او زحمت سره دې مړينه دالله تعالى پريکړه وګڼي او دوفادار بنده په څير دې دتسليم سر ټيټوي.دالله تعالى له کرم څخه دې ددې صدمې او غم په بدل کې داجر او ثواب اميدلري.هغه ته دې دعا کوي . په ژبه او عمل سره دې دمړي دخپلوانو او کورنيو غم خواري او تسلاء کوي ، دهغوی دغم دسپکولو کوشش دې کوي،انشاء الله تعالى دخدای جل جلاله په وړاندې به داجر څښتن وي.(معارف الحديث ج ۳ ص ۴۳۵)

داچې داسلام په مقدس شریعت کې له خپلو دیني ورونو سره ښه سلوک او احسان او هر ډول مراعات یو ستر شی ښودل شوی دی، شریعت داغواړي چې همدا د دیني ورورګلوۍ او دمیني لړۍ په مړینه غوڅه نشي. له همدې امله د رسول الله صلی الله علیه وسلم دامبارک عادت ؤ چې کله به کوم مسلمان له نړۍ څخه لاړ، له هغه سره به یې ډېر احسان کاوو او کوم شیان چې دقبر او قیامت لپاره به ګټور وو دهغوی کوشش به یې کاوو او دهغه له خپلوانو سره به یې هم غوره سلوک کاوو.

داسبب دی چې دجنازې لمونځ چې په حقیقت کې دمړي لپاره دمغفرت دعا ده، په مسلمانانو باندې د الله تعالی له لوري فرض شوی دی او دمړي پاکول او په ښه اهتمام سره یې تر وروستني منزل پورې رسول یو لازمي امر بللی دی.

داپه حقیقت کې دمړي دحقوقو رعایت له ناروغي تر وروستي وخت پورې آن تر هغه لا وروسته چې په اسلام کې دي، په بل کوم مذهب کې یې اثر هم نشته. که دچا دلید سترګې روښانه وي، په دیني معاملاتو کې دقدر په سترګو ورته کتلو، ورباندې پوهېږي. (علم الفقه ص ۱۸۳)

## دمړینې دمهال مسائل

مسئله: دسلفو تعامل او دخلفو توارث دادی کوم چې هدایې غوره کړي دي. چې دمړینې داثارو په ښکاره کولو دې مړ کیدونکي ستوني ستغ کړي او مخ دې دقبلې لور ته واړوي، دنبوي احادیثو او فقهي دلائلو دواړو دا غوښتنه ده.



په ښې اړخ پرې ایستل قید په کوم حدیث او یا په اثر کې په صراحت سره نشته، نو ښه طریقه داده چې مخ په قبله له الاستلقاء (ستونې ستغ څملول او مخ قبلې ته کول) سره وي. یا چې یې په هر صورت سهولت وي ورباندې عمل وشي. په دواړو کې یو هم دسنت خلاف نه ده.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۴۲ – امدادالاحکام ص ۸۱۱)

داټول صورتونه هغه مهال سنت دي چې ناروغ ته تکلیف نه وي، که هغه ته تکلیف وي نو څرنګه چې ناورغ ارام وي هغسې دې څملول سي. (بحرالرائق)

مسئله: که میت (مړی) بالغ وي او که نابالغ، په هر صورت کې د نزع په مهال یسن ورته اورول مستحب دي.

(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۱۳، ردالمحتار ج ۱ ص ۷۹۷)

مسئله: دمړینې له وخت سره نژدې مستحب دادي چې کوم خپلوان یا دوست یا بل څوک، هغه تلقین کړي، یعني دهغه تر څنګ په لوړ غږ کلمه طیبه ووایې، ترڅو یې ناروغ واوري او په خپله یې هم ووایې او دهغه زیري وړ وګرځي چې په صحیح حدیث کې راغلي دي: "دچاچې وروستنۍ خبره لا اله الا الله وي جنت ته داخلیږي. خو ناورغ ته داسې نه ویل کیږي چې کلمه ووایه. ځکه دناروغۍ دشدت یاد حواسو دخرابتیا له امله دهغه له خولې څخه انکار را ونه وزي. دداسې ناروغ ترڅنګ دیسن شریف تلاوت کول مستحب دي. په حدیث شریف کې دي:

دکوم مریض ترڅنګ چې حدیث شریف تلاوت کیږي، دهغه
مړینه ښه وي، په قبرکې ورته خوشحالي وي او دقیامت په
ورځ تازه راپاڅي. (کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۰۹)

په وروستنۍ وخت کې دنیکو او پرهیزګاروخلکو موجودیت
ورسره غوره دی. دهغوی په برکت رحمت را نازلیږي. (عالمګیري)

مسئله: په وروستنۍ وخت کې له مریض سره ښه بوی
لرونکی شی ایښودل یا لوبان اوعود په اور ایښودل مستحب
دي.

کله چې یې روح لاړه شي، سترګې دې په نرمۍ سره بندې
کړای شي او زنې دې په پاکه جامه ورته وتړي. داسې چې تر
زنې لاندې، دواړو لورو ته په سرپورې وتړل شي. اعضاء ورته
سم شي، په صحیح حالت وغزول شي بیا چې یې غسل،
تکفین او دجنازې لمونځ څومره ژر کیدلای شي، وشي او دفن
کړای شي. (علم الفقه ج ۲ ص ۱۸۵ - امدادالاحکام ج ۱ ص ۱۴۲)

مسئله: ترمړینې وروسته دپښو ګوتې سره نژدې وتړلې شي،
پوندې یې سره لرې نه شي. بیا ورباندې یې کوم څادر وغوړول
شي. (بهشتي زیور ج ۲ ص ۵۱)

مسئله: له مړه کیدونکي سره که له، لا اله الا الله سره، محمد
رسول الله وویل شي، هم پروا نلري. که یوازې دلا اله الا الله په
تلقین اکتفا وشي، هم جواز لري. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۴۴
، ردالمحتار ج ۱ ص ۷۹۵ په حواله، کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۰۸)



مسئله: که هغه یو ځل کلمه ووایي او په خوله شي، بیا دې
دا هڅه نه کیږي چې هغه کلمه ویل جاري ولري. ځکه مطلب
دادی چې وروستنۍ خبره یې چې له خولې راووزي هغه
دکلمې ویل وي. خو که ترکلمې وروسته بیا کومه دنیایي
خبره وکړي بیا دې دکلمې تلقین وشي چې وي وایي بیا ئې
بس کړي. (بهشتي زیور ج ۲ ص ۵۱)

مسئله: دنزع په حالت کې مړه کیدونکي ته اوبه ورکول
مستحب دي. ځکه دنزع په مهال دتندې زیاتوالی وي او
داوبو ورکول له صحابه وو څخه هم ثابت دي.
(امدادالاحکام ج ۱ ص ۸۱۸)

مسئله: دمیرمنې دنزع په وخت یې په لاسونو نوکریځې
ایښودل نه مسنون دي او نه صحیح، بلکې ناجایز دي.

مسئله: دمړه کیدونکي په وړاندې دې داسې خبره نه کیږي
چې زړه یې ددنیا لورته میلان پیدا کړي، ځکه داله دنیا څخه
دبیلتون او دالله په دربار کې دحاضریدلو وخت دی.
(فتاوی دارالعلوم ص ۲۴۵، درالمحتار ج ۱ ص ۸۰۳ په حواله، بهشتي زیور ج ۲ ص
۵۱ کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۰۷)

## ایا مړکیدونکی باید وصیت وکړي؟

پوښتنه: نن سبا چې دچا په انتقال، وارثان یې کوم خرافات
ترسره کوي، مثلاً دښکاره کولو رواج یا نورڅه، ایا مړی هم
ورباندې ګنهګاره کیږي؟

ځواب: په مړینه ډیر منکرات رواج شوي دي، لکه:

۱- دمړي دمخ ښکاره کول. ۲- دمخ ښــــکاره کولو لپا..

جنازه څو ساعته ځنډول.
۳- دخپلوانو او دوستانو لپاره دجنازې لمونځ ځنډول.
۵- دمړي عکس اخستل. ۶- عکس یې په اخبارونو کې خپرول. ۷- جنازه له یوه ځایه بل ته وړل. ۸- دجنازې لمونځ څو ځلې کول. ۹- غائبانه دجنازې لمونځ کول. ۱۰- له عامې هدیرې ګوښه ښخول. ۱۱- دقبر خوا وشا دیوال راګرځول. ۱۲- دثواب په بهانه دسنت خلاف اجتماع. ۱۳- تعزیتې (دفاتحې) جلسې. ۱۴- دمړي په سوانح (صفت) کې غیر واقعي شیان خپرول او نور...

نن سبا ددې منکراتو لمن خورا پراخه شوې ده، آن علماء او صلحاء پکې اخته دي، دمشهورو مذهبې مشرانو په جنازو کې دامنکرات څو ګونه ډیر لیدل کیږي.

په داسې حالاتو کې که چاته دا ویره وه چې دده په مړینه بې فکره او له اخرت څخه بې خبره، ددنیا دنوم او شهرت وږي پاته کسان، نالایقه معتقدین، ناخلف خلفاء او ددین په جامه کې بې دینه خلک، په ده باندې داسې ظلمونه کوي او تر مړینې وروسته یې داسې رسوا کوي، نو وصیت کول وربانديې واجب دی چې داسې ممنوعات دې هیڅکله نه وي. تجهیز، تکفین، دجنازې لمونځ، دثواب لپاره کارونه دې ټول دسنت مطابق وکړای شي.

که داسې وصیت ونکړي سخت ګنهګار دی او دعذاب به مستحق وي. دصحیح بخاري دیوه حدیث په اړه :



"تعذیب المیت واهله علیه." مشهور وضاحت دادی چې که یې دمړینې له امله دنوحې او ژړا علم ؤ او هغه یې منع نکړ او داوصیت یې ونکړ، ګنهګاره کیږي. په وصیت کې دې داشیان ولیکي او له هغوی څخه دې منع کړي. په تیره ددیني علماوو او لاربښود کسانو خو دوصیت کولو ډیر تاکید شوی دی.
(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۳۲)

## له ناڅاپي مړينې څخه پناه غوښتل

مسئله: له ناڅاپې مړینې څخه پناه غواړئ، ځکه په دې سره ډیر وخت دحقوقو اداء کولو، توبې، بخشش غوښتلو او نورو څه موقع نه پیدا کیږي. (فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۹۷)

## دمړه کیدونکي دوصیت حکم

مسئله: په ژوند او دروغتیا په حالت کې خپله شتمنې چاته بخښل، هغه یې مالک ګرځول، شرعاً او قانوناً دهغه ملیکت ګرځي او بخشش معتبر دی. خو که دورثاوو دحق تلفي نیت پکې وي، بیا خورا ستره ګناه ده. که کومه شرعي مجبوري وي نو بیا خو الله تعالی عفوه کوونکی دی. په کومه ناورغې کې چې څوک مري هغه مرض الموت بولي. په مرض الموت کې بخشش کول اعتبار نلري، وارث ته هم وصیت کول جواز نلري خو غیر وارث ته دشتمنې په دریمه برخه کې وصیت معتبر دی. (فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۲۶۸)

......
.....

## په رمضان المبارک کې په مړینه ، دقبر عذاب

پوښتنه :که کوم ګنهګار مسلمان په رمضان المبارک کې مړ شي، دقبر عذاب به تر قیامته وربانديې نه وي او که یوازې درمضان په میاشت کې؟

ځواب :له کافر څخه یوازې د رمضان په میاشت کې عذاب لرې کیږي ،خو ګنهګار مسلمان تر قیامت پورې ورڅخه خوندي وي.هغه کسان چې له رمضان پرته په نورو میاشتو کې مري، دهغوی حکم هم داسې دی.دکافر به دجمعې په ورځ او رمضان کې دقبر عذاب نه وي، خو په ګنهکار مؤمن چې کله جمعه یا رمضان راشي تر قیامته ورڅخه عذاب پورته کیږي.(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۹۷،ردالمحتار ج ۱ ص ۷۷۳ په حواله)

ددې درې ځوابونه کیدلای شي:

۱- دنورو نصوصو په ملاحظه په حدیث کې د ،اجتناب عن الکبائر (له سترو ګناهونو څخه ځان ساتل) قید شته.

۲- ځیني عصاة (ګنهکار مؤمن) له حساب څخه پرته جنت ته ځي، دهغوی دانیکمرغي مقدره وي چې د جمعې په ورځ يې مړینه پیښه شي.

۳- دجمعې دورځې په مړینه یوازې دقبرعذاب ورڅخه لرې کیږي، دآخرت عذاب نه وي معاف ،ددې حدیث مطلب دادی چې له جمعې پرته ،دعمل په برکت که دقبر له عذاب څخه وژغورل شي ،نورې مرحلې ورته خورا آسانه وي.



په ځانګړو ورځو کې دبندیانو په بند کې تخفیف راتلل په دنیا کې هم رواج دی.که دجمعې دورځې یا دشپې په عظمت الله تعالی دشراب څښونکو او سودخوړونکو په بند کې تخفیف (کموالی)راولي ستا اوزما وربانديې څه اعتراض دی؟
او که داسهولت او تخفیف دسترو ګنهکارانو په هکله نه وي، بیا هم کومه ستونزه نشته. ددې حدیث شریف مدعی داده چې دجمعې او دجمعې دشپې دقبر عذاب یې موقوف کړی دی. پاته شوه داخبره چې دکومو، کومو خلکو عذاب موقوف شوی دی؟ دا الله تعالی ته معلومه ده؟

(آپ کې مسائل اوران کا حل ج ۱ ص ۸۹)

مسئله :دمحرم الحرام دمیاشتې دلسو ورځو په هکله داسې څه راغلي نه دي چې ترلسو ورځو پورې به دقبر عذاب نه وي. خو دجمعې او رمضان المبارک په میاشت کې دمړه شویو کسانو په هکله دازیری په حدیث شریف کې راغلی دی.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ص ۴۶۹-ردالمحتار ج ۱ ص ۷۹۷)

## په شریعت کې دمړه دغسل اهمیت

دالله تعالی چې کوم بنده له دې دنیا څخه رخصت شي ، د مړینې په لاره داخرت په لور روان شي،اسلامي شریعت دهغه په عزت سره درخصت کولو لپاره یوه ځانګړې طریقه مقرره کړې ده. خورا پاکه ،دخدای لمانځنې او خورا درد شریکه او له شرافته ډکه لاره ده.

حکم دادی چې لومړی دې مړي ته داسې غسل ورکړل شي

لکه یو ژوندی انسان چې دپاکي حاصلولو لپاره لامبي. له پاکي ترلاسه کیدلو سره، سره دغسل اداب هم پوره پکي مراعاتیږي. دغسل په اوبو کې هغه څه ګډ شي چې خلک یي ذخیرو دپاکولو لپاره په ژوند کې استعمالوي. په پای کې دکافورو په څیر دښه بوی توکي هم په اوبو کې واچول شي، ترڅو دمړي جسم له پاکي سره، سره معطر او ښه بوی هم ولري. بیا په پاکو جامو کې په کفن شي، خو په دې لړ کې دي له اسراف څخه هم کار نه اخستل کیږي. بیا په جماعت سره ور باندي لمونځ کیږي، په هغه کې دمړي لپاره دمغفرت او رحمت غوښتلو ددعا اهتمام کیږي. بیا په خوراعزت سره قبر ته حواله کیږي چې په حقیقت کي الله تعالی ته سپارل کیږي. دځمکې غیږي ته ورکول کیږي، هغه چې توکو یي دده وجود جوړ کړی دی. په یوه لحاظ یي هغه مور ده. بیا خلک په ژبه او عمل سره دمړي خپلوانو او کورنۍ ته تسلا ورکوي ورسره دغمخواري او همدردې اظهار کوي، هڅه کوي ترڅو یې غم ورته سپک کړي. (معارف الحدیث ج۳ ص۴۳۵)

## ولي مړي ته غسل ورکول کیږي؟

مسئله: دمړي له غسل څخه مطلب دهغه پاکوالی او دهغه عزت او حرمت څرګندول دي.

(فتاوی دارالعلوم ص۲۵۲ ج۱ بحواله ردالمحتار ص۷۹۹، ج۱، باب صلوة الجنائز)



مسئله: دمړي دغسل اصل دادی چې ملائکو آدم علیه السلام ته غسل ورکړي ؤ او هغه ته ئي ویلي ؤ چې داستاسي دمړي طریقه ده. (درمختار ص۸۳۷ ج۱)

مسئله: مړی ته غسل ورکول په مسلمانانو فرض کفایه دی. (که څو کسه مړي ته غسل ورکړي، نو دنورو مسلمانانو غاړي خلاصې دي.) که یو مړی بې غسله دفن شي نو ټول هغه مسلمانان چې له مرګه ئي خبر شوي وي، ګناهکاردي.

مسئله: که مړي پرته له غسله په قبر کې کښېښودل شي، ترڅو چې خاوري ورباندي اړول شوي نه وي، را ایستلای شي او غسل ورکولای شي او که ئي خاوري ورباندي اړولي وي نو نه دي راباسي. (بحرالرائق، علم الفقه ص ۸۷ ج ۱)

## دغسل شرعي حیثیت

مسئله: مړي ته غسل ورکول په ژوندو کسانو کفایي فرض دي، یعنې که څو کسان دا فرض ادا کړي، دنورو غاړې خلاصیږي. مړي ته یو ځل غسل ورکول فرض دي. داسي چې پر ټول بدن ئي اوبه توي شي او درې، واري ورباندي اوبه تویول سنت دي. (کتاب الفقه ص ۸۱۱ ج ۱)

## مړي ته پر غسل ورکولو باندي مزدوري اخیستل

مسئله: مړي ته پر غسل ورکولو باندي اجرت اخیستل جائز نه دی. ځکه دمړي غسل دالله تعالی له طرفه فرض دی، بیا نو اجرت په څه اخلي؟ خو که څو کسان غسل ورکوونکي

موجود وونو بيا اجرت اخيستل جائز دی، ځکه په داسې صورت کې خاص پريوه سړي باندې غسل ورکول فرض نه دی. (علم الفقه ص ۸۷ ج ۲، فتاوی محمودیه ص ۴۱۶ ج ۲)

مسئله: که پرته له يوه سړي بل څوک نه وي چې غسل ورکړي، هغه ته اجرت اخيستل جائز نه دي، ځکه د مړي غسل اوس يوازې پر ده فرض دی او که بل څوک هم د غسل ورکولو وي نو بيا جائز دی. دا فريضه دې د مړي خپلوان پخپله اداء کوي، خپل عزيز ته غسل نه ورکول او نورو ته سپارل، ډيره بې مروتي، بې غيرتې او د کبر دليل دی، د سړي پر غرور او تکبر باندې دلالت کوي.

(احسن الفتاوی ص ۴۱۸ ج ۴ بحواله ردالمحتار ص ۸۰۴ ج ۱)

مسئله: دا خبره مشهوره ده چې هرمسلمان ته په خپل ژوندکې داومړيوغسل ورکول فرض دي. دا غلطه خبره ده. مړي ته غسل ورکول کفايي فرض دي، که يو څوک دا کار ترسره کړي نو د ټولو مسلمانانو فرض اداء شو.

(آپ کې مسائل ص ۱۱۹ ج ۳)

## مړي ته ترغسل ورکولو وړاندې څه وشي؟

مسئله: ترمړيني وروسته مستحب دي چې سمدستي په يوه پاکه ټوټه زني وروتړي، ترڅوئې خوله وازه پاته نشي، ورو، ورو دې اندامونه سم کړي. که پر مځکه باندې پروت وي، نو پر يو کټ يا تخته دې کښېږدي چې، د انتقال په دوران کې له کوم تکليف سره مخ نشي او په کومه جامه کې چې ئې



ساه ورکړې وي هغه دې ترې وايستل شي. بله داسې جامه دې ورکړي چې کوم ځای يې تر ښکاره نشي.

د جنازې تيارولو ته دومره انتظار کول واجب دی چې مړينه يې يقيني شي. کله چې ئې مړينه يقيني شي نو بيايې د جنازې په تياري او دفن کې بيړه ښه ده او له مرګه يې د خلګو خبرول مستحب دی. (کتاب الفقه ص ۸۱۱ ج ۱)

## د غسل سامان

۱- د غسل ورکولو لپاره د اوبولوښي چې څومره ته اړتيا وي، که څه هم په کورکې استعمال شوي وي خو بايد پاک وي.

۲- لوټه (بدنۍ، داوبو را اخېستلو لوښی) که څه هم استعمال شوی وي.

۳- د غسل تخته، لکه چې په ډيرو مسجدونو کې وي يا بله.

۴- د استنجاء لوټې، درې يا پنځه دانې.

۵- د بيرې دونې پاڼې (که پيدا شي)

٦- لوبان يوه توله (۱۰ ګرامه)

۷- عطر (ثلور ماشې).

۸- پاکه رويي.

۹- ګل خيرو، يو چټانګ، که نه ؤصابون کفايت کوي.

۱۰- کافور پنځه ګرامه.

۱۱- دوه پاک تهبنده، که نه وي د بالغ سړي لپاره يو متر او يو چارک اوږده ټوټه. (د ميرمني لپاره يو نيم متر رنګه ټوټه ځکه په رنګه ټوټه کې ستر ښه وي.)

۱۲- دوې دانې پاکې پنډې جامې چې دستکلې ورځنې جوړې کړې چې غسل ورکونکي ئې په لاس کړې. دیوې دستکلې لپاره تقریباً شپږ ګیرې او درې ګیرې (۲۵ سانتي متره) سوره وره ټوټه پکار ده. (احکام میت ص ۲۵)

مسئله: دمړي په غسل کې دبیرې دپاڼوپه استعمال سره خیرې ښې پاکیږي او دمړي بدن ژر نه خرابیږي. دکافوروپه استعمالولوسره بیا مړي ته مؤذري خزندې نژدې نه ورځي.
(مظاهرحق جدید ص ۴۰۶ ج ۲)

## مړي ته دغسل ورکولو شرطونه

مسئله: دمړي غسل فرض کیدل څو شرطونو نه لري:

لومړی داچې، مسلمان به وي، کافر ته غسل ورکول فرض نه دي.

دوهم داچې، اسقاط شوی (نقصان کړی شوی وی) بچې به نه وي، ځکه اسقاط شوي بچې ته غسل ورکول فرض نه دی.

دریم شرط دادی چې، دمړي له سر سره به دبدن نیمه یاتر هغې زیاته برخه وي، کنه نو غسل ورکول مکروه دی.

څلورم شرط دادی چې، هغه به شهید نه وي. چې دالله تعالی دنوم دلوړولو په خاطروژل شوي وي (دشهید په بیان کې به راشي) ځکه نبي کریم ﷺ داحد دشهداؤ په باره کې وفرمایل: "دوی ته غسل مه ورکوئ، ددوی دهر ټپ دوینې به دقیامت په ورځ دمشکو بوی ځي."



مسئله: که اوبه نه وي اویا دمړي جسد دغسل وړ نه وي، دغسل پر ځای دي تیمم ورکړي. مثلاً څوک په سوزیدلو ومري اوداویره وي چې په مینځلوشړیږي اودبدن غوښې یې تویږي، تیمم دي ور ووهي، خوکه داوبوپه بهولویې بدن نه شړیده تیمم دي نه ورکوي، پرته له مښلو دي اوبه ورباندې تیرې کړي. (کتاب الفقه ص ۸۱۳ ج ۱)

مسئله: که دمړي جسد دپاړسوب په وجه دغسل کولو قابل نه وي، یعنې له لاس وروړلو څخه ئې دچاودیدلو اندیښنه وي، یوازې د اوبو تویول ورباندې کافي دی ځکه مښل ضروري نه دي. که یې فقط نس پړسیدلي وي او داوبو تویول هم ورباندې ممکن نه وي، نور بدن دي ومینځي او پر نس دي مسح وکړي، لکه دژوندي لپاره چې یې حکم دی.
(امدادالاحکام ص ۸۲۶ ج ۱)

(لکه چې په اوداسه او غسل کې چې دمعذورسړي لپاره څه حکم دی، که یې په کوم اندام پټۍ یا پلستر لګولی وي، هغه دي مسح کړي اونور دي ومینځي. محمدرفعت قاسمي)

مسئله: که څوک تر دیوال لاندې شویاپه اورکې وسوځیداومړشو، غسل ورکول کیږي، خوکه دغسل په ورکولوسره ئې دبدن پوستکی بیلیږي، یا بله ستونزه وي نوتیمم دي وروکړي. (فتاوی درالعلوم ص ۴۷۲ ج ۵)

مسئله: مړي ته دتیمم ورکولوطریقه داده چې تیمم ورکوونکی به دوه ځله خپل لاسونه پرپاکه ځمکه ووهي،

یوځل به دمړي مخ مسح کړي اوپه دوهم ځل به دمړي لاسونه تر څنګلو مسح کړي. لکه په خپلو لاسونوچي تمیم وهي.(امداد الاحکام ص ۸۲۵ ج ۱)

**مړي ته هرڅوک غسل ورکولای شي که مشخص شخص؟**

پوښتنه: مړي ته غسل ورکوونکی مقررول په کاردي که هرڅوک غسل ورکولای شي؟

ځواب : هرپوه شخص غسل ورکولای شي ،ښه خبره داده چي غسل ورکوونکي پرته له اجرته غسل ورکړي. پرغسل ورکوونکي باندي پخپله غسل کول ضروري نه دي.

(فتاوی دارالعلوم ص ۲۵۳ ج ۵ بحواله ردالمحتار ص ۸۰۴ ج ۱ ، کتاب الفقه ص ۸۲۰ ج ۱)

مسئله: دمړي داسي وصیتونه چي؛ فلانی دي غسل راکړي ،فلانی مي دي خښ کړي،فلانی دي دجنازي لمونځ راکړي اوپه فلانی ځای کي مي دي خاورو ته وسپارئ . شرعاً معتبر نه دي.په دې کې دمړي اختیارنشته ،دوارثانوحق دی ،چي هرڅه ښه ګڼي په هغه دي عمل وکړي.

(فتاوی رحیمیه ص ۱۰۳ ج ۵ بحواله ردالمحتار ص ۸۲۴ ج ۱)

مسئله :نابالغ هلک یا نجلۍ ته ښځه اوسړی دواړه غسل ورکولای شي.(علم الفقه ص ۱۸۸ ج ۱)

مسئله: که کوم ناپاک شخص یا هغه چاچې مړي ته یې کتل جائزنه وي، مړي ته غسل ورکړ، صحیح دی ،که څه هم مکروه دی . (علم الفقه ص ۱۸۸ ج ۱)



**نجلۍ ته به څوک غسل ورکوي؟**

پوښتنه :که نابالغه نجلۍ مړه شي او کومه ښځه نه وي،آیادهغې میړه (چي له چاسره ئي په ماشومتوب کي نکاح شوي وي واده یي نه وي شوي ) یا بل کوم محرم غسل ورکولای شي ؟

ځواب : نابالغه نجلۍ که غیرمراهقه (وړه)وي،هغې ته خوهرڅوک، ښځه وي که نارینه ، غسل ورکولای شي . مراهقه په دې هکله دبالغي حکم لري . بالغې ښځې ته له ښځو پرته بل څوک غسل نشي ورکولای. میړه هم غسل نشي ورکولای . که کوم محرم ئي موجود وي نو تیمم دي ورووهي اوکه محرم ئي نه وي ،بل څوک دي پرخپلو لاسونو باندي جامه وپېچي،تیمم دي ورووهي اوکفن دي پري واچوي ، لمونځ دي پري وکړي او دفن دي کړي .

(فتاوی دارالعلوم ص ۱۴۶ ج ۵ بحواله درالمحتار ص ۸۰۶ ج ۱)

مسئله: که کوم ماشوم هلک مړشي نو ښځې غسل ورکولای شي او ماشومې نجلۍ ته نارینه هم غسل ورکولای شي. (کتاب الفقه ص ۸۱۶ ج ۱)

**که جنب شخص ومري ، یو غسل ورته بس دی؟**

پوښتنه : که څوک دجنابت په حال کې ومري، یعني غسل ورباندي اوښتی وي، نو یو غسل ورته کافی دی که به یوځل دجنابت غسل ورکوي بیا به دمړي غسل ؟

ځواب: دجنابت په وجه دمړي په غسل کې هیڅ فرق نه راځي، لکه څرنګه چې نورو مړیو ته غسل ورکول کیږي ،همدارنګه به جنب مړي ته هم ورکول کیږي اودا حکم دحائضې اونفاسې هم دی.یعنې یو غسل ورکول کیږي.
(فتاوی دارالعلوم ص ۲۴۷ ج ۵ بحواله ردالمحتار ص ۸۰۳ ج ۱ باب صلوة الجنائز)

## دارتیا په مهال میړه خپلې ښځې ته غسل ورکولای شي کنه؟

پوښتنه: زید خپلې مړې ښځې ته (په داسې حال کې چې بله ښځه نه وي) غسل ورکولای شي که نه؟

ځواب: په شامي کې راغلي دي چې سړی دې خپلې مړې شوې ښځې ته تیمم ورووهي، پرخپل لاس دې ټوټه واچوي، غسل به نه ورکوي، ځکه ښځې ته ښځه غسل ورکوي، سړی که څه هم محرم وي (لکه پلار، ورور اونورچې نکاح یې ورسره جوازنلري) تیمم به ورووهي.
(فتاوی دارالعلوم ص ۲۵۵ ج ۵، شامي ص ۸۰۳ ج ۱)

مسئله: ښځه خپل میړه ته (چې بل نارینه نه وي) غسل ورکولای شي، خو میړه خپلې ښځې ته غسل نشي ورکولای.
دمخ کتلو اجازه یې ورته شته.
(فتاوی دارالعلوم ص ۲۴۸ ج ۱ بحواله ردالمحتار ص ۸۰۳ ج ۱)

علامه شامي (علیه الرحمه) فاطمې (رضی الله عنها) ته د علي (رضی الله عنه) په لاس دغسل ورکولو قصه نقل کړې ده چې له شرح مجمع څخه معلومیږي چې فاطمې (رضی الله عنها) ته ام ایمن (رضی الله عنها) غسل ورکړی دی.علي (رضی الله عنه) ته



مجازا غاسل ویل شوی دی، ځکه هغه ئې دغسل سامان چمتوکړی ؤ. نور دمور مینه له خپلو بچو سره مثلاً: مچول، مینه ورسره کول، په غیږ کې ټینګول او نور له دې بحث څخه وتلي دي په دې کې هیڅ مشکل نشته، ځکه مور دخپل اولاد محرمه ده. لاس وروړل او ښکلول یې منع نه دي. موراو پلار ته له خپل اولاد سره داسې معامله سمه نه ده. په هرحال، سړي ته له خپلې مړې میرمنې سره په هیڅ ډول داسې معامله صحیح نه ده. (فتاوی دارالعلوم ص ۲۵۶ ج ۵)

مسئله: دښځې تر مړینې وروسته یې میړه ورڅخه پردی کیږي او دنکاح اړیکې یې ختمیږي. نو ځکه ئې غسل ورکول، لاس ورڅخه لګول او داسې نور فقهاء کرامو منع کړي دي.
خو لیدل اوجنازه ئې پورته کول او دارتیا په مهال ئې قبرته کښته کول جائز دي، ځکه په قبر کې یې کفن پرده وي، پر کفن سربیره د ضرورت په وخت کې چې محرم نه وي، لاس ئې ورځنې لګول جائز دي. اوکه کوم محرم وي نو بیا دې قبر ته هغه ورکښته کړي.
(فتاوی دارالعلوم ص ۲۵۳ ج ۵ بحواله ردالمحتار ص ۸۰۳ ج ۱، باب الجنازه)

مسئله: مړي ته به غسل ورکوونکي داسې څوک وي چې مړي ته یې کتل روا وي. ښځې ته دنارینه اونارینه ته دښځې غسل ورکول جائز نه دي. خوکه ښځه خپل میړه ته چې بل څوک نارینه نه وي غسل ورکړي جواز لري، ځکه دهغې دعدت په زمانه کې، دمیړه په نکاح کې شمیرله کیږي او میړه

چې د ښځې له مرګ سره سم ئې نکاح ختميږي، نو پردى بلل کيږي ، نو غسل هم نشي ورکولای .

(علم الفقه ص ۱۸۷ ج ۱ ، فتاوى محموديه ص ۴۱٦ ج ۲، درمختار ص ۸۲۴ ج ۱ ،کتاب الفقه ص ۸۱۳ ج ۱، فتاوى رحيميه ص ۱۰٦ ج ۵ ، امداد الاحکام ص ۸۲۳ ج ۱، احسن الفتاوى ص ۲۱۵ ج ۴)

مسئله : که يوه ښځه په داسې ځای کې مړه شي چې هلته نه بله ښځه وي او نه کوم محرم ورسره وي، نو پردى سړى دې پر خپل لاس جامه وپيچي او تميم دې ورکړي .

مسئله: داسې که يو سړی په داسې ځای کې مړ شي چې هلته بل څوک نارينه غسل ورکونکي نه وي، که محرمه ښځه موجوده وي له جامې پرته تيمم وروهلای شي او که غيرمحرمه وي نو پر خپلو لاسونو دې جامه وپيچي او تيمم دې ورووهي.(علم الفقه ص ۱۸۸ ج ۱،کتاب الفقه ص ۸۱۴ ج ۱)

## چيري چې ښځې ته دغسل ورکولو بله ښځه نه وي

مسئله : که يوه ښځه په يوه داسې ځای کې ومري چې هلته بله ښځه نه وي چې غسل ورکړي ،خو دې يو محرم (له چاسره چې ئې نکاح حرامه وي) نارينه موجود وي ، نو هغه دې ته تيمم ور ووهي او که غير محرم (پردى سړي) موجود وي نو پرخپلو لاسونو دې جامه وپيچي او تيمم دې ورووهي، خو دهغې مټو ته دې نه ګوري.دښځې دميړه لپاره هم همدا حکم دى ،خو دهغې مټو ته په نه کتلو سره مکلف نه دى. په دې کې ځوان او سپين ږيرى دواړه راځي.



مسئله : که يو سړی په داسې ځای کې ومري چې هلته له ښځو پرته نارينه نه وي او دده خپله ښځه هم نه وي. نو يوه پاک لمنې ښځه چې د غسل ورکولو په طريقه باندې پوه وي، غسل ورکړي او که کومه معصوم النفسه ښځه موجوده نه وي ،بيا دې نورې پرخپل لاس جامه وپيچي او تيمم دې ورووهي،خو پردې له ځايه دې ستر ګې پټې ساتي. (کتاب الفقه ص ۸۱۵ ج ۱ ،آپ کې مسائل ص ۱۰۰ ج ۳)

## دمخنث دغسل تفصيل

پوښتنه :که خنثى مشکل ومري نوښځې به غسل ورکوي که نارينه؟

ځواب : ترکومه ځايه چې ممکنه وي خنثى مشکل ته د نارينه يا ښځې احکام ثابتيږي،که دنارينه علامې په کې زياتې وي مثلاً ،ږيره يې راغله،دنارينه دذکر په شکل دوړو بولو ځاى ولري او يا کومه ښځه ورځنې حامله شي، نو هغه ته دنارينه احکام ثابت دي او که دښځې نښې پکې وي، مثلاً ، حامله شي ، تيونه ئې دښځې په څير څرګند شي او يا حيض ورته راشي،نو ښځه بلله کيږي او که له دواړو ځايونو څخه بولي راوتلي نو له هريوه څخه چې اول راوزي هغه معتبر دى .که بيخي په مشتبه حالت کې وُ،يوطرف ئې هم معلوميدلاى نشواى يا خنثى مشکل بلل کيږي . که خنثى مشکل دځلورو کلونو يا تر هغه کم وي، ښځه او نارينه دواړه غسل ورکولای شي او که يې عمر تر دې زيات وي نو نه دې ښځه غسل ورکوي او نه نارينه ،بلکې تيمم دې ورووهي .

(احسن الفتاوى ص ۲۲۱ ج ۴ بحواله ردالمحتار ص ۸۰٦ وص ۳۷۸ ج ۱، کشف الاسرار ص ۴۱ ج ۱، فتاوى دارالعلوم ۲۵۲ ج ۵)

مسئله :خنثی مشکل چي بلوغ ته نژدي وي،هیڅ مړي ته دي غسل نه ورکوي.یعني که مړی نروي او که ښځه او نه دي ده ته نریاښځه غسل ورکوي،په لاس دي ټوټي وتړي او تیمم دي ورکړي.(کتاب الفقه ص۸۱٦ج۱)

مسئله: خنثی مشکل ته دي غسل نه ورکول کیږي، بلکي تیمم دي ورووهي ،کفن دي دښځي په څیر په پنځوټوټوکي ورکړي،خو وریښم به نه وي او نه به زعفران ورباندي وهل شوي وي.

(فتاوی رحیمیه ص۱۰۱ج۳ ، فتاوی سراجیه ص۲۲ج۱بحواله شامي ص۳۰۹ج۱)

******

مسئله : دنابالغ خنثی مشکل د جنازي په لمانځه کي که دهلک دعا ولولي اوکه دنجلۍ پروا نلري.

(احسن الفتاوی ص۲۰۲)

**جذامي(کوي)اوبرص (پیس) ته به څوک غسل ورکوي ؟**

مسئله : هغه څوک چي دفیس په ناروغۍ اخته وي ،که هغه ته غسل ورکول سخت وي نو پر نارینه مړي باندي دي نارینه اوپرښځه باندي دي ښځه اوبه واچوي،لوښی دي را واخلي او اوبه دي ورباندي توی کړي .که داهم ناشوني وي نوپرلاس دي جامه وپیچي اوتیمم دي ورووهي .

(فتاوی محمودیه ص۲۸۵ج۴، فتاوی دارالعلوم ص۲۵۵ج۵)

***********



**شیعه ته غسل ورکول**

پوښتنه : که شیعه مړشي او بل شیعه نه وي چي ده ته غسل ورکړي، ایا مسلمان غسل ورکولای شي ؟

ځواب : هغه ته دي مسلمان غسل ورکړي ، خوغسل،کفن اوخښنول دي دسنت مطابق نه وي، بلکي اوبه دي ورباندي توي کړي ، په جامه کي دي وپیچي ،په یوه کنده کي دي کیږدي اوخاوره دي ورباندي واړوي .(احسن الفتاوی ص۲۳۱ج۴)

**په اوبوکي ډوب شوي ته غسل ورکول**

مسئله:که څوک په اوبوکي ډوب اومړ شي،نو کله چي ئي راوباسي،غسل ئي فرض دی ،په اوبوکي ډوبیدل دغسل لپاره کافي نه دي، ځکه دمړي غسل پرژوندیوباندي فرض دی او په ډوبیدلوکي خو ددوی څه دخل نشته ،خو که درااېستلو په مهال دغسل په نیت دري غوپي ورکړي نو غسل ئي کیږي .همدرانګه که پر مړي باندي باران وشي یا همداسي اوبه ورباندي راشي نو کله چي ئي را اخلي غسل به ورکوي .(علم الفقه ص۱۸۸ج۲،فتاوی رحیمیه ص۹۴ و ص۱۰۵ج۵،مظاهر حق ص۴۱۴ج۲ بحرالرائق ص۱۷۴ج۱، فتاوی قاضي خان ص۸۹ج۱ امداد الفتاوی ص۷۳۷ج۱)

**په سیلاب کي مړ شوي ته غسل ورکول**

مسئله : دمسلمان جسدکه سیلاب راوړي، غسل ورکول فرض دي. پرته له غسله هم لمونځ ورکول جائزدی خوغسل نه ورکوونکي ګناهکاردی .دلمانځه دصحت لپاره دسیلاب غسل کافي دی . (احسن الفتاوی ص۲۲۷ج۴)

مسئله: په سیلاب کې چې که جسدونه وموندل شي، که د مسلمان کومه علامه ورباندې وي مسلمان شمیرل کېږي. که کومه علامه ورباندې نه وي، نو په دارالاسلام کې داوسیدلو په وجه دې مسلمان وبلل شي غسل او لمونځ دې ورکړل شي. (احسن الفتاوی ص۲۲۶ ج۴ بحواله ردالمحتار ص۸۰۵ ج۱)

## که د مسلمانانو او کافرانو جسدونه یوځای وموندل شي غسل ئې څه حکم لري؟

مسئله: که د مسلمانانو او کافرانو جسدونه سره ګډ شي، د تمیز کومه نښه نه وي، نو ټولو ته دې غسل ورکړل شي او که کومه نښه موجوده وي نو د مسلمانانو جسدونه دې بېل او غسل دې ورکړي، کفارو ته دې غسل نه ورکوي.
(علم الفقه ص۱۸۸ ج۲، احسن الفتاوی ص۲۲۶ ج۴)

مسئله: که د مسلمان کوم کافر خپلوان مړ شي نو د هغه مړی دې د هغه هم مذهب ته ورکړي او که د هغه هم مذهبه څوک نه وي یا یې نه مني، نو د مجبوری په وجه دې هغه مسلمان غسل ورکړي، خو په سنت طریقې سره دې نه ورکوي. یعنې نه دې اودس ورکوي، نه دې کافور پر بدن باندې وروهي او نه دې د جنازې لمونځ ورکوي. (علم الفقه ص۱۸۸ ج۲)

مسئله: که مړی کافر وي او له مسلمان ولي څخه پرته، د هغه کوم بل ولي نه وي، نو مسلمان ولي دې اوبه ورباندې توی کړي، یعنې د هغه په غسل کې دې د مسنونه طریقې اهتمام نکوي. (کشف الاسرار ص۱۴۱ ج۱)



## باغي او مرتد ته دغسل ورکول

مسئله: باغي او لاره وهونکی که مړ شي، غسل دې نه ورکوي، په دې شرط چې په جګړه کې مړ شي.
(دا د دوی د بد عمل په وجه، ترڅو نورو ته عبرت شي.)

مسئله: مرتد (څوک چې له اسلام څخه اوښتی وي) که مړ شي، هغه ته دې هم غسل نه ورکوي او که یې جسد د هغه هم مذهبه وغواړي نه دې ورکوي. (علم الفقه ص۲۰۴ ج۲)

## شهید ته غسل ورکول

مسئله: په کوم شخص کې چې د شهید ټول شرائط موجود شي، نه دې غسل ورکوي او نه دې له بدن څخه وینه پاکوي او که په چاکې د شهادت ټول شرائط موجود نه وي، غسل او کفن دې ورکړي. (علم الفقه ص۲۰۵ ج۲)

## ځان وژونکي ته غسل ورکول

مسئله: ځان وژونکي ته غسل او د جنازې لمونځ ورکول کیږي، خو د جنازې لمونځ به یې د وخت حاکم، خطیب یا بل ستر شخص نه ورکوي، بلکې عام سړی دې د هغه د جنازې لمونځ ورکړي. (نماز مسنون ص۷۲۵)

(لوی عالم یا بل غټ سړی یې په جنازه کې شرکت کولای سي، خو لمونځ دې نه ورکوي ترڅو د نورو لپاره عبرت شي. محمد رفعت قاسمي غفرله)

## دهغه ماشوم دغسل حکم چې دپیدایښت په مهال یې دژوند اثار ښکاره شي

مسئله: که دماشوم دپیدا کېدو په وخت کې دماشوم دوجود تر نیمائي ډیره برخه ژوندۍ راووزي (که دسرله خوا راوزي، دسینې تر راوتلو او که دپښو خوائي اول را ووزي ترنامه پورې ترراوتلو دژوند آثار ورباندې وي، نودا ماشوم ژوندی شمیرل کیږي او په مسنونه طریقه دې تکفین او تجهیزوشي، دجنازې لمونځ دې ورباندې وشي، خښ دې کړای شي. که دزیاتې برخې ترراوتلو وړاندې مړ شي نو مړ بلل کیږي، (پرته له غسله) دې ومینځي، په پاکه جامه کې دې ویپېچي دجنازې له لمانځه پرته دې خښ کړي.

(فتاوی رحیمیه ص۹۶ ج ۵ بحواله شامي ض۸۳۰ ج ۱، علم الفقه ص۱۸۸ ج ۲)

مسئله: کوم ماشوم چې ژوندی پیدا شي، څه شیبه وروسته یا سمدستي مړشي، هغه ته دې هم له سنت طریقې سره سم غسل ورکړل شي او لمونځ دې ورباندې وشي.

(بهشتي زیور ص۵۵ ج ۲)

## دمړه پیدا شوي ماشوم دغسل حکم

مسئله: داسقاط (ضایع کېدلو) په صورت کې که دماشوم کوم اندام پوره شوی وي، خو جسم یې بشپړ شوی نه وي، او به دې ورباندې توی کړي او په یوه جامه کې دې ویپېچي په خاورو کې دې خښ کړي. دمسنوني طریقې مراعات دې نکوي. که ټول وجود یې جوړ شوی ؤ بیا یې په کفن او دفن کې



اختلاف دی. خو په مسنونه طریقه کې یې احتیاط دی او په غیرمسنونه کې اساني ده. دجنازې لمونځ دې نه ورباندې کوي، البته که له پیدا کېدلو وروسته ومري، دجنازې لمونځ دې ورباندې وکړي او دسنت مطابق دې دفن کړي.

(احسن الفتاوی ص۲۰۶ ج۴)

مسئله: کوم ماشوم چې له موره مړ پیدا شي او دپیدا کېدو په وخت کې دژوند څه اثار ورباندې نه وي، هغه ته دې هم دسنت مطابق غسل ورکړي، خو مسنون کفن دې نه ورکوي، په یوه پاکه جامه کې دې ویپېچي او خښ دې کړي.

(بهشتي زیور ص۵۵ ج۲)

## مړه ماشوم ته دنرس په لاس دورکړل شوي غسل حکم

پوښتنه: دلته ماشومان په روغتونونو کې پیدا کیږي. داسې هم پېښیږي چې ماشوم مړ شي او یا مړ پیدا شي نو هغه ته په روغتون کې نرس غسل ورکړي او دفن ئې کړي. په کور کې هغه ته غسل نه ورکوي. حکم یې څه دی؟

ځواب: دنامسلمان په لاس ورکړل شوي غسل، غسل بلل کیږي ځکه دمړي په غسل کې مکلف والی شرط نه دی.

(شامي ص۸۰۵ ج۱)

مګر په دې کې دوې وراني (خرابي) شته:

۱- دغیرمسلم په لاس غسل ورکول، له سنت طریقې سره سم نه وي.

۲- دمسلمان تجهیز، تکفین او تدفین پر مسلمانانو لازم دی، ددې ذمه واري دهغوئ پر غاړه پاتې کیږي. نو په سنت طریقه برابر غسل ورکول ضروري دي، که په روغتون کې وي که په کور.

(فتاوی رحیمیه ص۲۷۳ ج۱)

## که دچا غسل زده نه وي اومړي ته غسل ورکړي؟

مسئله: څوک چې دغسل په ورکولو نه پوهیږي اومړي ته غسل ورکړي،څه ګناه وربانديي نشته،خوڅومره چې ممکن وي،داسي څوک دي غسل ورکړي چې دسنت په طریقه غسل ورکولای شي. (فتاوی دارالعلوم ص۲۴۹ ج۵)

مسئله: ښه خبره داده چې مړي ته غسل ورکونکي دمړي کوم قریب او عزیز وي او که يي خپلوان دغسل په ورکولو نه پوهیږي، نویو متقي او پرهیزګار سړی دي غسل ورکړي.(علم الفقه ص۱۸۸ ج۱)

مسئله: مړي ته بیلمانځه سړی هم غسل ورکولای شي خوغوره داده چې لمونځ ګذاره او دشریعت پابنده سړی غسل ورکړي.
(فتاوی محمودیه ص۳۹۳ ج۲، فتاوی دارالعلوم ص۲۵۰ ج۵)

مسئله: حائضه اونفاسه ښځه دي مړي ته غسل نه ورکوي،ځکه دا ورته مکروه ده. (بهشتي زیور ص۶۱ ج۲، علم الفقه ص۶۴ ج۲)

(که پرته له حائضې او نفاسي بله ښځه نه وي نودمجبورۍ په صورت کې بیا غسل ورکولای شي .محمدرفعت قاسمي غفرله.)

مسئله: غوره داده ، هغه ځای ته چې مړي ته غسل ورکول کیږي، له غاسل اویوهمکارپرته بل څوک ورنشي اوکه غاسل په مړي کې کومه ښه عجیبه خبره وویني نوخلکوته دي بیان کړي اوکه بده خبره ورته ښکاره شي، له بیانولو دي ډډه وکړي،خوکه مړی کوم مشهوربدعتي سړی وي نو بیادي بدي هم بیان کړي ترڅودخلکوعبرت شي.
(علم الفقه ص۱۸۶ ج۱ بحواله بحر وعالمګیري)



## دغسل په وخت کې دمړي دجامو پاکول

مسئله : مړي ته دغسل ورکولو په مهال چي کومه جامه دمړي له نامه ترزنګنونو پوري اچول کیږي، که دنجاست دلري کولو په وخت کې پر هغې باندي څاڅکي ولګیږي، نوهغه جامه دې هم پاکه کړي او یا دي بله پاکه جامه را واخلي. (امداد الفتاوی باب الجنائز ص۷۳۱ ج۱)

(درې ځله دي پر جامه اوبه توی کړي، پاکیږي اوکه کومه پاکه جامه موجوده وي نوهغه دي ور واخلي.)

## دغسل ورکولو په مهال دمړې ښځې دسترحد څومره دی؟

پوښتنه : دمړې شوي ښځې پر ټول بدن باندي جامه اچول ضروردي او که یوازي له نامه تر زنګنونو پوري پټيدل يي کفايت کوي؟

ځواب: دښځې له ښځې څخه دومره پرده ضروري ده لکه دنارینه له نارینه څخه،نوکه ښځه ښځې ته غسل ورکوي ،له نامه ترزنګنونو پوري پټيدل ئي کافي دي .
(احسن الفتاوی ص۲۳۷ ج۴ بحواله ردالمحتار ص۸۰۰ ج۱)

## دمړي دجسم پټې برخې ته کتل او لاس ورسره لګول

مسئله : دمړي مخصوص اندامونه پټول واجب دي. غاسل یابل شخص ته روانه دي چي عورت ته ئي وګوري ،یا لاس ورځني ولګوي. غاسل (غسل ورکونکی) دي پر خپلو لاسونو باندي يوه جامه وپیچي او عورت ( له نامه ترزنګنونو پوري دبدن برخه) دي ورپریمنځي. نوربدن بې له جامې، یه

لوخ لاس هم ور مینځلای شي.

دحنیفه وو په نزد ستر خفیف (له مخصوص اندامه پرته نور) ته لاس وروړل حرام نه دی. خو پټ ساتل او لاس نه وروړل ئې بنه غوره ده. ستر غلیظ (مخصوص اندام) ته لاس ور وړل حرام دی. (کتاب الفقه ص ۸۱۳ ج ۱)

(دمړي مخصوص اندام ته لوخ لاس وروړل حرام دي. له مخصوص اندام څخه پرته له نامه تر زنګنونو نوره برخه ستر خفیف دی.)

## دغسل په مهال مړي ته په لوټه استنجاء وهل

مسئله : دفقهي په کتابونو کې دمړي لپاره استنجاء څرګنده ده، که څه هم په لوټه یا ډبره سره استنجاء ور وهل یې نه دي ذکر شوي، خو عموماً داستنجاء مسنونه طریقه داده چې، اول لوټه یا ډبره استعمال کړای شي بیا اوبه استعمال شي، په دې کې دمړي اوژوندي توپیر نشته نو دلته هم دلوټې استعمال مسنون دی. (احسن الفتاوی ص ۲۲۹ ج ۴)

مسئله : مړي ته په غسل ورکولو کې غوره داده چې غاسل دي پر خپل لاس باندې کومه جامه وپیچي، په لوټه دي استنجاء ورووهي او بیا دي اوبه استعمال کړي.
(فتاوی محمودیه ص ۲۸۴ ج ۴)

## دنوکانو له رنګ سره مړي ته غسل ورکول

پوښتنه : دیوې خور دنوکانو رنګول عادت ؤ، ترمړینې وروسته یې غسل ورکړل شو، خودې ته یې فکر نه ؤ چې نوکان



یې په رنګ دي. وروسته له معلومیدلو سره به بیرته غسل ورکوي او که څنګه؟

ځواب: له نوکانو څخه دې رنګ وا روي اویوازې نوکان دي ورومینځي، د دوهم ځل غسل ورکولو ضرورت ئې نشته.

رنګ لرې کول او نوکان یې ورمینځل فرض دي، پرته له لرې کولو یې غسل صحیح شوی نه ؤ، نو ځکه ئې دجنازې لمونځ هم نه دی صحیح شوي. (احسن الفتاوی ص ۲۲۷ ج ۴)

مسئله : دکوم مړي چې نوکان رنګیدلي وي، پاک دې کړي او غسل دي ورکړي کنه، غسل یې نه صحیح کیږي.
(آپ کې مسائل ص ۷۵ ج ۳)

## دحایضې مړې په خوله اوبه رغړول؟

مسئله: دحیض او نفاس یا جنابت په حال کې که څوک مړشي، نو هم یې په خوله اوپزه کې اوبه ور اچول صحیح نه دي، خو که غابنونه او پزه ئې په لمده جامه باندې ورپاک کړي بنه ده. (احسن الفتاوی ص ۲۳۸ ج ۴ بحواله درمختار ص ۸۰۱ ج ۱)

## دمړي په خوله کې که مصنوعي غابنونه وي؟

مسئله : که دمړي له خولې څخه دمصنوعي غابنونو ایستل ستونزه لري اوپه زحمت کې دمړي بې عزتي هم کیږي، نو په خوله کې دي ورپریږدي. په غسل، کفن او دفن کې یې حرج نشته. دمال ترعزت دمړي عزت ډیر دی.
(احسن الفتاوی ص ۲۴۱ ج ۴ بحواله ردالمحتار ص ۸۴۰ ج اول آپ کې مسائل ص ۷۷ ج ۳)

مسئله : دمړي سترګې ورتړول او سر ورغوړول جائز نه دي. (فتاوی دارالعلوم ص۲۴۸ ج ۵ بحواله ردالمحتار ج۱)

مسئله:دمړي ویښتان دي نه غوړوي اونه دي نوکان، ویښتان او بریتونه ورپرې کوي،که یې کوم نوک پخپله مات شي، لرې کول یې پروا نلري.(علم الفقه ص ۱۸۸ ج ۱)

مسئله:دمړي ویښتان اوبریتونه خرییل ،دبغل اوترنامه لاندې وېښتان پریکول مکروه دي .دشریعت غوښتنه داسې ده چې څرنګه وفات شوي وي ، همداسي دي خښ کړای شي ،که دمړي له جسد څخه له همدې شیانو کوم یو شی په خپله وغورځي نوهغه دې هم په کفن کې ورسره کښېښودې شي .

(کتاب الفقه ص۸۲۰ ج۱)

**دغسل په وخت کې دنبي کریم ﷺ پښې کوم طرف ته وي؟**

مسئله : داخبره په هیڅ ځای کې هم نه ده نقل شوي چې دغسل په وخت کې دنبي ﷺ پښې کوم طرف ته اوسرکوم طرف ته ؤ،خودنبي کریم ﷺ دا ارشاد مبارک دکعبې په باره کې دی چې داستاسو دژوند اومرګ قبله ده ، په دې کې اشاره دې خبرې ته کېدلای شي، لکه څرنګه چې په قبرکې مړی اېښودل کیږي ،همداسي دي دغسل په مهال هم ږدي ، لکه چې همدا اوس معمول دی .

(فتاوی دارالعلوم ص۲۵۲ ج ۵، ردالمحتار ص۷۹۹ ج ۱، فتاوی محمودیه ص ۱۶۳ ج۹)

مسئله: مړي دغسل په وخت کې،څرنګه چې مناسب وي ږدي دي. داصحیح خبره ده .ځیني وایي چې دقبلې په خوا دې



مخ کړي او پرې دي باسي لکه چې په قبرکې یې ږدي او ځیني وایي چې دقبلې په خوا دی یې مخ کړي ،په اوږدوالي دي پریباسي ، چې په دې صورت کې ئې پښې او مخ دواړه قبلې ته کیږي. (امداد الاحکام ص ۸۲۲ ج ۱ ،آپ کې مسائل ص۹۸ ج۳)

(دواړه صورتونه جائز دي ، څرنګه چې اسانه وي هغې خواته دي دمړي مخ کړي ،ځکه ځیني ځایونه ډېرتنګ وي د مړي مخ قبلې ته نشي کېدلای .محمدرفعت قاسمي غفرله.)

**دمړي دغسل لپاره کور په لوښوکې اوبه تودول**

مسئله:دمړي دغسل لپاره د کورپه پاکو لوښوکې اوبه تودول او غسل ورباندې ورکول څه حرج نه لري .

(فتاوی دارالعلوم ص۲۴۹ ج۵)

مسئله:دمړي دغسل لپاره په نوي لوښي کي اوبه را اخیستل ضروري نه دي .(فتاوی محمودیه ص ۲۹۴ ج۱۰)

(هرڅرنګه لوښې چې وي خوچې پاک وي .محمدرفعت قاسمي غفرله.)

**دمړي دغسل لپاره اوبه څرنګه وي؟**

پوښتنه :.مشهوره خبره خو داده چې دمړي دغسل لپاره به اول ځل هغه اوبه په کوموکې چې دبیري پاڼې وایشي، دوهم ځل دکافوراوبه او،درییم ځل خالصي اوبه ضروري دي ؟

ځواب : علامه شامي رحمه الله دمړي په باره کې داسې بیان کړي دی چې اول دي په ساده اوبو تره غسل ورکړل شي، وروسته دي هغه چې دبیري پاڼې پکې ایشیدلي اوبیا دکافور

په اوبو سره، خو فتح القدیر یا نقل کړي دی چې اول دې دوه ځلې دیرې په اوبو سره او دریم ځل دی د کافور په اوبو سره غسل ورکړل شي.
(فتاوی دارالعلوم ص ۲۵۵ ج ۵ بحواله ردالمحتار ص ۸۰۲ ج ۱ باب الجنائز)

مسئله: که د مړي د غسل په ابو کې د مرداری څه اثر وي خو له غسل، کفن او خښولو څخه وروسته معلومه شوه، نو پر مړي د دې مواخذه نشته، هغه مجبور او معذور بلل کیږي، له هر چا څخه چې په همدې باره کې بې احتیاطي شوې وي، توبه او استغفار دې ووایي، د مړي لپاره دې د مغفرت دعا وغواړي.
(فتاوی دارالعلوم ص ۲۷۰ ج ۵)

(نن سبا دیرې پاڼې هر ځای نه پیدا کیږي، مطلب دا دی چې په هر شي سره د مړي جسد پاکیږي، هغه دې استعمال کړي، محمد رفعت قاسمي غفرله.)

## تر غسل وراندې مړي ته اودس ورکول

مسئله: مستحب او غوره دا ده چې مړي ته هم داسې اودس ورکړل شي لکه څرنګه چې یې جنب د جنابت تر غسل وړاندې کوي، خو مړي ته به په خوله او پوزه کې اوبه نه وراچوي ترڅو یې اوبه نس ته تیرې نشي چې خرابي پیدا نکړي او په داسې کولو کې ئې سختي هم ده. مستحب دا ده چې غاسل دې د خپل لاس د شهادت او بټه ګوته باندې جامه وپیچي، لمده دې کړي او په غاښونو دې ورووهي. دا د خولې او پزې د مینځلو ځای نیسي. (کتاب الفقه ص ۸۲۰ ج ۱)



مسئله: نابالغ ماشوم ته هم د غسل په مهال اودس ورکول مناسب دي. (احسن الفتاوی ص ۲۱۲ ج ۴)

مسئله: که د مړي د غسل ځای له لارې څخه ګوښه وي خو ښه، کنه نو د غسل تر تخته لاندې دې کنده پریکړې چې اوبه پکې جمع شي. که یې تر تخته لاندې کنده پرې نکړه، اوبه په ټول کور کې خورې ورې شوي هم ګناه نه ده. مطلب یوازې دا دی چې په لاره کې چا ته تکلیف و نه رسیږي.
(بهشتي زیور ص ۵۲ ج ۲)

## د مړي د غسل مستحبات

مسئله: د مړي په غسل کې دا څو امور مستحب دی:
یو دا چې درې ځله دې غسل ورکړل شي، په داسې ډول چې په هر ځل کې د مړي ټول بدن ته اوبه ورسیږي. له همدې دریو وارو څخه یې لومړی وار فرض دی نور دوه ځله سنت دي.
که په درې ځله هم د مړي بدن پاک نشي، نو زیاتول یې مستحب دی تر څو یې بدن ښه پاک شي. د دې لپاره کوم معلوم شمیر نشته خو مستحب دا دی چې شمیر یې طاق وي. مثلاً که په څلور ځله یې بدن پاک شي نو پنځم ځل غسل دې هم ورکړي.
(کتاب الفقه ص ۸۱۷ ج ۱)

مسئله: دوهم دا مستحب دی چې په اخر ځل غسل کې په اوبو کې د کافورو یا بل شي خوشبویي وي، کافور غوره دی.
له اخري غسل سره، سره د دوو نورو غسلونو په اوبو، کې دیرې پاڼې یا بل داسې شی لکه صابون وي چې خیرې پاکې

کړای شي. د مړي په اوبو کې خوشبوئي اچول مستحب دي.
که څه هم هغه د احرام په جامه کې وي، ځکه مړي مکلف نه
وي، له مړینې سره یې احرام او نور قیدونه هم ختمیږي.
(کتاب الفقه ص ۸۱۸ ج ۱)

مسئله: مستحب خبره داده چې مړي ته غسل په سړو اوبو
باندې ورکړل شي، خو که ډېره یخني وي یا د خیرو د لرې کولو
ضرورت وي یا تودې اوبه غوره دي او د حنفي علماوو په نزد
تودې اوبه ښې دي. (کتاب الفقه ص ۸۱۸ ج ۱)

مسئله: څلورم مستحب دادی چې تر غسل وروسته دې
د مړي پر سر او ږیره خوشبوئي ورولګوي، خو زعفران به نه وي
. پر کومو اندامونو باندې چې خوشبوئي لګول مستحب دي
هغه دادي: تندی، پوزه، دواړه ورغوي، د زنګنونو
سترګی، سترګې، غوږونه او تر بغلونو لاندې، غوره داده چې
دا خوشبويي کافور وي. (کتاب الفقه ص ۸۱۸ ج ۱)

مسئله: پنځم مستحب کار دادی چې مړي ته د مرګ له ځای
سره نژدې خوشبو لرونکی شي دود کړي او مړي ته پر درې
ځایونو خوشبو لرونکی شي دودول مستحب دي:
یو داچې کله د مړي روح قبض شي، نو هغه دې پر لوړ ځای
کښیږدي. مثلاً پر کوم تخت، یا کټ یا چوتره او پر هغه ځای
دې د مړي تر اېښودلو مخکې درې یا پنځه ځله خوشبويي
دود کړي. دوهم د غسل ورکولو په مهال او درېیم د کفن
وراغوستلو په وخت.



مسئله: شپږم مستحب دادی چې د غسل ورکولو په مهال
به له مړي ټولې جامې لرې کوي، پرته له هغې جامې چې ستر
یې ورباندې پټ شوی وي. (کتاب الفقه ص ۸۱۹ ج ۱)
(پر ستر دې یې یوه پاکه جامه واچوي او غسل دې ورکړي.
محمد رفعت قاسمي غفرله)

## تر غسل وړاندې، د مړي تر څنګ د تلاوت حکم

پوښتنه: د مړي څنګ ته، تر غسل کولو وړاندې تلاوت جائز
دی که نه؟

ځواب: مړی که په جامه کې ونغاړی نو بیا یې په خوا کې
تلاوت کول جائز دي، کنه نو مکروه دي. تر غسل کولو
وروسته په هر صورت جائز دي. (احسن الفتاوی ص ۲۴۲ ج ۴)

مسئله: مړي ته تر غسل ورکولو مخکې د هغه په خوا کې له
جامو پرته (چې مړی لوڅ وي) د قرآن کریم تلاوت کول مکروه
دي. خو تسبیح ویلای شي یا په بله خونه کې له مړي څخه لرې
تلاوت کولای شي. (فتاوی رحیمیه ص ۹۲ ج ۳، نور الایضاح ص ۱۳۳،
فتاوی محمودیه ص ۴۵ ج ۱۲، آپ کې مسائل ص ۹۷ ج ۳)

مسئله: غوره داده چې حائضه، نفاسه ښځه یا جنب سړی
دې د مړي خوا ته نه ورځي. (بهشتي زیور ص ۶۱ ج ۲، علم الفقه ص ۶۴ ج ۲)

## مړي ته د غسل ورکولو مسنونه او مستحب طریقه

۱- د احنافو په نزد د غسل ورکولو په وخت کې دې مړی پر
لوړ ځای کښیږدي او درې، پنځه یا اووه ځله دې
خوشبو لرونکی شي ورته دود کړي لکه مخته چې وویل شول.

بیادي دمړي دستر له جامو پرته نوري ټولي جامې تري
وباسي . دا هم مستحب دی چي له مړي سره دي له غاسل او
دهغه له مرسته کوونکي پرته بل څوک نه پاتې کیږي. غاسل
دي پر خپل لاس باندي جامه وپیچي او استنجاء دي ورووهي .
مخ دي ورومینځي حو خوله او پوزه دي نه ورمینځي ،
دمینځلو پر ځای دي په یوه لمده جامه باندي وریاک کړي لکه
چي منځکې داخبره یاده شوه. ورپسي دي دمړي د سرا و ږیري
وېښتان په یوه خیره لري کوونکي شي باندي ،لکه صابون یابل
څه ومینځي ، بیا دي مړي پر کیڼ اړخ باندي پري باسي ،ښی
لوری،شاا ومخ دي دري،دري ځلي ورومینځي بیا دي په بل
اړخ باندي واړوي.همداسي دی دري ځله له سره تر پښو او به
وربانديتوی کړي، ترڅو یي اوبه پر ټول بدن آن لاندي
لاوبهیږي. د ګیډي دمینځلو لپاره دي ستوني ستغ نه اړوي
بلکي په اړخ دي ومینځي. دا اول غسل شو. که داسي په ټول
بدن یي اوبه تیري کړي کفایي فرض اداشو . دارنګه به دوه
نور غسلونه ورکړي ترڅو سنت هم اداء شي. بیا غاسل ته
ښایي چي مړي راکښېنوی او پرنس یي په ارام سره لاس تیر
کړي. که کوم شی یي له ګیډي څخه خارج شول،هغه دي
ومینځی.دا دوهم غسل دی.له دې وروسته به یي په اړخ
واړوي او دریم غسل به ورکړي. لومړني دوه غسلونه به په
ګرمو اوبو او په خیری لری کوونکی شي باندي ورکوي .





د دریم غسل په اوبو کې به کافور استعمال کړي. تر هغه
وروسته دي جسد نسم او وچ کړي،خوشبوئي دي ور
ولګوي،لکه چي وړاندي وویل شول.

د غسل د صحت لپاره نیت ضروري نه دی. همدارنګه
د فرض کفایه د اداء لپاره نیت شرط نه دی،خود ثواب
حاصلولو لپاره نیت شرط دی.

(کتاب الفقه علی المذاهب الاربعه ص ۸۲۲ ج ۱)

دتفصیل لپاره وګوری : (علم الفقه ص ۱۸۶ ج ۲، فتاوي دارالعلوم
ص۲۴۵ ج ۵ بحواله ردالمحتار ص ۸۰۳ ج ۱)

**مسئله** :یو ځل مړي ته غسل ورکول فرض دی او دري ځله
سنت دي. له نیت څخه پرته یې غسل اداء کیږي او هغه پاکیږي.
(درمختار ص ۸۳۵ ج ۱)

**مسئله**: که دمړي کوم اندام وچ پاتې شي او تر کفن ورکولو
وروسته ورته یاد شي نو کفن دي ور څخه خلاص کړي
او یوازي هغه اندام دي ورومینځي،(د بیا غسل ورکولو
اړتیایي نشته )خو که یوه ګوته یا دهغې په اندازه کوم ځای
وچ پاتې شي ، تر کفن ورکولو وروسته یې بیرته د خلاصولو
ضرورت نشته .(درمختار ص ۸۳۵ ج ۱)

## تر غسل وروسته که له مړي څخه نجاست ووزي

**مسئله** :که تر غسل ورکولو وروسته دمړي له بدن څخه کوم
نجاست ووزي، څه پروا نلري،که څه هم له بدن یا کفن سره ئې
ونښلي .خو تر کفن کولو وړاندي دپاکوالي په خاطر دهغه

پريمنځل بنه دي . امادا د جنازې د لمانځه لپاره شرط نه دی.
که له کفن ورکولو وروسته خارج شي نو پريمنځل يې ضروري
نه دي، ځکه په دې کې ستونزه ده. د دې صورت په خلاف چې
کفن په نجاست باندي ککړ وي .يعني که ناولی کفن ورو
غوندي نو د جنازې لمونځ يې نه صحيح کيږي.
(کتاب الفقه ص ٨٢١ ج ١)

مسئله : که (د غسل په جريان کي ) د مړي له خيټي څخه په
زور کولو کوم نجاست ووزي، هغه دي و مينځي خو غسل او
اودس دي بيرته نه راګرځوي. (درمختار ص ٨٣١ ج ١)

مسئله :که د کفن له ورکولو وروسته د مړي له بدن څخه
نجاست ووزي ، مينځل يي ضروري نه دي،هغه که د مړي پر
بدن يا کفن باندي هم وي، د جنازې لمونځ يې له مينځلو پرته
صحيح دی .دا حکم د هغي ناولتيا دی چې د مړي له بدن څخه
راووزي،خو هغه چې له خارج څخه د مړي پر بدن يا کفن باندي
ولګيږي نو له مينځلو پرته يې د جنازې لمونځ نه صحيح کيږي.
(احسن الفتاوی ص ١٩٧ ج ٤ بحواله رد المختار ص ٨١٢ ج ١ کتاب الفقه ص ٨١١ ج ١)

**د مړي د غسل په اړه بيلا ، بيلي مسئلې**

مسئله :مړي ته د غسل ورکولو په مهال که د مړي پر بدن
باندي زخم وي او پر هغه پټی لګيدلی وي، هغه دي لري کړي.
(آپ کي مسائل ص ٩٩ ج ٢)

مسئله: که مړی له غسل ورکولو وروسته ،يوه شيبه په کور
کي پاتي شي ، په دوهمه ورځ باندي د بل ځل غسل ورکولو



اړتيا يي نشته . (اپ کي مسائل ص ٩٨ ج ٣)

مسئله : ميړه ته د هغه د ښځي ترمړيني وروسته يوازي د
هغې مخ ته د کتلو اجازه شته، خو د لاس وروړلو اجازه
نشته.غسل ورکول يي هم ميړه ته روا نه دي ،خو که ضرورت
وي نو قبرته يې کښته کولای شي. د جنازي وړل محرم
او غير محرم ته صحيح دي .
(فتاوی محموديه ص ٢١٥ ج ٢ ،فتاوي رحيميه ص ٩٣ ج ٥)

مسئله :.که کوم مړی له حکمي نجاست څخه پاک شوي نه
وي،يعني غسل يې ورکړي نه وي يا د غسل د نه امکان په
صورت کې تيمم نه وي ورو هل شوي،نو د جنازې لمونځ
ورباندي صحيح نه دي. خو که يي پاکيدل ممکن نه وي ،مثلا
له غسل او تيمم څخه پرته دفن شوي وي، او په قبر يي خاوري
هم لويدلي وي،بيا يي پرقبر باندي په همدغه حالت کې هم
لمونځ صحيح دی .

مسئله :که په کوم مړي پرته له غسل او تيمم څخه لمونځ
شوی او دفن شوی وي ،وروسته څرګنده شوه چې غسل
ورکړل شوي نه دی نو د هغه په قبر دي دوهم ځل لمونځ وکړای
شي، ځکه لومړی لمونځ صحيح شوي نه دی ، اوس چې غسل
ورکول امکان نلري نو لمونځ ورباندي صحيح دی .
(علم الفقه ص ١٩٢ ج ٢)

ترڅو پوري چې ميت په قبر کي خراب شوی نه وي لمونځ
ورباندي کيږي .

مسئله: که د چاسر په یو ځای کې وموندل شي، هغه ته غسل نه ورکول کیږي، په هغه ځای کې دي خښ کړای شي او که تر نیم جسد زیاته برخه وموندله شي، نو غسل ورکول ضروري دي، هغه که له سر سره وي او که له سره څخه پرته، خو که نیم جسد له سرسره وي، غسل دي ورکړل شي که سرنه وي نو غسل دي نه ورکول کیږي. که جسد تر نیم کم وي هم غسل دي نه ورکول کیږي هغه که له سرسره وي او کنه.

(بحرالرائق ص ۱۷۴ ج ۱، فتاوی رحیمیه ص ۸۹ ج ۱، درمختار ص ۸۳۵ ج ۱، شامي ص ۸۰۹ ج ۱)

مسئله: تر څو چې دمړي د جسد ډیره برخه یا نیمه برخه خوله سرسره یا تر هغې زیاته برخه نه وي موندله شوي نو غسل ورکول ضرور نه دي. (کتاب الفقه ص ۸۱۲ ج ۱)

مسئله: که داوبو د نه موجودیت په صورت کې مړي ته تیمم وهل شوی وي، بیا اوبه وموندلي شي نو غسل دي ورکړل شي.

مسئله: مړي ته چې غسل ورکړل شي، لمدې جامې دي ورڅخه لرې کړي او کفن دي ورکړل شي. (علم الفقه ص ۱۸۹ ج ۲)

مسئله: مړي ته له غسل ورکولو وروسته، غاسل ته په خپله غسل کول مستحب دي. ځکه که د غسل ورکولو په مهال کوم څاڅکي پرې لویدلي وي هغه به پاک او نظافت به مراعات شي.

(احسن الفتاوي ص ۴۴۳ ج ۴، آپ کي مسائل ص ۹۹ ج ۳، مظاهر حق ص ۴۸۱ ج ۱)



مسئله: مړي ته غسل ورکول په مسلمانانو باندي کفایي فرض دی. که مړی پرته له غسله خښ کړای شي، ټول هغه مسلمانان ګنهکاره دي چې ورباندي خبر دي.

مسئله: که څوک مړی له غسل پرته په قبر کې کیږدي، خو خاوره لا ورباندې اچول شوې نه وي، نو دمړي بیرته را ایستل او غسل ورکول ضروري دي. خو که خاوره ورباندې اچول شوې وي، بیا دي نه را ایستل کیږي. (علم الفقه ج ۲ ص ۱۸۵)

مسئله: دمړي وېښتان دې نه ږمونځوي، نوکان یا وېښتان دې نه غوڅوي، که کوم نوک مات شي، دهغه په بیلولو کې څه خبره نشته. (علم الفقه ج ۲ ص ۱۸۷ فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۴۸ کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۲۰)

مسئله: که اوبه نه وي او مړي ته یې تیمم ورواهه، وروسته اوبه پیدا شوي غسل ورکول لازم دي. (علم الفقه ج ۲ ص ۱۸۹)

مسئله: مړي ته چې په کومو اوبو غسل ورکول کیږي، په هغوی کې خوشبویي یا نور څه ګډول مستحب دي. که سړی داحرام په لباس کې وي او که نه وي ځکه مړ شوی انسان غیر مکلف دی او له مړینې سره احرام هم ختمیږي. همدا وجه ده چې دهغه سر پټیږي په خلاف ددې، که ژوندی وي او په احرام کې وي. (کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۱۸)

مسئله: دا مستحب دی چې غسل ورکوونکی پوه وي، تر څو بشپړ غسل ورکړي، که له مړي څخه کوم بد شی ووینې په هغه پرده واچوي، که ښه خبره ورڅخه ووینې هغه بیان کړي. (کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۲۰)

(دمړي په سترګو کې رانجه یا کاجل لګول منع دي.)

مسئله: که بې لمانځه سړي غسل ورکړي، غسل کېږي خو غوره داده چې لمونځ کوونکی او دشریعت پابند سړی ورته غسل ورکړي. (فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۹۳)

مسئله: دا مستحب ده چې تر غسل وروسته دمړي بدن په یوه جامه وچ کړای شي. تر څو کفن لوند نشي.
(کتاب الفقه ج ۲ ص ۸۲۰ – علم الفقه ج ۲ ص ۱۸۹)

## روح غسل او نور څه ويني

له ابن دینار رضی الله عنه څخه روایت دی، څوک چې ومري، دهغه روح دیوې ملایکې په لاس کې وي، خپل بدن وینې چې څرنګه غسل ورکول کېږي، څرنګه کفن ورکول کېږي. جسم یې لا په تخته پروت وي چې ملایکه ورته وایي: خلک چې ستا ستاینه کوي هغه واوره (دراتلونکو نعمتونو زیری دی.) (شوق وطن ص ۲٦ – احکام میت ص ۲۵)

## مړي ته تر غسل ورکولو وروسته څرنګه کفن ورکړل شي؟

مسئله: غوره کفن هغه دی چې دسپین رخت وي، هغه که نوی وي او که زوړ. هغه جامه چې نارینه وو ته یې په ژوند اغوستل مباح وي تر مړینې وروسته یې کفن هم ورته مباح دی. هره جامه چې په ژوند کې یې اغوستل ورته مکروه وي، کفن هم ورڅخه مکروه دی. نو نارینه وو ته دوریښمو، یا ګېړ رنګه او زعفراني جامه کفن کول مکروه دي. که له دې پرته بله جامه نه وي نو بیا بیله خبره ده. ښځو ته له هم داسې



جامو څخه هم کفن جائز دي. یعني رنګه کفن هم ورکول کېدلای شي.

نارینه ته دې له داسې جامې څخه کفن ورکړل شي کومه چې دې یې عیدګاه ته دتللو لپاره اغوندي او ښځې ته دې له داسې جامې څخه کفن ورکړل شي چې دایې دپلار کره دتللو په مهال اغوندي. (کتاب الفقه ص ۸۲۹ ج ۱)

مسئله: په حدیث شریف کې دي (که تاسو خپل ورور ته کفن ورکوئ، ښه کفن ورکړئ.) (مشکوة ج ۱ ص ۱۴۳)

مسئله: په درمختار کې دي چې ښه کفن سپین کفن دی.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲٦۴ درمختار ج ۱ ص ۸۱۰)

مسئله: ګران بیه کفن مکروه دی، خو دتیټې بیې وال هم نه ښایي. (علم الفقه ج ۱ ص ۱۹۱)

مسئله: مړي ته کفن ورکول، پر مسلمانانو باندې کفایي فرض دی. په دې معنی چې که څوکسان داکار وکړي نو دټولو مسلمانانو ذمه خلاصه شوه.

مسئله: کفن به لږ تر لږه دومره وي چې دمړي ټول بدن وربان دي پټ شي، که نروي او که ښځه. که تر دې اندازې کم وي نو بیا پر مسلمانانو کفایي فرض پاتې شول.
(کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۲۷)

(دمړي په ترکه کې تر هر څه وړاندې دهغه دتجهیز او تکفین لګښت کېږي. خو داکار دې سم دسنت په طریقه برابر وشي. کفن دې دمړي له حیثیت سره سم ورکړل شي. رخت دې سپین

وي، د دومره بیې دي وي چې هغه په ژوند کې یې اغوستل او
له کوره یې ووت او له خلکو سره یې مخامخ کیده. بازار،
مسجد او نورو ځایونو ته یې تو. دومره ارزان بیه دي نه
ورکول کیږي چې په هغه سره یې تحقیر او تذلیل وشي او نه
دي دومره ګران بیه وي چې پکې اسراف وشي او یا د وارثانو
حق ته پکې زیان ورسیږي. که دنوي جامي وس نه وي یا کوم
داسې خپلوان یې نه وي چې کفن ورکړي نو پاکه جامه هم د کفن
لپاره کافي ده. ځکه د احد په غزوه کې زوړ څادر په کفن کې
ورکړل شوی دی. محمد رفعت قاسمي)

## دکفن رنګ څه ډول وي؟

مسئله: دکفن لپاره سپینه جامه غوره ده. بل ډول هم جواز
لري. کوم رنګ او کومه جامه چې په ژوند کې جواز لري، هغه
دکفن لپاره هم جواز لري. کومه چې په ژوند کې نا جایزه ده، په
کفن کې هم جواز نلري.
(فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۲۲۴ دشامي ج ۱ ص ۵۸۰ په حواله)

مسئله: دمیرمنو لپاره هم غوره کفن سپین دی، خو رنګه هم
ورته جایز دی، که ټول رنګه وي او که یې لږ.
(امدادالفتاوی ج ۱ ص ۸۱۴)

مسئله: په جامه کې که ښکاره څه ناولتیا نه وي، پاکه وي
له هغې څخه کفن هم جایز دی. که پکې څه ناولی شی وي نو
کفن یې جواز نلري، پلټنه دې وشي.)
دمړي په دي (ناپاکه جامه) کې څه دخل نشته، هغه بری الذمه



دی. که مړي وصیت وکړي چې له ناپاکې جامي دي ورته
کفن ورکړي یا ورته علم وي چې له ناپاکې جامې څخه کفن
ورکوي او هغه یې منع نکړي بیا ګنهګار یږي. (فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۲۲۶)

## کفن دچا په ذمه دی؟

مسئله: دمړي کفن دي دهغه له شخصي شتمنې څخه ورکړل
شي، هغه چې دبل چا ورسره شریکه نه وي لکه درهن (ګرو)
صورت چې دی.

که دمړي شخصي مال او شتمني نه وه، نو کفن یې دهغه چا
په ذمه دی چې په ژوند کې یې لګښت ورباندي لازم ؤ.
(کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۲۷)

مسئله: دمړي کفن دي هغه څوک ورکړي چې په ژوند کې
یې کفالت په غاړه وي، که له مړي څخه څه پاته وو او که نه وو.

مسئله: لنډه دا چې دچا په غاړه او ذمه دژوند خوړل څښل و،
هغه به یې تر مړینې وروسته کفن هم ورکوي. (علم الفقه ج ۲ ص ۱۹۱)

مسئله: که دمړي کوم غیر مسلم ملګری دکفن پیسې
ورکړي څه خبره پکې نشته. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۵۰)

مسئله: که داسې څوک نه وي چې دمړي دژوند لګښت
ورباندي لازم ؤ، نو له بیت المال څخه به کفن ورکول کیږي خو
په دې شرط چې بیت المال د مسلمانانو وي او اخستل هم
ورڅخه شوني وي. کنه په هغه مسلمانانو باندې لازم دی چې
وس لري. همداسې دجنازي او نورو لګښتونو خبره هم ده،
لکه ترهدیرې رسول، دخښولو لګښت او نور. (کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۲۷)

## دمیرمنې کفن دچا په ذمه دی؟

مسئله :دمیرمنې کفن له منل شوي (مفتي به) قول سره سم دمیړه په ذمه دی.(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۲۴)

مسئله :دمیرمنې کفن دوالدینو په ذمه نه دی.د شریعت داسې حکم نشته،بلکې دشریعت خلاف کاراو رواج دی.شرعاً کفن او دفن دمیړه په ذمه دی.که یې میړه وس نه درلود نو دمیرمنې دترکې له مال څخه دې ورکړي.

(فتاوی محمودیه ج ۲ص ۲۷۷ دشامي ج ۱ ص ۸۱ ۵ په حواله،دارالعلوم فتاوی ج ۵ ص ۲۸۵)

مسئله :که مړی دچا میرمن وه او په ترکه کې یې شتمني هم وه،بیا یې هم په میړه چې دکوم حیثیت خاوند وي،دمیرمنې کفن واجب دی.(کتاب الفقه ج۱ ص ۸۲۷)

(ځینې ځایونه دنجلۍ دکفن او خوراک څښاک مصارف په والدینو یا وررو او نورو لازم بولي.په دې کې دشریعت کوم اصل نشته.دایو غلط رسم او رواج دی.- محمد رفعت قاسمي)

## دغیرمسلم دوست تجهیز او تکفین

مسئله :دشریعت حکم دادی چې که دسړي یا ښځې کوم دوست،والدین یا نور په کفر ومړي،په سنت طریقه دې تجهیز او تکفین نکوي،په ناپاکه جامه کې دې پټ او په کنډې کې دې واچوي.که هغه مړه شوي دخپل مذهب مطابق عمل وصیت کړی وي،عمل دې وربانديې نه کیږي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۶۷ ،ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۲ په حواله)

مسئله :مسلمان دخپل غیرمسلم دوست په کفن ،دف... جنازه کې ګډون کولای شي خو پرته له اړتیا دا کار بنه...



مسئله :که کوم غیرمسلم دکوم مسلمان له جنازې سره دکوم ملاقات یا پیژندنې له وجې ځي،هغه دې نه منع کیږي ځکه داکار داهل اسلام له اخلاقو څخه لرې دی.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۸۳ ،دردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۲ په حواله)

## په تجهیز او تکفین کې که کومه نیمګړتیا پاته شي؟

مسئله :دمړي په تجهیز،تکفین،غسل یا نورڅه کې که بې احتیاطي وشي،مثلاً په ناجایزه بیه کفن واخستل شي.یا دغسل په اوبو کې کوم نجاست وي،له دې امله په مړي باندې هیڅ مواخذه نشته،مجبوراً هغه معذور دی.په څه شي کې که بې احتیاطي وشي (او مړی جنب کړای شي) نو توبه او استغفار دې وایې او د مړي لپاره دې دمغفرت دعا کوي او ثواب دې ورته غواړي.دالله تعالی ارشاد دی:لاتزر وازرة اخرى .(القرآن) یعني دبل په ګناه سړی نه ګنهکار کیږي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۷۰)

## دکفن لپاره مرسته غوښتل

پوښتنه :کوم مسافر راغی وفات شو،دهغه دتجهیز او تکفین لپاره مرسته ټوله شوه،له هغه څخه څه مبلغ پاته شو،دهغه داستعمال کوم ځای ...؟

ځواب:که د... ...چا ورکړي دي،بیرته دې هغه ت... ...دا پیسې چا ...

مسئله : که دتکفین او تجهیز لګښت بالغ وارث له خپلې شتمنۍ څخه ورکړي، نو دتجهیز او تکفین دلګښت چې له سنت سره برابر شوي وي، دترکې له شتمنۍ څخه اخستلای شي .که دبې وزلو او نورو په خوړلو لګیدلي وي هغه دترکې له مال څخه اخستلای نشي.(فتاوی دارالعلوم ج۵ ص ۲۷۱ دسراجي ص ۴ په حواله)

## دکفن ډولونه

مسئله: کفن دري ډوله دي :سنت کفن ،کفایي کفن اوضرورت کفن . دا دري واړه به یا دنارینه لپاره وي او یا به دښځې لپاره .

دنارینه او ښځې په سنت کفن کې قمیص (کمیس) ، ازار اوڅادر شامل دي .

قمیص له غاړې څخه نیولي بیا ترپښو پورې وي . ازار له تندې څخه بیا ترپښو پورې وي او څادر هم له سره بیا ترقدمونو پورې وي . د ښځې لپاره له دې سره ،سره پړوني اوسینه بند هم وي ،په قمیص کې به لستوڼي او څاکونه نه وي ،څادر دواړو لوروته څه تیروي . دسر له خوا به یې هم په یو شي باندې وتړي اودپښو له خوا هم ، ترڅو دمړي د بدن کومه برخه ښکاره نشي .

که یې دخلاصیدلو احتمال وي نو له کفن څخه دې یوه ټوټه (ریبنکی) وباسي او پرمابین دې وربانندې وتړي .

مسئله :دښځې لپاره کفایه کفن ؛یو ازار ،څادر ،پړوني اوسینه بند کافي دي . قمیص دې نه وي .همدومره کفن پرته



له کراهته جائز دی .

مسئله : ضروري کفن دادی چې دضرورت په وخت کې پیداشي ، هغه که یوازې یوه جامه ،دعورت دسترپه اندازه وي هم بس دی .

مسئله : که همدومره اندازه کفن هم نه وي، نو په اذخرویعني وښو دې پټ کړي ،له دفن کولو وروسته دې پرقبرلمونځ وکړي .

مسئله :که دمړي شتمني کمه او وارثان ډېر وي یا مړی پوروړی وي،په کفایي کفن دې اکتفاوشي .(کتاب الفقه ص۸۳۰ ج۱)

مسئله :لومړی دې کفن دري یا پنځه ځله په خوشبویي لوند شي بیا دې مړی په کفن شي .(بهشتي زیور ج۲ ص۵۶ علم الفقه ص۱۹۰)

## دکفن دغوټو حکم

مسئله :تر کفن کولو وروسته ،کفن ته دري غوټې ورکول کیږي. که مړی سړی وي او که ښځه .

۱- له سرسره . ۲- په ملا کې . ۳- دپښو لورته. په قبر کې ترایښودلو وروسته دې دا دري واړه غوټې پرانستل شي. ددې دریو ځایونو د غوټو ورکولو ګټه داده چې دجنازې دپورته کولو او وړلو په مهال کفن نه خلاصیږي خو په قبر کې ترایښودلو وروسته داویره نشته.نو هغه دې خلاصې شي. دسړي او ښځې دواړو دې دا غوټې خلاصې شي.که دکفن دخلاصیدلو ویره نه وه نو دې ترلو ته اړتیا نشته.

کبیري دمنیې شرح (ج ۱ص ۵۳۸) دا دري غوټې یې له همدې سره مقیدې کړې دي. او په قبر کې تر ایښودلو وروسته دخلاصولو حکم رسول الله (صلی الله علیه وسلم) سمره (رضی الله عنه) ته کړی دی. (فتاوی محمودیه ج۲ ص۴۱۵، دعالمګیري ج۱ص۱۶۰ په حواله، زیلعي ج۱ص۲۳۸، مجمع الانهر ج۱ص۱۸۲، فتاوای دارالعلوم ج۵ص۲۶۱، امدادالفتاوی ج۱ص۸۳۹، کفایت المفتي ج۴ ص۲۵)

## په کفن کې ګریبان کوم لورته شي

پوښتنه: دسړي او میرمنې دکفن ګریبان (جاغه) کوم لورته کیږي، مخته که دغاړې شاته؟

ځواب: دسړي او ښځې که کفن برابر وُ نو په دې کې څه حرج نشته. ځکه ډیر فقهاء درع او کمیس سره یو بولي او کوم فقها چې پکې توپیر کوي له هغو څخه یې هم لزوم ثابت نه دی، دا کار په عادت پورې اړه لري.

اوس چې عادت داسې دی چې دسړي او میرمنې دواړو دګریبان چاک په سینه وي، نو ددواړو د کفن لپاره دا صحیح ده او که یې توپیر وکړي، هم څه خبره نشته. لنډه دا چې دسړي جاغه مخته او دمیرمنې شاته وي، دا توپیر لازم نه دی.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص۲۶۰ دغنیة ص ۵۳۷ په حواله)

## په کفن باندې طیبه کلمه لیکل

مسئله: دمړي په کفن باندې کلمه په ختې لیکل او په قبر کې تر ایښودلو وروسته په خښته دپاسه په لرګي باندې کلمه لیکل او له سر سره دغرب لورته ایښودل او دخاورو په وړو، وړو لوټو دا خلاص سورت ویل او لوټې له مړي سره په لحد کې اچول. دا ټول کارونه



دشریعت خلاف دي او کوم اصل نلري، دداسې رواجونو پرېښودل ضرور دي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۸۱)

مسئله: دمړي په تندي دشهادت په ګوته له رنګ پرته هسې په اشاره سره، بسم الله الرحمن الرحیم او په سینه باندې لا اله الا الله محمد رسول الله، په لیکلو کې څه ستونزه نشته.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۹۹، دردالمحتار ج ۱ ص ۸۴۷ باب صلاة الجنایز په حواله)

مسئله: نن سبا دخلکو په عقیده کې فساد څرګندیږي، په دې (له سیاهي پرته په اشاره لیکل) کې دضروري بللو خیال کوي. له داسې کارونو څخه په ګناوو کې زړورتیا پیښیږي، نو داسې لیکل هم جایز نه دي. (احسن الفتاوی ج ۱ ص ۳۵۱ – فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۳۹۸ دشامي ج ۱ ص ۸۴ په حواله)

مسئله: خو په کوم صحیح حدیث کې ددې، یعنې په اشاره سره دلیکلو ثبوت نشته، له همدې امله دا باید مسنون یا مستحب ونه ګڼل شي. (علم الفقه ج ۲ ص ۲۰۸)

## په کفن یا نور څه خوشبویي وهل

مسئله: دمړي دکفن کولو په مهال، جنوط چې له څو پاکو خوشبویه شیانو مرکب وي، دمیرمن دسر په ویښتانو او دسړي دسر او ږیرې په ویښتانو ووهل شي. دسجدې کولو په اندامونو یعنې تندي، پزې، وزګویو، دځنګانه سترګیو او پښو چې دسجدې په مهال له ځمکې سره لګیږي، کافور ووهل شي. دا حکم دسړي او میرمنې دواړو لپاره دی.
دسړي لپاره دې له حنوط سره زعفران او نور رنګین خوشبویه شیان نه ګډوي، خو میرمنې ته اجازه شته. دفقه په

ځینو کتابونو کې په ټول جسم دخوشبویۍ لګولو اجازه ورکړل شوې ده.خو دستر(له نوتر ځنګانه) کتل او لاس وروړلو دي ځان وساتي . ددي صورت داسې کیدلای شي چې کفن وغوړوي او حنوط وربانديې ووهي او کفن په مړي واړوي، ټول جسم به یې معطرشي، داسې دستر له لیدلو او لاس وهلو څخه حفاظت کیږي.

(فتاوی رحیمیه ج ٦ ص ۳۴۷ د جوهریه نیره ص ۱۰۵ په حواله)

## پر کفن ګلان اچول

مسئله :دمړي پر جنازه دګلانو دڅادر اچولو کوم اصل نشته. درسول الله صلی الله علیه وسلم ،صحابه وو او تابعینو له وینا او عمل څخه ثابت شوي نه دي. که داشیان دمړي لپاره ګټوروای، نو دې جنابانو به ورڅخه سپما کړي نه وه . نوپه جنازه باندې دګلانو څادر اچول مکروه تحریمي او بدعت دی.

مسئله :په جنازه باندې دګلانو څادر اچول بدعت دی، له دغسې جنازې څخه انکار کول صحیح دي.

(احسن الفتاوی ج۱ص ۲۷۸ –فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۹۸– مالابدمنه ص ۱۳۱)

## دمیرمنې په جنازه سور څادر اچول

پوښتنه :میرو بنه میرمن که مړه شي، دهغې په جنازه یو سور څادر اچول، دداسې جنازي لمونځ کول څرنګه دي؟

ځواب :دجنازې لمونځ په دې هم صحیح دی. د سره دڅادر پابندي چیري هم ثابته نه ده .(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۲۹۸)

مسئله :له مسنون کفن سره ،سره په جنازه دپاسه سپین څادر



اچول څه خبره نه ده ، لکه داعام رواج چې دی ، خو دمیرمنې په جنازه رنګه جامه اچول ښه نه دي. اماکه هغه پاکه وي نو ورسره لمونځ کول هم جایز دی، دلمانځه لپاره دهغه لري کول ضرور نه دي ،بلکې غوره داده چې بیا رنګه جامه وربانديې وانه چوي، ځکه مستحب داده چې په مړي باندي سپینه جامه پرته وي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲٦۱ ،ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۰ ، باب الصلوة په حواله)

مسئله :په مړي باندي سیوری دهغه داعمالو له امله وي، د تودوخې له امله چتري یا دبل څه سیوري مړي ته ضرور نه دی. دا بدعت او ناروا دی.شال اچول (خصوصاً په میرمنو) دکفارو او جاهلیت رواج دی.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۱۰ –مشکوة باب غسل المیت ج ۱ ص ۱۴۴)

## دسړي کفن

دسړي دکفن جامې دري دي:

۱–ازار(لنګ) له سر څخه ترپښو نژدې دوه نیم متره .

۲–لفافه (څادر هم ورته وایي) تر ازاریې اوږدوالي ۴ ګره (دلاس څپک)زیات وي، نژدې چارک کم دري متره .

۳–کرته له لستونو پرته (داکمیس هم بلل کیږي) له غاړې ترپښو ، نژدې دوه نیم یا چاریک کم دري متره.

## دمیرمنې کفن

دمیرمنې دکفن لپاره مسنوني جامې پنځه دي:

۱–ازار له سره ترپښو (دسړي په څیر) .

۲–لفافه تر ازار اوږده .(دسړي په څیر) .

۳- کرته له لستونو پرته، له غاړې تر پښو پورې. (د سړي په څیر)

۴- سینه بند، له بغله تر ورنونو پورې ښه دی، که له نو څخه هم صحیح دی، دومره سور وروي چې سره بند شي. (نژدې دوه متره)

۵- سربند چې ټکري هم بلل کیږي، دري لاسه اوږد (نژدې یو نیم یا دوه متره.)

دمیرمنې دکفن دري جامې هم هغه دي چې دسړي کفن دی. خو دوې جامې یې زیاتې دي: یو سینه بند او بل سربند (ټکری).

(بهشتي زیور ج ۲ ص ۵٦)

مسئله: دسړي دري جامې او دښځې پنځه جامې کفن مسنون دی. خو که دسړي دوې جامې (ازار او لفافه) او د میرمنې دري جامې (ازار، لفافه او سربند) وي هم کفن یې صحیح دی. او همدغومره کفن هم بس دی. تردې کم کفن ورکول مکروه او بد دی. خو که کومه مجبوري وه نو تر دې کم هم صحیح دی.

(بهشتي زیور ج ۲ ص ۵٦- احکام میت ص ۵۵)

مسئله: دمیرمنې پنځه جامې کفن سنت دی: لومړی کرته، دوهم ازار، دریم سربند (ټکری) څلورم څادر او پنځم سینه بند.

ازار له سر څخه تر پښو پورې او څادر تر هغه یو لاس اوږد وي او کرتې (کمیس) له غاړې تر پښو پورې. خو دې نه غاړه وي او نه هم لستوڼي. سربند ټکري دري لاسه اوږد وي، سینه بند له سینې څخه تر ورنونو پورې او دومره اوږد وي چې وتړل شي.

مسئله: دمیرمنې سینه بند، که له سینې څخه تر نو پورې وي هم صحیح دی. خو تر ورنونو پورې ښه دی. (بهشتي زیور ج ۲ ص ۵۴ دبحر ج ۱ ص ۲۸۹ په حواله)



## دماشومانو کفن

مسئله: که نابالغ ماشوم یا ماشومه ومري، ځوان لا نه وي خو ځوانۍ ته نژدې وي، نو دهلک کفن دري او دنجلۍ کفن پنځه جامې سنت دی. که نجلۍ ته دپنځو په ځای دري او هلک ته دوه جامې کفن ورکړل شي، هم بس ده. کوم حکم چې دبالغ سړي او میرمنې دی، هغه دنابالغ هلک او نجلۍ هم دی. دبالغانو لپاره حکم په تاکید سره دی خو دنابالغو لپاره بهتر دی. (بهشتي زیور ج ۴ ص ۵۵- علم الفقه ج ۲ ص ۱۹)

مسئله: دبالغ او غیربالغ محرم او حلال ټولو کفن یو ډول دی. (علم الفقه ج ۲ ص ۹۱)

مسئله: کوم ماشوم یا ماشومه چې په کم عمر کې ومري که مسنون کفن نه ورکړل شي او هلک ته یوه او نجلۍ ته دوې جامې ورکړي، همدا کفن هم صحیح دی. دجنازې لمونځ او تدفین یې هغسې وشي.

(احکام میت ص ۵۰، علم الفقه ج ۲ ص ۱۹۱، کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۴۸)

مسئله: که کوم ماشوم مړ پیدا شي یا دحمل اسقاط وشي (ماشوم نقصان کړي) دهغه لپاره کفن، په یوه جامه کې پیچل کفایت کوي، مسنون کفن ته یې اړتیا نشته.

(علم الفقه ج ۲ ص ۱۹۰)

## په حج کې د مړه شوي کفن

مسئله :ځوک چې حج یا عمرې ته تللي وي او د احرام په حالت کې مړ شي ، سړی وي که میرمن، د هغه تجهیز ،تکفین، غسل او نور څه داسې کیږي لکه د نورو عامو خلکو چې کیږي ځکه په مړینه یې احرام ختمیږي.نو د هغه سر پټول ،خوشبویې وهل او نور څه یې داسې کیږي لکه د عامو مسلمانانو چې کیږي.(فتح الملهم :ج ۳ ص ۱۴۱ –شامي ج ۱ ص ۸۰۳)

## د کفن د رخت څخه مصلی (جانماز) بیلول

مسئله :مصلی (جای نماز) په کفن کې داخل نه دی،هغه دې په کفن کې نه شمیرل کیږي. که یې هغه ټوټه چاته ورکړي ، هغه یې مالک ګرځي. خو لومړی د دې ټوټې ایښودل د جای نماز لپاره ضرور نه دي ، که یې څوک په غلطۍ سره بیله کړي نو مالک یعني ولي دې وساتي یا دې کوم اړ شخص ته ورکړي . که یې ولي امام ته ورکړي ، امام ترې څه شی جوړ کړي او وایې غوندي نو لمونځ ورپسې صحیح دی.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۶۳ او ۲۸۳)

مسئله :له کفن څخه جامه سپمول او امام ته مصلی جوړول یو غلط رواج دی، ناجایز دی او د کفن په مصرف کې داخل نه دی.(احسن الفتاوی ج ۱ ص ۳۷۹)

(د کفن په هکله چې په حدیثونو او د فقه په کتابونو کې کومې څرګندونې راغلي دي ، په هغوی کې د مصلی (جای نماز) ذکر نشته او د کفن جامه که یې څوک چمتو کوي



پاکوالی پکې شرط دی .کومه جامه چې په بازار کې پیدا کیږي هغه پاکه ده ، که یې په ناپاکي علم نه وي، پاکه شمیرله کیږي. محمد رفعت قاسمي)

## په کفن کول

کله چې مړي ته غسل ورکړل شي کټ دې دري ،پنځه یا اوه ځله له لوبان او نور څه پاک شي ، کفن په کټ وغوړوي او مړی دې پکې کښیږدي، له پزې ، غوږ او خولې څخه یې هغه پخته (پنبه) لرې شي چې د غسل په مهال ایښودل شوې وي.خو د کفن د غوړولو او د مړي پکې د ایښودلو طریقه د سړي او میرمنې څه فرق لري .نو دلته به بیل ، بیل ولیکل شي.

## د سړي د کفن کولو طریقه

د سړي لپاره د کفن ورکولو طریقه داسې ده چې په کټ باندې لومړی لفافه وغوړوي بیا ازار او بیا د کرته (کمیس) نیمه برخه چې نوره یې د سر لور ته کښیږدي. بیا مړی د غسل له تختې ورو راپورته کړي او په کفن کې یې کښیږدي او د کمیس چې کومه حصه د سر لور ته ایښې ده ، هغه ور باندې را واړوي او ګریبان یې غاړې ته شي او د پښو لور ته ورسول شي. تر غسل وروسته چې یې جامه ور باندې اچولې وه، هغه ترې لرې شي ، په سر او ږیره یې څه خوشبویې ووهله شي .خو په یاد دې وي چې نارینه ته زعفران نه استعمالیږي.بیا په تندي،پزه ،ورغوو ،د ځنګنونو په سترګیو او دواړو پښو (هغو اندامونو چې ور باندې سجده کیږي) کافور ووهل شي.

بیا دازار کینه خوا په میت را واړول شي ،وروسته ښی
لورې. یعني داسې چې چپه خوا لاندې او ښې خوا باندې شي
بیا لفافه هم داسې را واړوي چې چپه خوا لاندې او ښې خوا
دپاسه را واړوي .بیا په یوه ټوټه دکفن دسر او پښو لورې بند
شي او په ملا کې هم په یوه ټوټه بند شي، ترڅو په وړلو کې
خلاص نشي.

## دمیرمن کفن کول

دمیرمنې لپاره لومړی لفافه اچول، بیا ورباندې سینه بند
بیا ازار او وروسته دکمیس لاندینۍ برخه او برسیرنه له سر
سره کنبېښودل شي ،بیا مړی دغسل له تختې څخه ورواخلئ
او په کفن یې کنبېږدئ او دکمیس پاته برخه ورباندې دسر له
لورې واچوئ، دکفن سورې غاړې ته راشي او دپښو لورته
کش سي. دغسې چې کمیس اچولی وي .هغه جامې چې
ترغسل وروسته ورکړل شوي ده ، ترې لرې شي. په سریې عطر
یا بله خوشبویې ووهله شي ، میرمنې ته دزعفرانو استعمال
هم کیدلای شي بیا په تندې ،پزې ، ورغوو ، سترګیو او پښو
کافور ووهي. بیا دسر ویښتان دوه ځایه شي په کمیس دپاسه
په سینه باندې ښې او چپ لورته واچول شي . بیا سربند
(ټکری) په سر او ویښتانو واچول شي او بند نشي. بیا مړی په
ازار کې داسې پټ شي چې چپ لورې لاندې او ښې لورې
سربیره شي او سربند یکې دننه راشي بیا سینه بند په سینه
دپاسه تر بغلونو ووړې او دځنګنونو ترحد ښې او چپ لوړته



بند شي ،بیا لفافه داسې را واچوله شي چې چپه خوا لاندې
او ښې خوا پورته شي. بیا کفن دسر او پښو لورته او.هم په ملا
کې په یوه ټوټه استنل شوي څیره وتړل شي. ترڅو په وړلو کې
خلاص نشي.

په پاسنې ترتیب سینه بند په ازار دپاسه او په لفافه کې دننه
کیږي ،خو که هغه په کمیس دپاسه تر ازار لومړی وتړل شي هم
جایز دی. که تر ټولو جامو دپاسه یعنې تر لفافې هم بهر وتړل
شي هم صحیح دی.

مسئله :ځینې کسان په کفن کې هم عطر وهي، په عطر
وهل شوي پخته یې په غوږوو کې ږدي. دا ټوله ناپوهې ده،
څه چې په شریعت کې را غلي دي په هغوی زیاتوالی مه کوئ.
(احکام میت ص ۵۷- علم الفقه ج ۲ ص ۱۹۲ ،کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۸۵)

## دکفن مسائل

مسئله : کفن له پاکو جامو ورکول کیږي. ترغسل وروسته
مړی پاک دی.نو دزمزم اوبه ترغسل وروسته په مړي او کفن
باندې دتبرک لپاره پاشل جایز دي. (فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۲۳۳)

مسئله :مړي ته چې غسل ورکړل شي دکفن ورکولو په
مهال که نجاست ترې ووزي، غسل دې بیا نه ورکوي بلکې
یوازې هغه نجاست دې ومینځل شي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۶۷ ،ردالمحتار ج ۱ ص ۸۰۲ په حواله)

مسئله :په کفن باندې خوشبویې لګول مستحب دي. خو
هغه خوشبویې چې دسړي لپاره په ژوند کې منـــــــــع ده

(لکه زعفران یا نور) په کفن هم دهغوی لګول منع دي.
(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۹۹ دطحطاوي ج ۱۰ ص ۳۶۷ په حواله)

مسئله: مړي ته درنجو پوري کول ښکلا ده نو ناجایز ده.
(امداد الفتاوی ج ۱ ص ۷۱۲)

مسئله: په کوم څادر چې کلمه شریفه لیکلي شوي وي که په مړي ولویږي دادکلمې او آیاتونو داحترام خلاف ده.
(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۰۱)

مسئله: په جنازه باندې داسې څادر اچول چې ورباندي کلمه یا ایاتونه لیکل شوي وي، کوم ثبوت نلري او پکې دبې ادبې ویره شته نو ځکه جواز نه لري. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۳۰)

مسئله: مړی که عالم وي که عام سړی، په سریې عمامه تړل مکروه او بدعت دی. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۶۰ – احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۰۶ – ردالمحتار ج ۱ ص ۸۰۶)

مسئله: که دزمزم په اوبو لمده شوي او بیا وچه شوې جامه په کفن کې دبرکت اپاره استعمال شي بې ادبي غوندي څه پکې نشته. (فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۳۶۲)

مسئله: دکفن ورکولو په مهال دي دمړي لاسونه په ګیډه نه ږدي، بلکې دواړه لاسونه دي سیده لـه ورنو سره برابر ږدي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۵۹ دردالمحتار باب صلوة الجنائز ج ۱ ص ۸۰۳ په حواله)

مسئله: په ژوند کې خپل کفن او قبر تیارول جواز لري.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۵۷، علم الفقه ج ۲ ص ۲۰۸)

کفن تیار ساتلی شي خو په وقف شوي هدیره کې قبر کیندلای نه شي. رفعت قاسمي.



مسئله: دنابالغ هلک او نجلۍ لپاره چې دلویانو په شیر کفن ورکول غوره دي خو داهم جایز دی چې یوه یا دوه جامې کفن ورکړي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۵۷، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۰۹ په حواله)

مسئله: دمړي دجنازې دپاسه چې کوم څادر اچول کیږي، دهغه څنډې ګنډل کیدلای شي، خو کفن به بیله ګنډلو وي، لاندې جامه به هم بې ګنډلو وي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۷۱)

که لاندې دجامې سور کم وي، هغه لـه غبرګو ټوټو جوړول صحیح دی. رفعت قاسمي.

مسئله: دمیرمنې په کفن کې سینه بند تر لفافې لاندې او په کمیس دپاسه وي، یعني لفافه په لیدلو سره تر ټولو سربیره وي او بیا به سینه بند، خو تر لفافې دپاسه وي هم خرابې نلري، جایز ده. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۵۸، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۰۳ په حواله)

که دکوم انسان قبر وسپړل شي یا دڅه لـه امله جسد را وایستل شي او کفن ونلري، هغه ته هم مسنون کفن ورکول مناسب کار دی، خو چې جسد شهیدلی نه وي، که شهیدلی وي فقط په پاکه جامه کې یې نغښتل کافي دي. (علم الفقه ج ۲ ص ۱۹۱)

مسئله: دکعبې شریفې دپوښ ټوټه په کفن کې ایښودل جایز دي. دبرکت سبب دی. که دپوښ په ټوټه کلمه لیکله شوي وه که هغه دمړي په سینه کښیښودله شي او خښ شي، که څه هم صحیح ده خو ښه داده چې دکعبې دپوښ داسې ټوټه په سینه کښیښودله شي چې کلمه ورباندې لیکله شوې نه وي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۶۵)

## د جنازې لپاره په کټ څرنګه وي؟

پوښتنه :د جنازې لپاره داسې کټ (چارپايي) اېښودل چې هر څوک يې اوچت کولای نشي، جواز لري او که يې نلري؟

ځواب :په جواز کې خو يې کومه خبره نشته ، خو سپکه چهارپايي غوره ده چې ټول خلک يې په آسانۍ سره پورته کولای او په اوږو يې اېښودلای شي. (فتاوى دارالعلوم ج ۵ ص ۵۸۴)

مسئله :که له بان يا بل څه څخه چهارپايي اوبدل شوي وي په هغې جنازه اېښودل او د جنازې لمونځ کول جواز لري. که هغه ناپاکه وي پاکه جامه دې ور باندې ولويږي او مړی دې باندې کېښيږدي. (فتاوى دارالعلوم ج ۵ ص ۲۲۸ او کفايت المفتي ج ۴ ص ۲۰۵)

مسئله:دغير مسلم په څير د مسلمان جنازه د بانسونو په زينه اېښودل او وړل صحيح نه ده. د مسلمان جنازه په عزت او احترام سره وړله کېږي. مړی په سرير (پلنګ ، کټ، چارپايي) وړل د رسول الله صلى الله عليه وسلم له وخته تر دا ننه پورې رواج ده. جنازه داسې تخت يا چارپايي ته ويل کېږي چې ور باندې مړی اېښي وي. (فتاوى دارالعلوم ج ۵ ص ۲۸۵ ،ردالمحتار ج ۱ ص ۷۹۵ په حواله)

## د مړي په کټ څه شی اچول

مسئله :د مړه د جنازې لپاره په کټ باندې د کومې توشې يا پوزکي (بوريا) د اچولو ضرورت نشته. له کفن سره په جنازه کې اېښودل او جنازه له کټ څخه اخستل په قبر کې اېښودل کېږي، که کله ضرورت معلومېده ،څادر ، سترنجې يا بل څه موجود وُ او دا کار ترې واخلي بيا يې په خپله هم استعــمال



کولای شي.(فتاوى رحيميه ج ۱ ص ۳۶۲)

(د دغسې څادر خيراتول ضرور نه دي، هغه چې د مجبورۍ له امله په کټ کې تر مړي لاندې اچول شوي دي.)

مسئله : تر غسل ورکولو وروسته، سنت دی چې مړی په تخت يا کټ کېښېښودل شي، په دې کې د مړي عزت هم دی. دا ضرور نه ده چې کټ تر معمولي حد زيات لوړ وي، د ځمکې له لوړوالي څخه لږ لوړوالی يې کافي دی.

(که يې مړی په چارپايي يا کټ اېښی وي او د جنازې لمونځ يې وشي ،جايز دی. ځکه چې دا د څاروي سواري يا د سړي دا خستلو په څير نه ده. په چهارپايي يې اېښودل يې حکماً په ځمکه اېښودل دي.

د رسول الله صلى الله عليه وسلم د جنازې لمونځ چې کېده ،د رسول الله صلى الله عليه وسلم مبارک جسد په کټ د پاسه وُ. چې هغه په ځمکه اېښی و. محمد رفعت قاسمي)

## تر کفن ورکولو وروسته مړی څه ډول څملول کېږي؟

پوښتنه : دلته چې مړي ته کفن ورکړي د قبلې لورته پښې او ختيز ته يې سر کوي ،ايا داسې صحيح دی؟

ځواب :ناروغ چې په پروتو لمونځ کوي، د هغه د لمانځه يوه طريقه داده چې د قبلې لورته پښې کوي خو ځنګنونه يې ولاړ وي که يې وس نه وُ نو پښې غزولای شي او تر سر لاندې بالښت يا بل څه لاندې کوي تر څو لږ لوړ او مخ يې قبلې ته شي. همداسې د قريب الموت ناروغ د پريوتلو يوه طريقه داده

لکه په قبر کې چې په اړخ وي او مخ يې قبلې ته وي دغسې څملي . که ورته تکليف ؤ بيا دې پښې د قبلې لورته کړي او تر سر دې څه شی لاندې کړي څو يې مخ قبلې ته شي او داسمان لورته نه وي.

دکفن ورکولو په وخت او وروسته يې شمالاً او جنوباً څملولای شي. که يې داصورت مشکل و، شرقا او غرباً دې څملول شي، پښې يې د قبلې لورته کول نامناسب دي ،ځکه سريې نه اوچتيږي. (فتاوی رحيميه ج ۵ ص ۱۱۱)

## دمړي دکټ دڅادر حکم

مسئله :دمړي په کټ چې کوم څادر اچول کيږي، هغه به دمړي دخپلوانو وي ، يعنې دهغه چاچې مړي ته کفن ورکوي او دا دهغه ملکيت دی. داويل چې دادهغه فقير حق دی چې له جنازي سره ځي يا هلته اوسيږي داغلط ده. دادکوم خاص سړي حق نه دی .دادې په خپله مالک (کفن ورکوونکی) له ځان سره وساتي يادې چا ته ورکړي.

مسئله :که دمړي ولي هغه څادر مسجد ته واستوي چې لاوارثه مړي ته دې کفن کړي ، نو دا څادر دې په دغسې کار کې استعمال کړي. ددې فکر دې نه کوي چې د لاوارثه مړي په انتظار کې ، هغه وروست شي ، دلته پکې دورکوونکي نيت معتبر دی.که مالک هغه څادر دکوم بې وزله يا طالب العلم ته د ورکړې لپاره ورکړی وي، هغسې دې وکړي. له ځانه دې دمالک دنيت او امر خلاف پکې څه نه کوي. که مالک هغه



څادر د مجسد د کارکوونکو خوښې ته پرې ايښی و نو بيا چې دوی يې ښه وبولي ،دنورو لپاره يې بيا دخلاف اجازه نشته.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۷۲)

مسئله :د جنازې دوړلو په مهال په کټ باندې دپاسه څادر اچول د مړي عزت دی. د فقهې روايت په حساب په دې کې څه خبره نشته. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص:۲۷۰ -ردالمحتارج ۱ ص ۸۰۷)

(ځينې ځايونه چې د مړي په کټ باندې کوم څادر اچوي، هغه بد ګڼې او استعمال يې نه خوښوي ، له همدې امله هغه په قبر اچوي او هغه خرابيږي.په هديره کې ضايع کيږي. هغه دې کفن ورکوونکي په خپله استعمال کړي يا دې کوم اړ شخص ته ورکړي څو يې استعمال کړي، ددې په استعمال کې کومه خبره نشته. محمدرفعت قاسمي)

مسئله : هغه څادر (يابله جامه) چې په کټ باندې اچوله کيږي، هغه په کفن کې نه ده شامله ، غريب شخص که دا څادر واخلي او نه يې واچوي ،بلکې خپل يا دبل چا کوم پاک څادر ورباندې واچوي هيڅ پروا نلري.هغه څادرچې هغه ته يې وزکړي دی که يې خپل وي ودې ساتي يا دې کوم بې وزله ته ورکړي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۶۶ -احکام ميت ص ۵۷)

## تر مړينې وروسته دخپلې ميرمنې مخ کتل

پوښتنه :دا خبره مشهوره ده چې کله کومه ميرمن ومري نو خاوند يې نه مخ کتلای شي او نه لاس وروړلای شي ، ايا داصحيح ده ؟

جواب: دمیرمنې تر مړینې وروسته یې میړه دهغې مخ کتلای شي، خو لاس وروړلای نشي. جنازه یې په اوږو اینبودلای شي، دجنازې په لمانځه کې یې ګډون کولای شي، قبر ته دکښته کولو په مهال یې محرم دوستان ورته ضرور دي خو که نه وو، نور خلک دې قبر ته کښته کړي چې میړه یې هم پکې ګډون کولای شي. داصحیح ده چې دمیرمنې په مړینه ددنیوي احکامو په اعتبار دسړي او میرمنې ترمنځ تعلق ختمیږي او دمیړه حیثیت په یوه لحاظ دپردي کیږي.

(آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۰۶ – فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۷۷ – شامي ج ۱ ص ۵۷۵، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۷۸)

مسئله: دمیرمنې په مړینه یې دمیړه تعلقات ورسره غوڅیږي، نو دمیرمنې غسل او لاس وروړل ورته صحیح نه دي خو لیدلای یې شي. که سړی ومري دمیرمنې اړیکې یې تر عدت پورې ورسره پاته وي، له همدې امله میرمن خپل مړه شوي میړه ته غسل ورکولای شي. (که بل سړی نه وي.)

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۷۸، احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۱۵، د ردالمحتار ج ۱ ص ۸۰۳ په حواله)

مسئله: دمیړه په مړینه، دمیرمنې بنګړي ماتول او ضایع کول غلط کار دی. لرې دې کړي ودې ساتې او چې عدت یې تیر شي بیرته دې په لاس کړي. (فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۰۸)

************



## دمړي دمخ کتلو رواج

مسئله: دمړي دمخ په کتلو کې دا مفاسد شته، نو واجب الترک دي.

۱– په ځینې ځایونو کې دمړي دمخ کتل داجر او ثواب سبب ګڼي. حال دا چې په شریعت کې ددې کوم اصل نشته. ددې ثواب ګڼل بدعت دی. که یې ثواب هم ونه ګڼي په دې سره دبدعت ترویج او تائید کیږي.

۲– شرعي حکم دادی چې مړي ته دغسل ورکولو او کفن ورکولو په مهال دې کم کسان وي، هغه دې هم دمړي خپلوان وي. ترڅو که خدای مکړه کوم عیب یا تغیر پکې پیدا شي هغه ښکاره نشي او دمخ کتلو رواج ددې حکم او حکمت خلاف دی.

۳– که مړی کوم مشهور شخصیت وي، دهغه دمخ کتلو په مهال څو ساعتونه لګیږي، خو دمیت دخښولو تاخیر جایز نه دی.

۴– دمخ کتلو نتیجه داده چې دمړي تصویرونه اخلي، اخبارونو ته یې ورکوي او هلته خپریږي چې دتصویر له لعنت او عذاب سره، سره دمړي دڅهرې دتغیر خپرول هم دي او دا حرام دي.

ننسبا دا بد رواج په علماوو او مشائخو کې هم معمول دی. له همدې امله له دې شخصه دځان ساتلو وصیت کول لازم دي. که وصیت ونکړي نو عذاب او وبال یې دمړي دی. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۴۰)

مسئله: غیر محرمې میرمنې ته لکه څرنګه چې په ژوند کې دپردي سړي مخ ته کتل منع دي تر مړینې وروسته هم منع دي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۶۷ دمشکوة شریف ج ۱ ص ۲۶۹ باب النظر په حواله)

## په هدیره کې د مړي د مخ کتل

مسئله: په شریعت کې د دې هیڅ اصل نشته. دا چې ځینې ځایونه مړی په قبر کې کښېږدي کفن یې پرانیزي او مخ یې لوڅ کړي، دا بې اصله ده په شریعت کې یې کوم تائد نشته. د کفن تر بندولو وروسته یې خلاصول مناسب نه دي، ځکه کله د برزخ اثار وربانديې پیل کیږي چې د هغه اخفاء او پټول مقصود (او غوره) دي.
(خو په قبر کې د کفن د غوټو خلاصولو اجازه ده.)
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۹۸، فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۹۸، فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۱۱۰)

## د مړه مخ ته د غیر مسلم کتل

مسئله: غیر مسلم ته تر لمانځه وړاندې د مړي مخ ښکاره کول جواز لري. خو که ډیره فتنه نه را ولاړیدله، بیا دې انکار ترې وکړي. دا احتیاط دی ځکه دا مهال د رحمت د نزول وخت دی. (فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۲۳۴)

## له جنازې سره د تللو فضایل

په حدیث شریف کې له ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې، رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد وکړ: څوک چې د ایمان له صفت سره او د ثواب په نیت د مسلمان له جنازې سره لاړ شي، تر هغه له جنازې سره پاته شي چې وربانديې لمونځ وشي او له دفن څخه یې فارغ شي، له دوو قیراط ثواب سره بیرته راځي. چې هر قیراط د احد له غونډۍ سره برابر دی. هر څوک چې یوازې د جنازې لمونځ یې وکړي بیرته لاړ شي تر



دفن کولو ور سره پاته نشي، د یو قیراط له ثواب سره بیرته ځي. (ترمذي ج ۱ ص ۲۰۱ – صحیح بخاري او مسلم باب الجنائز ج ۱ ص ۱٦۵ ص ۱۷۵)

مسئله: که هدیره لرې وي او په اوږو د جنازې وړل ګرانه وي، تر څو مره چې ګرانه نه وي په اوږو دې یوړل شي خو چې تکلیف وي پر سوارلۍ دې کښېږدي. (امداد الفتاوی ج ۱ ص ۷٦۰)

له ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد وکړ: جنازه به په ګړندي تګ وړئ که هغه نیک شخص وي قبر ورته خیر دی، یعني ښه ځای دی، ژر به ورته ورسیږي او که د غسي نه وي نو یو بد بار به ستاسو له اوږو لرې شي.

په حدیث شریف کې دي: څوک چې د جنازې څلور لورې په اوږو واخلي، څلوېښت کبیره ګناهونه یې بخښل کیږي.
(ترمذي ج ۱ ص ۱٦۷)

مسئله: مړی که ګاونډی، دوست یا هم کوم نیک شخص وي، له جنازې سره تلل یې تر نفل کولو غوره دي.

د ترمذي شریف په حدیث کې دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له جنازې سره تللی دی او تر څو چې به جنازه له اوږو څخه کښته نشوه، نه کښېناست.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم لارښوونه ده:
"کله چې له جنازې سره لاړ شئ، تر څو هغه اېښودل شوې نه وي، مه کښېنئ."
کله چې به رسول الله صلی الله علیه وسلم له جنازې سره

پیاده روان ؤ، ویل به یې، زه نه سپریږم، فرښتې پیاده ځي. چې د جنازې له دفن څخه به فارغ شو، کله به پیاده او کله هم سپور بیرته راګرځیده.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم معمول ؤ چې له جنازې سره به روان و، پټه خوله به ؤ، په زړه کې به یې د مړینې په هکله خبرې کولې. (ترمذي ج ۱ ص ۱۹۸ - بخاري شریف ج ۱ ص ۱۷۵)

## د جنازې تر اخستلو وړاندې فاتحه ویل

پوښتنه: دلته زموږ دستور دی چې د مړي په کور کې خلک راغونډیږي، د جنازې تر وړلو وړاندې، امام صاحب ودریږي الفاتحه وایې او بیا په لوړ اواز دعا کوي. ایا دا له سنت سره برابر دی؟

ځواب: که هر یو ځانته او بیله دعا کوي خو جوازیې شته، ټول راغونډیدل او دعا کول د رسول الله صلی الله علیه وسلم، صحابه وو او صالح سلفو د عمل او طریقې خلاف دي، نو په پوښتنه کې چې کومه طریقه یاده شوې ده، هغه مکروه ده.
(فتاوی محمودیه ج ۱ ص ۳۶۳ د عالمگیري ج ۵ ص ۳۱۹ په حواله)

مسئله: د کبیرې د ۵۴۸ مخ له عبارت څخه څرګندیږي: څوک چې له جنازې سره څلویښت قدمه لاړ شي، څلویښت کبیره ګناهونه یې بخښل کیږي. (فتاوی محمودیه ج ۳ ص ۴۲۰)

## د جنازې د اخستلو په مهال حیله کول

پوښتنه: کله چې مړی د جنازې د لمانځه ځای ته وړي، قرآن کریم را اخلي، یو بل ته یې ورکوي، ګرځوي یې، بیا څه پیسې



ملا صاحب ته ورکوي. دا کار ګناه د معافي لپاره کیږي. آیا دا صحیح ده؟

ځواب: دا اسقاط معاصي (د ګناه د معاف کیدلو) طریقه بې اصله ده. بدعت او ناروا ده. که ملا صاحب بې وزله او مستحق وي، هغه ته خیرات ورکول او مړه ته یې ثواب بخښل صحیح دي. د غسې نورو بې وزلو، د خوړلو، څښلو څه شی یا پیسې، یا جامې یا بل څه د ثواب په هیله ورکول ښه دي.
(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۳۱)

(په قرآن او حدیث کې چیرې هم د دې ثبوت نشته او نه فقهاوو داسې لیکلي دي، د رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه وو چې کومه طریقه روایت شوې ده، د هغې خلاف ده او د قرآن کریم بې عزتي هم ده. د دې پرېښودل ضروري دي. محمد رفعت قاسمي)

## له جنازې سره په لوړ اواز د کلمې ویل

پوښتنه: دلته رواج دی، کله چې جنازه واخستله شي ورسره په جهر سره کلمه ویل ضروري ګڼي، ایا د داسې کار اصل شته؟

ځواب: له جنازې سره په لوړ اواز کلمه ویل بدعت دي.
(احسن الفتاوی ج ۱ ص ۳۳۸ فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۰۱ عالمگیري ج ۱ ص ۱۰۴)

مسئله: له جنازې سره د خفي ذکر اجازه شته، په زوره ویل یې جواز نلري، مکروه ده. داسې که تر جنازې وړاندې څو کسه یو ځای په لوړ غږ سره څه وایې دا د سنت خلاف او

تحریمي مکروه ده. له جنازې سره په زړه کې ذکرکول جایز دي. جهر ذکر کول مکروه دي. ځکه د جنازې لمونځ په خپله دلوړې درجې دعا ده. تر هغه وروسته په ډله ایزه توګه دعا کول ثابت نه دي خو په تلو، تلو کې په انفرادي ذکرکې څه خبره نشته. (فتاوی رحیمیه ج ۶ ص ۱۹۴ شامي ج ۱ ص ۸۳۸ بحر الرایق ج ۲ ص ۱۹۲)

مسئله: په پټه خوله د جنازې دوړلو حکم دی. په حدیث شریف کې دي چې د جنازې دوړلو په مهال په پټه خوله تلل خدای تعالی ته خوښ دي.

(فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۱۸۵ د جامع الصغیر ص ۷۵ په حواله)

## جنازه په سواري وړل

پوښتنه: دلته زموږ هدیره له ښار څخه دري میله لري ده. خلک جنازه دومره لري پیاده وړلای نشي، هغه په موټر کې ږدي او ورسره کښیني ایا دا جایز ده؟ که جایز وي نو جنازه به څلور کسان اخلي او که به یې کښته ږدي او څومره لوړه به یې ږدي؟

ځواب: د جنازې په اخستلو کې سنت دا ده چې جنازه په څلورو کسانو واخلي او کټ به په اوږو ږدي. په درمختار کې دا طریقه د مړي دوړلو لپاره بیان شوي ده. او وایې جنازه په شا کول یا د کوم څاروي دپاسه اېښودل مکروه ده. دا حکم په موټر کې دوړلو هم دی. خو د مجبوریت او اړتیا په مهال داسې کول صحیح دي.

مسئله: کله چې کوم عذر نه وي نو سنت او مستحب دا دی



چې جنازه څلور کسه واخلي او یو یې سي، په سورلي یا په څه اېښودل مکروه ده. خو که ضرورت او عذر ؤ، داسې چې په پوښتنه کې یادونه شوي ده چې هدیره خورا لري ده او پیاده تلل او جنازه پیاده وړل ستونزمن کار دی، نو د مجبورۍ په حالت کې چې په سوال کې یاده شوي ده بیا صحیح ده. یعنې مړی دې د موټر په مختنۍ برخه کې کښېږدي او خلک دې شاته چیري چې ځای وي کښیني، دا جایز دي او په موټر کې د اېښودلو لپاره د څلورو کسانو قید نشته، څومره چې یې پورته کوي او هلته یې ږدي صحیح ده. خو تر موټر پوري وړل یې په څلورو کسانو ښه دی، غوره ده چې څلور کسه یې په موټر کې کښېږدي او چې له موټره یې کښته کړي او هدیرې ته یې وړي هم څلور کسان یې په هغې طریقې سره واخلي. په موټر کې دا قید نشته چې تر پښو دې جنازه لوړه کښېږدي.

(فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۲۷۳ - ۳۷۴، رد المحتار ج ۱ ص ۸۳۳ په حواله)

## جنازه په لري لاره اوکه په لنډه لاره وړل کیږي

مسئله: دابوهریره رضی الله عنه له خوا د روایت شوي حدیث، د "اسرعوا بالجنازه" د عبارت غوښتنه دا ده چې له اړتیا او ضرورت پرته، په داسې اوږده لاره د جنازې وړل چې په خښولو کې یې ځنډ راځي ښه نه ده او د مستحب خلاف کار دی.

(فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۲۸۰، مشکوة ج ۱ ص ۱۴۴ په حواله، رد المحتار ج ۱ ص ۷۹۹)

مسئله: جنازه په لنډه لاره وړل غوره دي. له شرعي عذر څخه پرته لنډه لاره پرېښودل او لري لاره نیول او جنازه په کلیو

کرځول ښه رواج نه دی، مړی له اضطراب څخه ساتل مشکل وي. (فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۲۸۳)

مسئله: له مړي سره قرآن کریم په چارپائي ایښودل او تر هدیري وړل، دسنت خلاف او ناروا دی. دابایـد بالکل پرېښودل شي. (فتاوی دارالعلوم ج ٦ ص ۲۸۳)

له کتاب او سنت څخه چیري هم دا ثابته نه ده او نه فقهاوو لیکلي دي. بلکې کومه طریقه چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه وو څخه رانقل شوي ده، دهغې خلاف ده او د قرآن کریم بې عزتي ده، ددې پرېښودل ضروري دي.
(محمد رفعت قاسمي)

مسئله: له جنازې سره دي لوخ سرنه ځي. دا دغیر مسلمانانو طریقه ده. (فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۲۱)

## دجنازې دوړلو لپاره مزدوري

مسئله: جنازه وړل عبادت دی، هر چاته ښائي چې ورته لومړی والي وکړي، ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم جنازه اخستي ده. دسعد ابن معاذ رضی الله عنه دجنازې پورته کول ورڅخه ثابت دي. خو که هدیره دومره لرې وه چې ملګرو ته یې هلته دجنازي وړل مشکل و، نو که په مزدوري داسې کسان وموندل شي، چې هدیري ته جنازه یوسي نو ښه ده چې په مزدورانو باندې جنازه یوړل شي.

دجنازې لپاره مزدوري ورکول او اخستل جواز لري. په دې کې په متوارث سنت پاته کېدل دي. خو مزدور باید مسلمان



او صالح وي، په کافرانو او فاسقانو دجنازې وړل ښه نه دي. دمسلمان جنازه په کافرانو باندې وړل جواز نلري او دا ځکه چې دجنازې وړل هم په مسلمانانو باندې کفایي فرض دي. که مسلمانان موجود وي او کافران یې وړي له یوه لحاظ دفرضو ترک دی.

مسئله: که یې فاسق مسلمانان وړي که څه هم جواز لري، حرام نه دی، خو هغوی ورڅخه بېل کول ښه دي. ځکه دکبایرو په ارتکاب کې هم دالله تعالی عتاب دی.

مسئله: که یې تر هدیري پوري وړلای نشي، ډېره ستونزه وي او مسلمانان مزدوران هم نه پیدا کېږي نو جنازه په موټر کې وړل پرته له کراهته جایز دي. دهدیري لرې والی هم عذر دی او فقهاوو هغه ته اعتبار ورکړی دی. (کفایت المفتي ج ۴ ص ۳۰)

مسئله: هدیره لرې ده، جنازه په اوږو وړل مشکل ده، دلته غوښتنه دا ده چې څومره په اوږو وړل مشکل نه وي په اوږو دي یوړل شي او چې وربانـدې شاقه شي په سوارلي (ګاډي – موټر) دي کښېږدي. (امداد الفتاوی ج ۱ ص ۷٦۰)

## دجنازې دوړلو په مهال به دمړي سر کوم لورته وي؟

پوښتنه: که هدیره دختیز په لور وه نو دمړي دوړلو په مهال به یې سر کوم لورته وي او پښې به یې کوم لورته؟

ځواب: هدیره که هر لورته وي، مشرق، مغرب، شمال یا جنوب ته وي. سر به یې دکټ مخته لورته وي، دمړي سر به دمخې خواته وي (کوم لورته چې میت وړل کیږي، هغه لورته

به يې سر وي.) (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۸۱ ،دعالمګیري مصري ج ۱ ص ۱۵۲ په حواله–غنیة ص ۵۳۴)

مسئله :دمړي سر وړاندي لورته کیږي، په دي کې کوم حرج نشته چي دوړلو په مهال دمړي پښي دقبلي لورته وي. یعني ختیز لورته دجنازې وړل او پښې يې دقبلي لورته کیدل صحیح دي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۸۵ –عالمګیري مصري ج ۱ ص ۱۵۲ په حواله، فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۳۷۴ فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۷۷)

## جنازه به په څرنګه تګ وړل کیږي؟

مسئله : جنازه به په بشپړ رفتار وړل کیږي، منډي به نه ورسره وهي ، داسې لکه چي غیر مسلم ورسره ځي او نه به دومره ورو ځي لکه دلته چي عادت دی او ورو ،ورو ځي او که څوک بشپړ قدم واخلي نوريې منع کوي چي ورو ،وروځه، ګواکې جنازه ناروغ فرضوي او داسې روان وي لکه هغه چې روغتون ته وړي. په حدیث کې دجنازې دوړلو لپاره دګړندي تګ امر شوی دی ، داحکم دفقه په کتابونو کې موجود دی.
(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۰۰ –کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۵۷)

مسئله :جنازه په داسي تګ سره یوړل شي چي مړي ته په کټ کې اضطراب نه وي .یعني مړي دي خوا هغي خوا ته په حرکت کي نه وي، مړي ونه غورځوي. (مشکوة ،ج ۲ ص ۱۴۴)

جنازه په بیړه وړي، که هغه نیک عمله وي نو ورته (هغه ځای خیر دی چي تاسي يي ورته وړي او که صالح نه وي نو له خپلو اوږو به مو شر ژر لري کړي وي.)
(فتاوی رحیمیه ج ٦ ص ۳۷٦ –بخاري شریف ج ۱ ص ۱۷۵)



## له جنازې سره به خلک څرنګه ځي؟

پوښتنه :ترجنازې به وړاندي ځي که وروسته؟ دلته خو تر جنازې وړاندي اوږد کتار جوړوي.

ځواب :له براء بن عازب رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم موږ ته دجنازې داتباع یعني وروسته تللو حکم کاوو.(بخاري شریف ج ۱ ص ۱٦٦)

له دي څخه ثابتیږي چي جنازه متبوع ده او خلک تابع دي. متبوع تر تابع وړاندي وي. نو جنازه مخته کیدل او ترجنازې وروسته تلل افضل او مستحب دي.

جنازه نږدې او ترمخ کول ، عبرت او نصیحت هم دی او دمړي عزت هم دی.

تر جنازې وړاندي کیدل هم جایز دي خو غوره نه دي. په اوږو دجنازې دایښودلو لپاره مخته کیدل هم جایز دي خو له جنازې څخه به نه لري کیږي. دټولو ترمخ تلل او جنازه شاته پرېښودل مکروه ده. دخلکو مخته کتار جوړول او جنازه شاته پرېښودل یوه غلطه طریقه ده. دجنازې په اوږو ایښودلو لپاره چي څوتنه وړاندي وي او ډیر شاته وي، مخته خلک چي جنازه ورکړي، شاته لاړشي ترڅو، مخکنیو ته داخستلو موقع وموندله شي، همدا طریقه اختیارول ښه دي.

په هدیره کې له بوټونو سره یا لوڅي پښې ګرځیدل سخت مکروه او بد دي.(فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۱۰۴ د درمختار مع شامي ج ۱ ص ۸۳۴ په حواله ،عالمګیري ج ۱ ص ۱۰۴ او بحر الرایق ج ۲ ص ۱۹۲)

## دمړي ددرناوي لپاره دريدل

مسئله : کله چې جنازه تېرېږي، کوم خلک چې ناست وي، د جنازې لپاره ولاړېدل ښه دي. (آپ کې مسائل ج ٣ ص ١٠٥)

مسئله : دمیت په لیدلو دریدل په حدیث شریف کې راغلي دي، په دي کي څه خبره نشته . (مشكوة شريف باب المشي بالجنازه ج ١ ص ١٤٧)

له دي سره نور احادیث هم په دي هکله راغلي دي او ورڅخه معلومیږي چې لومړي دولاړیدلو حکم ؤ، بیا منسوخ شو خو جوازیې اوس هم پاته دی. دریدل د خالق النفس او ملایکو د احترام لپاره وي. (فتاوی دارالعلوم ج ٥ ص ٤٥٧ - کتاب الفقه ج ١ ص ٨٦٠)

## په اوږو ایښودلو مسنونه طریقه

مسئله: د جنازې په اوږو ایښودلو مسنونه طریقه داده چې په ځینو احادیثو کې د جنازې د څلورو لورو په اوږو ایښودلو فضیلت هم راغلی دی.

په مجمع الزوائد کې (ج٣ ص ٢٦) کې له انس بن مالک رضی الله عنه څخه روایت شوی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد کړی دی: " څوک چې د جنازې څلورو لورو ته اوږه ورکړي ، هغه ته د څلویښت کبیره ګناهونو کفاره ګرځي."

امام سیوطي رحمه الله په جامع صغیر (ج ٢ ص ١٧٠) کې دا حدیث رانقل کړی دی. مسنون او مستحب دا دی چې څوک د جنازې کټ څلویښت قدمه یوسي. لومړي دي په ښي اوږه د جنازې مخ لوري لس قدمه یوسي بیا دي د دي خوا د شا پایه



په ښي اوږه کښېږدي . بیا په کیڼه اوږه د مخ لوري لس قدمه او وروسته په چپه اوږه د شا لوری واخلي. که کوم مزاحمت نه وي په دي طریقي عمل کول غوره دی .

(آپ کې مسائل ج ٣ ص ١٠٥ - فتاوی محمودیه ج ٢ ص ٤٢٠)

مسئله : هر څوک چې څلویښت قدمه جنازه یوسي د هغه څلویښت ګناهونه بېتل کیږي. (مراقي الفلاح مع طحطاوي ج ١ ص ٣٣١)

مسئله : تر جنازې وروسته تلل غوره او مستحب دي.

(فتاوی دارالعلوم ج ٥ ص ٢٧٩ رد المحتار ج ١ ص ٨٣٤)

## له جنازې سره د نعت ، طیبه کلمي او نور څه ویل

پوښتنه : ځیني کسان له جنازي سره وړي، وړي ډلي جوړوي په لوړ اواز طیبه کلمه ، نعت او درود شریف وایې، ځیني یې بیا مخالفت کوي، کومه یوه صحیح ده؟

ځواب : له جنازې سره د تلونکو لپاره پټه خوله لازمه ده. په لوړ غږ ذکر کول یا قرآن کریم تلاوت کول مکروه دي. که څوک د الله تعالی ذکر کوي په زړه کي دي وکړي.

(شرح طحاوي ج ١ ص ١٦٢)

له دي روایت څخه څرګندیږي چې دا خلک ټولي جوړوي طیبه کلمه لولي، لکه دا رواج چې یاد شوی دی دا مکروه او بدعت دی. څوک چې یې مخالف کوي هغه ښه وایي. کلمه او نور څه دي په پټه وایي. (آپ کي مسائل ج ٣ ص ١٦٦)

مسئله : له جنازي سره اشعار ، نعت او نور څه ویل غیر مشروع او بدعت دي. پرېښودل یې لازم دي. دا ثابت نه دي. سره یوځای کیدل او په لوړ غږ ویل د صالح سلفو د عمل خلاف

دی. نو بايد پرېښودل شي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۱۵۰-۱۵۱ دعالمګيري مصري ج ۱ ص ۱۵۲ په حواله)

مسئله :دا طريقه د صالح سلفو ، صحابه وو ، تابعينو او امامانو څخه ثابته نه ده. نو بدعت او مکروه ده. د فقهې له تصريحاتو څخه يې ممانعت معلومېږي نو ترک کول يې لازم دي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۸۴ ،مشکوة باب الاعتصام ج ۱ ص ۲۷ په حواله)

## داوږه ورکولو مسائل

مسئله : د جنازې په ملګرتيا ور سره پياده تلل افضل دي. خو په سواري تلل هم جايز دي . يوازې د اولی (غوره والي) خلاف دي. د بيرته راتلو په مهال سپاره راتلل خلاف اولی هم نه دی. ځکه په بيرته راتګ کې سپاره راتلل له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه ثابت دي .(کفايت المفتي ج ۴ ص ۳۱)

مسئله : له جنازې سره په خپله په سواري تللو کې څه خبره نشته .خو پياده تلل ښه دي. که په سواري ؤ ، له ضرورت پرته دي تر جنازه وړاندې نه ځي ځکه مکروه ده.

مسئله :غوره دا ده چې له جنازې سره تري شا ته لاړ شي که څه هم وړاندې تلل جايز دي خو له جنازې څخه لرې او له خلکو دي بېل نه ځي. په داسې ډول مخته تري تلل مکروه دي. د جنازې ښي او کيڼ لوري ته تلل هم د اولی خلاف دي.
(کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۵۸)

(دا حکم د هغو خلکو په هکله دی چې جنازې ته اوږه نه ورکوي.)

مسئله :له جنازې سره د ميرمنو تلل تحريمي مکروه دي.
(کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۵۹)



مسئله : که له جنازې سره کوم منع شوي کارؤ لکه موسيقي يا ماتم ، نو هغه دي منع کړل شي که يي منع کول ممکن نه ؤ نو بيا دي هم (عام خلک) له جنازې څخه نه راګرځي. (کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۵۹)

مسئله : کوم خلک چې له جنازې سره ځي ، وړاندې تر دي چې جنازه له اوږو کښته شي، کښيناستل ورته مکروه دي خو که ضرورت ؤ بيا کومه خبره نشته.

مسئله :کوم خلک چې له جنازې سره ځي نو تري شا ته تلل مستحب دي، که څه هم وړاندې تلل هم جايز دي. که ټول خلک وړاندې ځي دا مکروه ده ، همداسې سپاره تر جنازه وړاندې تلل هم مکروه دي.

مسئله : له جنازې سره پياده تلل مستحب دي ،که څوک سپاره ځي تر جنازه دي وروسته ځي.

مسئله :څوک که له جنازې سره ځي ، په زوره يې ذکر او دعا کول مکروه دي.(علم الفقه ج ۲ ص ۱۹۹)

مسئله :څوک چې جنازه په اوږو اخلي هغوی ته په ښي او کيڼ لوري تلل د جنازې د ضرورت له امله مباح دي. تر جنازه وړاندې د ډلې ذکر کول شرعي طريقه نه ده .هر څوک دي په زړه کې ذکر يا دعا کوي ، دا جايز دي.

مسئله :دا هم صحيح نه دي چې وروسته بيرته د مړي کور ته راشي، بلکې تر ښخولو وروسته دي هر يو په خپل کار پسې ځي. (کفايت المفتي ج ۴ ص ۴۳)

مسئله :که مړی ماشوم یا ماشومه وي نو یو کس دي په لاسونو کې واخلي ، که لوي یا بالغ وي نو هغه دي په کټ (یا چهارپایي) کیږدي،څلور کسان دي واخلي. په دي اخستلو کې خو یو فقط سنت دی او بل بشپړه سنت. نفس سنت خو دادی چي پرته له ترتیبه یې څلور پښې ونیسي او لس لس قدمه یې یوسي . او کمال سنت دادی چې لومړی د سر لوری، ښي پایه په ښي اوږه کیږدي لس قدمه لاړ شي، بیا وروستنۍ ښي پایه په ښي اوږه کښیږدي لس قدمه واخلي بیا د سرلوري کینه پایه په کینه اوږه کیږدي لس قدمه لاړ شي بیا وروستنۍ خوا کینه پایه په کینه اوږه واخلي او لس قدمه لاړ شي.د جنازې دوړلو په مهال د مړي سر مخته لورته وي ، جنازه لړ په ګړندي تګ یوړله شي خو منډې نه وي.

(امدادالفتاوی ج ۱ ص ۷۲۴ – عالمگیري ج ۱ ص ۲۲۶)

مسئله :د میرمنې جنازه د نامحرم لپاره په اوږو ایښودل مستحب دي،ثواب ده او څلور پایې یې اخستل ، له هري پایي سره لس قدمه تلل غوره دي خو که نه کیده هر ډول چي وي صحیح ده . (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۸۲ ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۳ په حواله)

مسئله :میره د خپلې میرمنې تر مړینې وروسته هغه کتلای شي او بدن ته یې له جامو پرته لاس وروړل مکروه دي، جنازه یې اخستل او په اوږه ایښودل یې صحیح دي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۷۵ ،ردالمحتار ج ا ص ۸۰۳ په حواله)

مسئله :د میرمنې جنازه هرڅوک په اوږو اخستــلای شي



خو قبرته به یې یوازې محرم کسان کښته کوي (که محرم نه و یا پوره نه وو بیا غیرمحرم هم ورسره شریک کیدلای شي) خو په اوږو اخستلو یې ټولو ته اجازه ده.(آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۰۸)

مسئله : د نامحرمې میرمنې جنازه ،نامحرم شخص وړل، صحیح او ثواب ده .(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۸۲)

مسئله :ناپاکه سړي ته جنازه په اوږه اخستل صحیح دي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ص ۲۰۷)

(جنازې اخستونکي ته پاکې شرط نه ده خو مناسب هم نه ده چې له جنازې سره ناپاکه ځي. دلمانځه لپاره پاکې ضروري ده. محمد رفعت قاسمي)

مسئله: داعمالو اغیز د مړي په وزن نه وي. که د چاغ شخص جنازه سپکه او د کمزوري درنه وي، د دي درند والي او د سپک والي له امله کوم حکم کیدلای نشي، دا امر الله ته مفوض دی چې د هغه په وړاندې کوم ښه او کوم بد دي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۷۷)

مسئله :په پیـل کـې جنـازه پـه اوږو ایښـودل مکـروه دي، سنت طریقه داده چې یو سړی د کټ پایه په لاسونو ونیسي بیا یې په اوږو کښیږدي.

مسئله :جنازه د دوو عمودو (ستنو) پـه څیر وړل مکـروه دي، داسې چې دوه کسه یې ، یو مخته بل وروسته (د غیر مسلمانانو په څیر) واخلي، خو که مجبوري وه بیا دي د غسي واخلي.

مسئله :شیدې رودونکې یا داچې شیدې نه روي ترڅه ډېرعمرپورې ماشوم مړي داسې اخستل کیږي چې په لاسونو کې یې واخلي او بیا یې نوریو په بل پسې په لاسونو کې اخلي ، که یې پر سوارې دپاسه هم دغسې واخلي پروا نه لري. خو دلوي سړي مړی په سوارې وړل مکروه دی اما که ضرورت وي بیا کراهت نلري. (کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۵٦ ،علم الفقه ج ۳ ص ۷۹۹)

## دجنازې دلمانځه کولو وصیت

مسئله :که څوک داسې وکړي چې زما دجنازې لمونځ به فلانی شخص کوي ځکه هغه دیانت او تقوی لري، دا وصیت صحیح دی ،اعتبار لري او که نه؟

ځواب :څوک معلومول چې زما دجنازې لمونځ به کوي، داسې وصیت باطل دی. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۲۰ دشامي ج ۱ ص ٦۵۰ په حواله، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۲۴)

مسئله :که څوک وصیت وکړي چې زما دجنازې لمونځ دې فلانی شخص وکړي ، که هغه سړی دالمونځ ونکړای شي او بل څوک یې وکړي صحیح دی، فرض اداء شول ځکه داسې وصیت کول باطل دی. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۹۰ دعالمګیري ج ۱ ص ۱۵۳ په حواله)

مسئله : داسې وصیت کول چې فلانی دې غسل راکړي، فلانی مې دې خښ کړي ،فلانی دې دجنازې لمونځ وکړي، فلانی ځای مې دې خښ کړي،داشرعاً اعتبار نلري.دا شیان دمړي په واک کې نه دي دا دوارثانو حق دی څرنګه چې ښه پوهیږي هغسې دې وکړي.

(فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۱۰۳ دشامي ج ۱ ص ۸۲۴ په حواله ،کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۴۴)



## په جنازه کې دنه ګډون وصیت کول

پوښتنه :ددوو ورونو ترمنځ جګړه وشوه ،مشرورور دریم شخص ته وصیت وکړ چې زما کوچنی ورور دې زما په تجهیز او تکفین کې ګډون نکوي ، په داسې صورت کې کوچنی ورور ګډون کولای شي؟

ځواب :داسې وصیت کول باطل او ناجایز دی.په دې عمل کول نه ښایي. کوچني ورور دې که څه هم نورخلک ډېروي داسلام دحقوقو له امله ګډون وکړي. په مشکوة کې دباب عیادة المریض په ۱۳۳ مخ کې حدیث شریف دی: دیوه مسلمان پر بل مسلمان پنځه حقونه دي، له هغوی څخه یوې په جنازه کې ګډون کول دي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۲٦)

مسئله :دجنازې له لمانځه دې څوک نه منع کیږي، داکفایي فرض دی، له فرض څخه دمسلمان منع کول که څه هم فاسق وي جواز نلري. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۹۲ ، ردالمحتارج ۱ ص ۸۱۱ په حواله)

مسئله :که څوک په سترو ګناهونو لکه غلا ،شراب څښل، زنا او نورو اخته وي، بیاهم له فرضو څخه یې منع کول جواز نلري. نو دجنازې له لمانځه او نورو عبادتونو څخه منع کول ناجایز دي.او که هغه ومري نو دهغه دجنازې لمونځ به هم مسلمانان کوي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۵۵)

## دجنازې دلمانځه دنه کولو وصیت

پوښتنه :یو څوک داسې وایي : زما په جنازه دې یو هم لمونځ نه کوي ، کنه په آخرت کې یې لمن نیسم. ځینو سوګند

وکړي چې موږ به یې دجنازې لمونځ ونکړو ، دهغه په مړینه ډیرو له لمانځه څخه له دې امله انکار وکړ چې دا الفاظ دکفر دي. خو ما دمړه شوي داخبرې دناپوهي وبللې او دجنازې لمونځ مې وکړ او چاچې قسم کړی وو هغو ته مې وویل دقسم کفاره ورکړئ، ایا دا صحیح دی او که څرنګه ؟

ځواب: دهغه په جنازه لمونځ کیږي. داخبره یې کفر نه ده. نو چاچې یې دجنازې لمونځ کړی هغه صحیح دی. هغو چې قسم اخستي او دجنازې لمونځ یې کړی، دقسم کفاره وربانديې واجب ده. تا صحیح ویلي دي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۰۱)

### څوک چې وصیت وکړي چې ما وسوزئ ، دهغه دجنازې لمونځ؟

پوښتنه: یو هسي تش په نوم مسلمان مړ شو، عقیده یې سمه نه وه ، کله به یې د اسلامي قانون په خلاف بدشیان ویل، دمړینې په مهال یې وصیت وکړ چې ما مه خښوئ بلکې جسد مې وسوزوئ ،ایا دجنازې لمونځ یې وشي کنه ؟

ځواب: دمړي خښول فرض کفایي دي ، په دې باندې اجماع ده، او دمسلمانانو شعار دی. نو هغه چې وصیت وکړي چې ما دې نه خښوي بلکې ومې دې سوزوي، له دې څخه دا معلومیږي چې دهغه په زړه کې د اسلام له طریقې څخه کرکه ده ، دغیر مسلمانانو دطریقې پکې درنښت دی او په دې سره د اسلام دشعار سپکاوی دی، نو هغه مسلمان بلل، دسنت په طریقه غسل او کفن ورکول او دجنازې لمونځ وربانديې کول صحیح نه دي. که دهغه په زړه کې د اسلام



عظمت وای او رسول الله صلی الله علیه وسلم یې ریښتنی نبي بللای ،داسې جرئت یې کولای نشوای.(فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۱۱۱، شرح عقاید ص ۱۲۰ په حواله ،بیضاوی تفسیر ص ۲۳ دبقرې سورة)

### دمسلمانانو او غیر مسلمانانو دجنازې لمونځ

پوښتنه: څو تنه مسلمانان او هندوان په اورکې وسوزیدل او مړه شول ، له اندامونو څخه یې دا نه معلومیده چې دا مسلمان دي که غیر مسلمان ؤ، دجنازې دلمانځه یې څه صورت دی؟

ځواب: دواړه دې یوځای سره کښیږدي دمسلمانانو په نیت یې دجنازې لمونځ وکړي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۰۷ ردالمحتار ج ۱ ص ۸۰۵ په حواله ،احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۰۳)

مسئله: سوزیدلو ته دې غسل ورکړل شي که دغسل ورکولو وړ وو، دواړه دې په کفن کړل شي. دجنازې لمونځ دې دمسلمانانو په نیت وربانديې وشي ،هغه چې مسلمان دي دجنازې لمونځ به یې وشي او دکافر نه کیږي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۵۴ ،ردالمحتار ج ۱ ص ۸۰۵ په حواله ، احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۲۶ ،امداد الاحکام ج ۱ ص ۸۲۷)

مسئله: که کوم سړی چیرې ومونډل شي، له کومې قرینې او نښې څخه نه معلومیده چې دا مسلمان دی او که غیر مسلمان. که دا پیښه په دارالاسلام کې شوې وي نو غسل ورکول کیږي او دجنازې لمونځ یې هم کیږي. دتفصیل لپاره وګورئ. (شامي ج ۱ ص ۸۰۵ – عالمګیري ج ۱ ص ۱۵۹ ، علم الفقه ج ۲ ص ۱۸۸)

## که په سوزیدلو سکاره شي، د هغه د جنازې لمونځ

مسئله: که څوک وسوزي او بالکل سکاره شي، یا یې د بدن ډیره برخه وسوزي او ایره شي، هغه ته غسل او کفن ورکول او لمونځ ورباندې کول څه شی واجب نه دی. په یوه جامه کې دې وپیچل شي او خښ دې شي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۴۵)

مسئله: که د بدن ډیره برخه له سوزیدلو خوندي وي، خو سر یې نه وي یا یې له سر سره نیم بدن ساتلي وي یا یې ټول بدن سوزیدلی وي خو معمولي وي، غوښه، پوست او هډوکي سالم وي نو د هغه سم غسل، کفن او لمونځ کیږي او بیا خښیږي. (احکام میت ص ۱۱۷، شامي ج ۱ ص ۸۰۹ په حواله، فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۳۹۳)

## د بې لمانځه سړي د جنازې لمونځ ولې کیږي؟

پوښتنه: د نیک سړي، بد سړي او بې لمانځه سړي د جنازې لمونځ کیږي، موږ دا منو ځکه په نه کولو یې ګنهکاره کیږو خو په دې صورت کې د لمونځ کوونکي او بې لمانځه سړي څه توپیر پاته کیږي؟

هغه خلک چې لمونځونه نه کوي، وایې: د لمونځ کوونکي او بې لمانځه سړي یوه درجه ده، موږ ستاسې نصحیت نه منو، اوس موږ څه وکړو؟

ځواب: په حدیث شریف کې راغلي چې:

"صلوا علی کل برو فاجرا"

(د هر نیک او بد د جنازې لمونځ وکړئ.)

چې په حدیث شریف کې راغلي او فقهاوو هم لیکلي دي



نو د تردد پکې کومه وجه نشته. همدا وجه ده، فاسق او فاجر چې مسلمان وي، د الله تعالی له رحمت څخه دي نه ناهیلي کیږي او ترمړینې وروسته دې د مغفرت دعا ورته کیږي. د جنازې لمونځ د مړي لپاره دعا ده او په حدیث شریف کې هم راغلي چې ترمړینې وروسته د چا بد مه وایاست، ځکه څه چې یې په دنیا کې کړي دي د هغوی جزاء یا سزاء هلته ورته رسیږي. ژوندو خلکو ته دا مناسب ده چې مسلمان مړي ته دعا وکړي، که الله تعالی هغه وبښي نو د چا پکې څه زیان دی؟

په قرآن کریم کې دي: {قُلْ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِن رَّحْمَةِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا} (الزمر)

"ای زما بندګانو! چې تاسې په خپلو نفسونو زیاتوالی کړی یعنې ظلم او ګناه مو کړې ده، د الله تعالی له رحمت څخه مه ناهیلي کیږئ، بیشکه الله تعالی ټولې ګناوې بښي."

نور په دې کې فکر مکوئ هغه چې حکم دی هغه کول په کار دي، بې لمانځه سړي ته به لمونځ کوونکی نصیحت کوي او په ژوند کې به یې همداسې ډاروي خو چې ومري نو د هغه خیر غوښتل مناسب دي. الله تعالی ته یې په حق کې دعا وشي، د جنازې لمونځ یې وشي تر څو وي چې الله تعالی د هغه او زموږ له ګناهونو راتیر شي. (خدای جل جلاله دې وکړي.)
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۲۳)

مسئله: د لمانځه پریښودونکی فاسق دی، واجب التعزیر دی، کافر نه دی. نو ځکه د هغه د جنازې لمونځ کیږي، فاسق

دي توبه وکړي، لمونځ دي پیل کړي. دجنازې دلمانځه حکم
وویل شو چې ودي شي .خو که زجراً خواص یې په جنازه کې
ګډ نشي او نوریې وکړي، صحیح دی. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۸۷)

## دبې لمانځه سړي جنازه که دعبرة لپاره ونشي

مسئله : هغه کسان چې لمونځ نه کوي، دهغوی دجنازې د
لمانځه ممانعت تر سترګو شوي نه دی،له حدیث او دفقهاوو
له وینا وو هم دا معلومیږي چې دجنازې لمونځ دي وشي.

مسئله : دعبرت لپاره که دبې لمانځه سړي دجنازې لمونځ
ونشي او پرته له لمانځه خښ شي دا کار روا او ښه نه دی.
حرام دی او دفرضو ترک دی. دمسلمان لمونځ نه کوونکی
دجنازې لمونځ دلمونځ کوونکو دلمانځه په څیر فرض دی.
فقهاوو دهغو کسانو دجنازې لمونځ مستثنی کړی دی لکه
باغیان او نور ، هغوی په فساقو او بې لمانځه کسانو کې نه
شمیرل کیږي .نو دعبرت لپاره شرعي فرض ترک کول صحیح
نه دي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۱۳۴ ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۴ په حواله ، فقه اکبر
ص ۱۹۱ امداد الاحکام ج ۱ ص ۸۳۱)

مسئله :دعبرت لپاره داسې کیدلای شي چې دبې لمانځه
او فساقو دجنازې لمونځ خواص او لار ښود خلک ونکړي،
عوامو ته ووایي چې تاسو یې دجنازې لمونځ وکړئ او خښ
یې کړئ ترڅو بې لمانځه خلک وپوهیږي او ورته عبرت شي.
(مشکوة ج ۱ ص ۲۵۲ په حواله ،فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۶۷ -کفایت المفتي ج ۴ ص ۷۱)

*******************



## بې لمانځه مړی تر لمانځه وړاندې کش کول

مسئله : دا خبره مشهوره ده ، هغه څوک چې ټول عمریې
لمونځ کړي نه وي ، دهغه دجنازې لمونځ نه کیږي، څلوېښت
قدمه لرې دي کش کړي، که یې لمونځ کیږي. دا قول په اصل
کې غلط دی. دجنازې لمونځ دهر نیک او بد کیږي، لرې
ایښودل یې ښه نه دي. دهغه لپاره دمغفرت دعا وشي هغه
ذلیل نشي، لږ تر لږه کلمه ویونکي مسلمان خو دی.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۹۳)

مسئله :په رسۍ تړل او دبې لمانځه کش کول دشریعت
حکم نه دی ، داسې ورسره وړنه دي، بلکې باید لمونځ
ورباندي وشي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۳۵)

مسئله : دچاچې لمونځ کول کله هم لیدل شوي نه وي دهغه
دجنازې لمونځ کول جایز بلکې ضروردي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۹۳ دمشکوة شریف ج ۱ ص ۱۰۰ په حواله)

مسئله :لمونځ نه کول کبیره ګناه ده ، په قرآن کریم او
حدیث شریف کې دبې لمانځه په هکله سخت الفاظ راغلي
دي ، خو که څوک له لمانځه څخه منکر نشي. نو دهغه دجسد
بې احترامي کول جواز نلري ،دهغه دجنازې لمونځ هم کیږي.
که یې لمونځ فرض نه باله ، هغه مرتد دی دهغه دجنازې
لمونځ کول صحیح نه دي. (آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۳۰- فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۲۴۴)

## دکبیره ګناه کوونکي او مرتد دجنازې لمونځ

مسئله :دکبیره ګناه دمرتکب دجنازې لمونځ کیږي خو
دکافر نه کیږي. په چاچې دکفر حکم شوي نه وي ، دحکم

دروايت دنيشت والي له امله يې د جنازې لمونځ کيږي. که
دچا له لوري د کفر کلمه صادره شوي وي او بيا يې توبه کړي
او تجديد اسلام يې کړي وي که څه هم دچا په لاس نه وي، هغه
مسلمان دی د هغه د جنازې لمونځ کيږي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۰۹ ،ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۴ په حواله)

**دهغه دجنازې لمونځ چې دوه خويندې په نکاح کې ولري**

مسئله: زيد له هندې سره نکاح کړې ده، دهغې په
موجوديت کې يې دهغې له خور سره هم نکاح وکړه، دا نکاح
نه کيږي. زيد بايد دهندې حقيقي خور بيله کړي او توبه
وکړي. کنه سخت ګنه کار او فاسق دی. پر مسلمانانو باندې
له هغه سره متارکه او مقاطعه لازمه ده، له هغه سره دې خوړل
څښل پريږدي، وروګلوي دې ورسره غوڅه کړي؛ خو چې
توبه وکړي او هغه پريږدي بيا دې ورسره ګډون کوي. که زيد
په همداسې حالت کې تر توبه وروسته او دهغې تر پرېښودلو
وروسته ومري نو يې دجنازې لمونځ کيږي، که له توبې پرته
ومري، عام مسلمانان دې دجنازې لمونځ وکړي او خښ دې
کړي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۹۰ دسورة النساء په حواله)

**دعبادت منع کوونکي دجنازې لمونځ**

پوښتنه: زيد مدعی دی او دکامل صوفي او عارف دعوه
يې کړې ده. خپل مريدان له لمانځه، روژې، زکوة، حج،
تلاوت او نور څه منع کوي. دهغه دجنازې لمونځ وشي، کنه؟
ځواب: دزيد دعوه دصريح او قطعي نصوصو مخالفه ده،



دهغه دخبرو څخه دشريعت انکار څرګند دی، له لمانځه،
روژې، زکوة او نورو څخه انکار په خپله کفر دی. نو زيد چې
کفريه کلمې وايې او کفري عقايد لري، هغه عارف او صوفي
نه دی بلکې ملحد او مضل دی، له حديث شريف سره سم هغه
مرشد بلل او ورسره بيعت کول حرام دي. که همدا شخص په
همدې عقيده ومري نو دهغه دجنازې لمونځ نه کيږي او
دمسلمانانو په هديره کې دې نه خښيږي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص
۲۹۷ دمشکوة کتاب العلم ص ۳۳ په حواله، شرح فقه اکبر ص ۲۰۹)

**دذليل کسب دخاوندانو دجنازې لمونځ کول**

پوښتنه: څوک چې دا يې په توګه کار کوي، چيرې چې
کوم څاروي ومري، دهغه پوست باسي، پاکوي يې او بيا يې
پلوري، دا خلک ډير ذليل ګڼل کيږي، دداسې خلکو دجنازې
لمونځ کيږي، که نه کيږي، څوک چې يې دجنازې لمونځ
کوي، خلک په هغوی بد وايي، ددې څه حکم دی؟
ځواب: هغه خلک چې دوی مسلمانان دي هغوی له جمعې
او جماعت او مسجد ته له راتلو منع نسي، که يې څوک منع
کوي هغه ددې وعيد (ومن اظلم ممن منع مساجدالله.) (البقره)
مصداق ګرځي. دهغوی په مړي دجنازې لمونځ کول لازم دي.
دامسلمانان، نه باغيان دي او نه لاري وهونکي دي. نو
دهغوی دجنازې لمونځ دفقهاوو په قول فرض دی، کوم عالم
چې دا فرض اداء کړي هغه دثواب مستحق دی او دخدای جل
جلاله په نزد اجر لري، داکسان بد بلل او ورته ښکنځل کول

ګناه ده. څوک چې طعنه ورکوي هغوی فاسقان دي،توبه دې وکړي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۳۲ ،فقه اکبر ص ٦۱ په حواله ، مشکوة ج ۱ ص ۴۱۱)

مسئله : دمسلمان بنګي (جاروکش – خاکروب) دجنازې لمونځ هم کیږي او په اسلامي طریقه سره کفن ورکول کیږي او خښیږي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۹۷)

## دبازارې میرمنې (رنډۍ) دجنازې لمونځ

مسئله : دمسلمانې بازارې میرمنې دجنازې لمونځ کول شرعاً ضرور دي . ځکه په حدیث شریف کې راځي چې (دهرنیک او بد دجنازې لمونځ کوئ.) کومې پیسې چې دمسجد امام ته په لاس ورځي او هغه دحرام مدرک له امله وي، هغه په هیڅ ډول نه روا کیږي. دامام دا خبره چې وایي : که کومې پیسې چې په حرام مدرک ترلاسه کړئ هغه بنګې یا نورو ته ورکړئ، غلطه ده. که په خوړو کې ولګیږي، دحجام یا بنګې مزدوري تری ورکړي یا په بل څه کې مصرف شي، دا ټول برابر او نا روا دي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۳۲ ،ردالمحتار ج ۱ ص ۱۸۰ په حواله)

## دشیعه دجنازې لمونځ

مسئله : د اهل تشیع هغه ډله چې شیخینو ته بد نه وایې یعنې ښکنځل ورته نه کوي ، اصحاب کرام رضی الله عنهم بد نه ګڼي، دعایشې رضی الله عنها په هکله په افک قایل نه دي (تهمت ورباندې نه وایې) دکفر کومه عقیده و نلري ، دهغه دجنازې لمونځ کیږي. که له اهل سنت والجماعت څخه یې هم ...ک دجنازې لمونځ وکړي نو کومه خبره نشته ، کوم تعـزیر



ورباندې نشته ، ناسته ولاړه ورسره منع نه ده .
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳٦۳ – امدادالفتاوی ج ۱ ص ۷۱۲)

مسئله : کوم شیعه چې غالي وي ، هغوی چې تکفیر شوي دي، دهغوی دجنازې لمونځ ونکړل شي څوک چې تبرا وایې دهغوی دجنازې لمونځ نه کیږي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۴۳ – فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۱۸۹)

مسئله :په روافضو او اهل تشیع کې مختلف العقیده فرقې دي ، ځینې هغه دي چې علي رضی الله عنه دلومړي خلیفه په توګه مستحق ګڼي، خو دنورو صحابه وو تبراء نکوي، دا فاسق او مبتدع دي ، له اسلام څخه وتلی نه دي. دهغوی دجنازې لمونځ کیدلای او دمسلمانانو په هدیره کې خښیدلای شي. ځینې هغه دي چې علي رضی الله عنه معبود ګڼي (معاذ الله) ،ځینې هغه دي چې عقیده یې ده چې جبرائیل علیه السلام دوحي په راوړلو کې غلطي وکړه ، علي رضی الله عنه ته دراوړلو په ځای یې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راوړه ، ګواکې ددوي په نظر درسول کیدلو حقدار علي رضی الله عنه و، ځینې بیا هغه دي چې په عایشې رضی الله عنها باندې تور پوري کوي، ځینې بیا هغه دي چې صحابه کرام مسلمان نه ګڼي هغوی مرتد او کافر بولي . ددې فرقې دجنازې لمونځ صحیح نه دی او دمسلمانانو په هدیره کې خښول یې هم جایز نه دي.ددې هرې فرقې پیژندل مشکل دي هر څوک چې روافض او شیعه بلل کیږي، هغوی ته دي

دمسلمانانو په هدیره کې دخښیدلو اجازه نه ورکوله کیږي، په دې کې احتیاط دی.(فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۹۲ دعالمګیري ج ۲ ص ۲۶۴ په حواله، شامي ج ۳ ص ۳۰۵، احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۲۰)

## دبوهره دفرقې دجنازې لمونځ

مسئله :دشیعه یا بوهره دفرقې دخلکو دجنازې لمونځ کول او یا هغوی ته دمغفرت دعا کول صحیح نه ده .له هغوی سره تر هدیرې پورې تلل او نه تلل یا یې تعزیت کول یا نه کول له خپلو مصالحو او ضرورت سره سم دې عمل وشي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۶۶ عالمګیري ج ۱ ص ۱۵۷)

## دقادیانو دجنازې لمونځ کول

مسئله :څوک چې خپل کفري عقاید داسلام په بڼه وړاندې کوي. داسلام دصحیح او قطعي عقایدو خلاف په قرآن او سنت کې تاویل وکړي . داسې چاته زندیق ویل کیږي. زندیق دمرتد حکم لري ، په یوه اعتبار خو زندیق تر مرتد بد دی ، ځکه که مرتد توبه وکړي او بیرته په اسلام کې داخل شي په اتفاق سره یې توبه دقبلیدو وړ ده . خو دزندیق دتوبې دقبول او نه قبول په هکله اختلاف دی.

دقادیانو زندیقیت څرګند دی.ځکه دهغوی عقاید د اسلامي عقایدو بیخي خلاف دي.هغوی په قرآن او سنت کې غلط تاویل کوي، جاهلانو دا نظر پیدا کړي چې دوی خو ریښتوني مسلمانان دي،له هغوی پرته نور امت کافر او بې ایمانه دي.له همدې امله قادیانان غیر مسلم او زندیقان دي،



په هغوی دمرتد حکم جاري کیږي ،دغیر مسلم دجنازې لمونځ صحیح نه دی.

همداسې دمسلمانانو په هدیره کې دغیر مسلمانانو خښول هم جواز نلري.دهغوی په خښولو کې ګډون کول، هغوی ته دعا کول حرام دي.مسلمانان دې له هغوی سره خپلې اړیکې غوڅې کړي.(آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۳۲ –فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۹۱)

## دغیر مقلد دجنازې په لمانځه کې ګډون کول

مسئله : دیوه حنفي عالم دا فعل دمواخذې وړ نه دی چې په یوه غیر مقلد پسې دیوه غیر مقلد په جنازه کې لمونځ وکړي. ځکه نبوي ارشاد دی :"په هر نیک او بد پسې لمونځ کوئ." او (دهر نیک او بد دجنازې لمونځ کوئ.) نو غیر مقلد کافر نه دی چې دومره ډیر تشدد ورسره وشي. خو داضروري ده چې غیر مقلد دعقایدو دفساد له امله یې په لمانځه کې مخته نکړي ، که پیښه شوه چې غیر مقلد امام ؤ او چا په تیره دجنازې په لمانځه کې ورپسې لمونځ وکړ نو په حنفي مسلک کې په دې شخص باندې طعن او تور پورې کول جایز نه دی، دهغه تفسیق او تضلیل ناروا دی .

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۰۰ ،شرح فقه اکبر ص ۹۱ په حواله)

## په اسقاط (ضایع شوي) دجنازې لمونځ

مسئله :که اسقاط دجمل وشي ، دهغه لاس ، پښې ،پزه او خوله یا نور څه نه معلومیږي، هغه ته غسل او کفن نه ورکول کیږي، دجنازې لمونځ یې نه کیږي او نه هم سم خښیږي. په

یوه جامه کې دې ونغاړي ځمکه دې وکندې پکې خښ دې
کړي ، نوم دې هم نه ورباندې ږدي .(شامي ج ۱ ص ۸۰۹)

مسئله : که حمل ضایع شي او دبدن څه غړي یې جوړ شوي
وي خو جسم یې پوره نه وي ،او به دې ورباندې تیرې کړي، په
یوه جامه کې دې وپیچي او خښ دې کړي ،ځمکه دې
ورباندې همواره کړي .په غسل ،کفن او دفن کې دې مسنونه
طریقه نه مراعاتوي. (دجنازې لمونځ دې ورباندې نه کوي او
دغسې دې خښ کړي.)

مسئله : که دماشوم ټول جسم جوړ وي او حمل ضایع شو
په غسل ، کفن او دفن کې دې مسنونه طریقه مراعات شي،
نوم دې هم ورباندې کښیږدي خو دجنازې لمونځ دې نه کوي.
که تر پیدا کیدلو وروسته ومري بیا دې دجنازې لمونځ هم
وکړي او دسنت مطابق دې په هدیره کې خښ کړای شي.
(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۰۶ فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۸۳۱)

## په مړه ماشوم دجنازې لمونځ

مسئله :که حمل ضایع شي یا دولادت په مهال ومري او
وزیږي ، دزیږیدلو په مهال یې دژوند اثار ښکاره نشي، که څه
هم اندامونه یې ټول ښکاره وي، نو داسې ماشوم ته دې غسل
ورکړل شي ، نوم دې ورباندې کښیښودل شي ، خو نه دې
مسنون کفن ورکول کیږي او نه دې دجنازې لمونځ ورکوي
بلکې په یوه جامه کې دې ونغاړي خښ دې کړي .
(شامي ج ۱ ص ۳۰ فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۸۵ ، احکام میت ص ۱۱۴)



## دزیږیدلو په مهال ژوندي وي بیا ومري

مسئله :دزیږیدلو په مهال یې دسر له راوتلو سره ژوندی
وي او بیا ومري ، دهغه حکم دمړه ماشوم په څیر دی .یعني
غسل دې ورکړي ، نوم دې ورباندې کښیږدي خو مسنون
کفن دې ورته نه ورکوي، په یوه جامه کې دې ونغاړي او له
لمانځه پرته دې خښ کړي. (شامي ج ۱ ص ۳۰ ، احکام میت ۱۱۴)

مسئله : دچاچي مور او پلار مسلمان وي او دې تر بلوغ
وړاندې مجذوب یا لیونی شي، هغه مسلمان بلل کیږي، د
جنازې لمونځ یې واجب دی ، په ختنه (سنت) کیدلو یا نه
کیدلو یې دکفر حکم نه کیږي.(امداد الاحکام ج ۱ ص ۸۳۴)

## که دبدن دډیري برخې دراوتلو په مهال ژوندی ؤ

مسئله : دزیږیدلو په مهال یې دبدن دډیري برخې تر
راوتلو ژوندی و بیا ومړ، دژوندي ماشوم حکم لري، غسل
او کفن دې ورکړل شي ، ښه داده که ماشوم ؤ ،دسړي او که
ماشومه وه دمیرمنې په څیر کفن ورکړل شي. خو که ماشوم
وي یوه جامه او که ماشومه وي دوې جامې کفن یې هم
صحیح دی. نوم دې ورباندې کښیښودل شي ، دجنازې
لمونځ دې وکړای شي او سم دې خښ کړل شي.

مسئله :که دډیري برخې تر راوتلو وړاندې مړ ؤ ،دمړه
حکم لري .لکه مړ چې پیدا شوي وي. دډیري برخې دراوتلو
معنی داده چې که دماشوم سر را وتلی و ترسیني راوتل یې

ډېره برخه بلله کيږي او که سرچپه راووت نو ترنو (ناف)
پورې يې زياته برخه ګڼله کيږي. (شامي ج ۱ ص ۸۳۰، احکام ميت ص ۱۱۵)

**دهغه دجنازې لمونځ چې په غوږ کې يې آذان شوی نه وي**

مسئله: دکوم ماشوم چې دزيږيدلو په مهال دژوند کومه نښه وليدله شي، دجنازې لمونځ يې ضروري دی، که څه هم تردوو، دريو دقيقو وروسته مړ شوی وي، که يې له دې امله دجنازې لمونځ نه کوي چې په غوږ کې دعدم موقع له امله اذان شوی نه دی، دا ناپوهي ده. دجنازې لمونځ يې ضرور کيږي، که دناخبرۍ له امله ترې پاته شوی وي نو توبه او استغفار دې ووايي، دا يې کفاره ده. (آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۵۶)

مسئله: کوم ماشوم چې تر زيږيدلو وروسته ومري، که يې څورا کمه ساه اخستې وي هم غسل ورکول کيږي، دجنازې لمونځ يې کيږي، که څو شيبې هم ژوندی وي.

که کوم ماشوم مړ زيږيدلی وي، دهغه دجنازې لمونځ نشته. هغه ته دې غسل ورکړي په جامه کې دې ونغاړي او پرته دجنازې له لمانځه دې خښ کړي، خو نوم دې ورباندې کښيږدي. (آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۵۷)

**دجوړه (غبرګولې) ماشومانو دجنازې لمونځ**

پوښتنه: ديوې ميرمنې دوه ماشومان غبرګونې وشول او دواړه يو ځای مړه شول ايا ددواړو دجنازې لمونځ به يو ځای کيږي او که بيل، بيل؟



ځواب: په پوښتل شوې صورت کې يې دجنازې لمونځ بيل، بيل کول غوره دي، يو ځای هم کيدلای شي. خو لمونځ به په دواړو کوي.
(فتاوی رحيميه ج ۶ ص ۲۷۱، درمختار ج ۱ ص ۸۲۱ په حواله)

**دبدکارې ښځې دجنازې لمونځ**

پوښتنه: يوه ښځه يوازې په نوم مسلمانه، ديوه هندو ميرمن شوه، څو کاله ورسره وه، په شراب او کباب، کفر او شرک کې له هندوانو سره اخته وه، په همدغسې وخت کې مړه شوه، دهغې دجنازې لمونځ کيږي او که نه؟

ځواب: زناکاري دمسلمان او کافر په هکله کبيره ګناه ده، شراب څښل قطعي حرام دي، ددې مرتکبين فاسقان دي کافران نه دي. که دبتانو يا غير الله عبادت ورڅخه ثابت وي نو دجنازې لمونځ يې نه کيږي، که بت لمانځنه له دې مسلمانې ميرمنې څخه ثابت نه وي، هسې قياس او اټکل وي نو هم دجنازې لمونځ يې کيږي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۴۸، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۴ په حواله)

مسئله: په حديث شريف کې راغلي چې دهر نيک او بد دجنازې لمونځ کوئ، نو که کومه ميرمن نوې مسلمانه شوې وي، فاسقه او فاجره وي، که يې څو تنو دجنازې لمونځ وکړ خو ښه، کنه ټول ګنهګاره دي، توبه دې وکړي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۹۹)

## دمخنث (خنثی) دجنازې لمونځ

مسئله: دهر مسلمان که هغه سړی وي او که میرمن دجنازې لمونځ یې ضروري دی، که څه هم هغه فاسق او بدکاره وي. نو مخنث چې دمسلمانانو له ټولې څخه دی دجنازې لمونځ یې کیږي، که څه هم دبدکارې له امله هغه فاسق وي، دهغه دې لمونځ وشي، دمسلمانانو په هدیره کې دې خښ کړای شي، له دې پرته یې په مجلس کې کیناستل، دعوت او خواړه یې ښه نه دي، یوازې تجهیز او تکفین یې اسلامي حق دی. هغه دې وشي نور ورڅخه بیلتون ضرور دی. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۶۸، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۴ په حواله، فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۹۴، فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۲۹۴، طحطاوي ص ۴۷۷ په حواله)

مسئله: که کوم ماشوم ژوندی وزیږي، دبولو مخکنۍ او ورستنۍ لارې یې بالکل بندې وي، تر مړینې وروسته دې دماشومې احکام ورباندې جاري شي. له هغو مخصوصو احکامو پرته چې په اشباه ص ۲۴۴ کتاب کې یاد شوي دي. (فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۸۲)

مسئله: کوم ماشوم چې پیژندګلوي یې نه کیږي چې ماشوم دی او که ماشومه، تر مړینې وروسته یې اختیار چې دماشوم دعا ورته کیږي که دماشومې. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۰۲)

مسئله: دمخنث مړي دجنازې لمونځ فرض دی. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۱۰)

مسئله: دهیجړي (بدکاره مخنث) دجنازې لمونځ کیږي



خو عالم او لارښود خلک دې نه کوي، عادي خلک دې وکړي او خښ دې کړي.

## دزاني دجنازې لمونځ

مسئله: مسلمان که دزنا په مهال ومري، هغه فاسق دی کافر نه دی، ځکه یې دجنازې لمونځ کیږي. (فتاوی دارالعلوم ج۵ ص ۵۰۹، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۴ په حواله)

مسئله: امام او علماء دې دزانې او زانیې دجنازې لمونځ نه کوي، عام مسلمانان دې دجنازې لمونځ وکړي، خښ دې کړي. ځکه پرته له لمانځه دمسلمان خښول منع دي، که یې څوک په جنازه کې ګډون ونکړي، نه ګنه ګاره کیږي. (کفایت المفتي ج ۴ ص ۸۴)

## دولد الزنا دجنازې لمونځ

مسئله: ولدالزنا چې مور او پلار یا یې یو مسلمان وي، هغه مسلمان ماشوم دی. دهغه دجنازې لمونځ کیږي. ښکاره دی چې په دې سره دهغه هیڅ ګناه نشته. ګناه که یې دمور او پلار وه، دهغې مواخذه په ده نشته. هغه بې ګناه معصوم دی. دا چې ماشوم دی، دا ولدالزنا کیدل یې اختیاري کار نه دی. نو دتعزیر، تنبیه او زجر نه محل دی او نه هم مستحق. تنبیه او زجر که دزاني او زانیې لپاره وي نو کومه خبره نشته، هغه هم داسې چې دزانې او زانیې دجنازې لمونځ دې ټول خلک او ښه خلک نه کوي، بلکې یو یا دوه کسه دې وکړي

او خښ دي کړي. (کفایت المفتي ج ۴ ص ۸۰)

مسئله: که کوم مسلمان شخص، کومه مسلمانه میرمن له نکاح پرته وتښتوي او د هغې میرمنې ماشوم وزیږي او ومري، د هغه د جنازې لمونځ کیږي، ځکه هغه ماشوم خو ملامت نه دی، هغه مسلمان ماشوم دی.

(کفایت المفتي ج ۴ ص ۹۷ – فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۵۲۹)

مسئله: که له بې نکاح غیر مسلمې ښځې څخه د چا ماشوم پیدا شو او مړ شو، د هغه د جنازې لمونځ دې وشي او د مسلمانانو په هدیره کې دې خښ کړای شي.

(فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۳۷۲ محمودیه ج ۲ ص ۳۹۶)

مسئله: که له غیر مسلم څخه کومې مسلمانې میرمنې ماشوم وزیږاوه د جنازې لمونځ یې کیږي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۳۲ – ردالمحتار ج ۱ ص ۱۸۰)

مسئله: نابالغ ماشوم د کفر او اسلام په لحاظ د خپلو والدینو تابع دی، که په هغوی کې هریو مسلمان وُ د هغه تابع بلل کیږي او د جنازې لمونځ یې کیږي، که د غیر مسلم زوی پوهیده یعنې اوه کلن وُ، د هغه اسلام منل صحیح دي، که د اووکلونوؤ او کلمه یې وویله او مړ شو هغه مسلمان بلل کیږي تکفین او تجهیز دي د مسلمان په څیر کیږي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۲۸)



## که جسد خراب شوی وُ

مسئله: که د چا جسد په اوبو کې د ډوبیدلو له امله یا د تجهیز او تکفین د ځنډ له امله یا له بلې وجه د ومره خراب شوی وي چې د لاس وروړلو نه وي، یعنې د غسل لپاره د لاس په وروړلو د هغه د شړیدلو اندیښنه وي. په دې صورت کې یوازې اوبه ورباندې بهول کفایت کوي، ځکه په غسل کې مښل او نور څه ضروري نه دي. بیا دې سم کفن ورکړل شي، د جنازې تر لمانځه وروسته دې خښ شي، که تر لمانځه وړاندې شړیدلی وُ له لمانځه پرته دې خښ شي. (احکام میت ص ۱۱۶)

مسئله: که د کوم جسد بدبوي ولاړیده خو شړیدلی نه وُ د جنازې لمونځ یې کیږي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۳۵)

مسئله: که کوم جسد خراب شوی او شړیدلی و، د جنازې لمونځ یې ساقط دی، د جنازې لمونځ دې نه کوي.

مسئله: که د کوم جسد غوښه او یا نور څه بیل شوي وو یوازې د هډوکو کالبد یې راووت، دې کالبد ته د غسل ورکولو اړتیا نشته، د جنازې لمونځ دې نه ورباندې کوي، هسې دې په پاکه جامه کې ونغښتل شي او خښ دې کړای شي. (امداد الاحکام ج ۱ ص ۸۳۸)

مسئله: که څوک په اور یا برق وسوزید او مړه شول، له سنت سره سم دې غسل، کفن ورکړي، د جنازې لمونځ دې ورباندې وشي، خو که یې جسد خراب شوی یا شړیدلی و نو

حکم یې پاس بیان شو. (امدادالاحکام ج ۱ ص ۷۳۸)

## هغه چې خپله مسلماني نه څرګندوي دهغه دجنازې لمونځ؟

پوښتنه: یو شخص پټ مسلمان شو، لمونځ او نور شرعي احکام په پټه کوي خو په ښکاره هغه غیر مسلم دی او د هندوانو په خپل کور کې هستوګنه لري، خو دواده یا دشتمنې دویش لپاره په ښکاره مسلمان نه دی. ایا هغه مسلمان بلل کیږي او جنازه به یې کیږي؟

ځواب: کله چې دتوحید کلمه ووایې او داسلام احکام ومني، مسلمان کیږي. دخدای جل جلاله په حضور کې هغه مسلمان دی، هغه مسلمان ګڼل کیږي دجنازې لمونځ یې کیږي. (فقه اکبر ص ۱۰۲، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۶۱)

## تر خاورو خزلو لاندې دجنازې لمونځ

پوښتنه: که څوک تر خاورو خزلو لاندې ومري له هغو سره، سره راونه ایستل شي، دهغه دجنازې لمونځ به څرنګه کیږي؟ یو شخص وایې چې دهغې دخاورو دډیرې دپاسه دې وربانډې دجنازې لمونځ وشي.

ځواب: په داسې چا باندې دلمونځ کولو په هکله اختلاف دی، داچې غسل ورکړل شوی نه دی، نو اتکل یې نه کول دي او استحساناًیې دجوازوینا هم شوې ده، خو چې دجسد نه خرابیدلو اټکل یې غالب وي، که یکې شک وي یا په اتفاق دې وربانډې لمونځ کول جواز نلري. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۰۱، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۲۷ په حواله)



## که څوک تر ودانۍ لاندې شو یا راولویده دهغه دجنازې لمونځ

مسئله: که څوک تر ماڼۍ یا دیوال لاندې مړ شو (جسد یې هم ومونډل شو) یا څوک له پاسه راولوید یا دالوتکې په راولویدو کې ومړ، دبدن یې ډیره برخه خوندي وه، دهغه سم غسل، کفن کیږي او دجنازې لمونځ هم وربانډې اداء کیږي.
(احکام میت ص ۱۱۷)

## دپوروړي دجنازې لمونځ

پوښتنه: په حدیث شریف کې دي چې جنازه به راوړل شوه، رسول الله صلی الله علیه وسلم به پوښتنه کوله چې مقروض خو نه دی؟ که به کوم صحابي دهغه دپور داداء کولو ذمه ووهله نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به یې دجنازې لمونځ کاوو، ایا زه هم دسنت په متابعت دا پوښتنه کوم؟ زه امام یم.

ځواب: درسول الله صلی الله علیه وسلم په ویلو کې چې کوم حکمت و هغه ستاسو په ویلو کې نشته، نو ځکه ستاسو داسې کړه دسنت متابعت کیدلای نشي. (امدادالفتاوی ج ۱ ص ۷۴۹ ترمذي شریف ج ۱ ص ۲۰۵)

مسئله: تر هغه چې وارثان یې پور اداء کولای شي، که په قبر کې عذاب و هغه دپور تر اداء کولو وروسته انشاء الله لرې کیږي. تر ممکن حده دې دمړي دپور په اداء کولو کې بیړه کیږي. ځکه په حدیثونو کې دپور په اړه سخت وعید راغلی دی. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۵۸ دمشکوة ج ۱ ص ۳۳۷ په حواله)

مسئله: که څوک مړ شي او وربانډې پور وي. هغه دومره شتمني نه پریږدي چې هغه پور وربانډې ادا شي او نه یې پاته

کسان دپور دپرې کولو لپاره چمتو وي، دا بده مړینه ده.

داسلام په شروع کې به رسول الله صلی الله علیه وسلم دداسې شخص جنازه په خپله نه کوله، رسول الله صلی الله علیه وسلم به صحابه وو ته هدایت کاوو چې دجنازې لمونځ یې وکړي. په خپله به یې دهغه دجنازې لمونځ نه کاوو ترڅو خلک له اړتیا پرته له قرض اخستلو ځان وساتي.

مسئله: هغه څوک چې شاته دومره څه پرېږدي چې پور یې ورباندې اداء کېدلای شي یا یې وارثان دپاته شوي پور په اداء کولو راضي وي، داسړی حکماً مقروض مړ نه دی. په خپله په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې دوفات په مهال څه پور ؤ، دکور داړتیا لپاره یې شل صاع اوربشې اخستې وې او زغره یې ورته ګرو ایښې وه. تر وفات وروسته یې وارثانو اداء کړ. همداسې عمر او زبیر بن العوام (رضی الله عنهما) هم پورپرې ایښی و چې وارثانو یې اداء کړ.

مسئله: بده مړینه هغه ده چې هغه پوروړی ومړي، نه څه پرېږدي او نه یې وارثان دپور دابار په غاړه واخلي، دده روح په پور کې بنده پاته وي. (تحفة الالمعی ج ۳ ص ۴۸۲، شرح ترمذي، مولانا مفتي سعید احمد پالنپوري شیخ الحدیث د دارالعلوم دیوبند)

## دمړي دپور اهمیت

دتجهیز او تکفین تر مصارفو وروسته، تر ټولو مهم دخدای دمخلوق دقرضونو اداء کول دي، هغه چې دمړي په



غاړه پاته دي. که مړی دخپلې میرمنې مهر نه ؤ ورکړی، هغه هم پور دی، دهغه اداء کول هم دنورو قرضونو په څېر ضروري دي. تر تجهیز او تکفین وروسته دمړي دټولو قرضونو ورکړه فرض ده. که مړي وصیت کړی وو او که یې کړی نه وو، که د هغه ټوله ترکه په قرضونو کې یې ولګېږي، اداء کول یې لازم دي. که دپور تر اداکولو وروسته یې کومه شتمني پاته شي، هغه به دمړي په وصیت کې له شرعي قاعدې سره سم لګېږي او وارثانو ته به هم پاته کېږي، که څه هم پاته نشي نو نه یې په وصیت عمل کېږي او نه یې وارثانو ته څه رسېږي. ځکه په شریعت کې دقرضونو ورکړه تر میراث او وصیت دواړو لومړی ده. (مفید الوارثین ص ۳۶)

رسول الله صلی الله علیه وسلم دپور په هکله خورا تاکید کړی دی. دابو هریره رضی الله عنه بیان دی: رسول الله صلی الله علیه وسلم ته چې به داسې مړی دجنازې دلمانځه لپاره راوړل شو چې هغه به قرضداره ؤ. پوښتنه به یې کوله چې دې سړي دپور داداء کولو لپاره مال پرې ایښی دی؟ که به ورته وویل شول چې دومره څه ورځخه پاته دي چې قرض یې ورباندې پرې کېږي نو به یې دجنازې لمونځ ورباندې کاوو، کنه صحابه وو ته به یې ویل چې لمونځ ورباندې وکړئ. (صحیح مسلم شریف ج ۲ ص ۳۵)

دا په داسې حال کې چې دهغو خلکو قرض به هم ډېر نه و

او دضرورت لپاره به یې پور اخست، بیا هم رسول الله صلی الله علیه وسلم دومره سختي کوله.

نن زمانه خو خلک دعبث مصارفو لپاره ډیر قرض غواړي، بیا یې تر اداء کولو وړاندي مړه شي او وارث یې هم کوم فکر نه کوي. په حدیث شریف کې دي: دمؤمن چې تر څو پور اداء نکړای شي روح یې (له ثواب یا جنت ته تللو) حصاره وي. لنډه دا چې، د بندګانو دپورونو او دخدای تعالی دحقوقو ترمنځ دري توپیره شته:

۱- دبنده دقرضونو اداء کول دمړي په وصیت کولو پوري اړه نلري او دالله تعالی دحقوقو اداء کول دمړي په وصیت پوري تړلي دي. که یې وصیت ونکړ په وارثانو یې دا لازمه نده.

۲- دبندګانو دقرض په اداء کولو کې کوم حد نشته، تر تجهیز او تکفین وروسته ټوله شتمني یې په پورونو کې ورکوله کیدلای شي او اداء کول یې فرض دي. خو دالله تعالی حقوق وروسته تر هغه چې دخلکو پورونه ورکړل شي او ترکه څه شي پاته شي، دهغې په دریمه برخه کې یې اداء کول لازم دي. تردریمي برخې زیات لګول یې په وارثانو لازم نه دي.

۳- دالله تعالی حقوق هغه وخت اداء کیږي چې دبندګانو قرضونه اداء کړای شي. تفصیل یې په مفید الوارثین، د میاصاحب په تالیف کې وګورئ.



یوه شخص رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض وکړ: زما ورور مړ شوی دی، واړه، واړه ماشومان ورڅخه پاته دي، ایا زه ورباندي مال مصرف کړم. رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته لارښوونه وکړه: وروردي دپور له امله قید دی، قرض یې اداء کړه. (مفید الوارثین ص ۴۰، دمشکوة شریف په حواله)

## دمور او ماشوم یوځای دجنازي لمونځ

پوښتنه: دحمل دوضع په مهال مور او ماشوم دواړه مړه شول، دجنازي لمونځونه به یې یوځای که بیل، بیل کیږي؟

ځواب: ددواړو جنازې بیلي، بیلي کول غوره دي، خو که یوځای کیږي نو دامام مخته دي لومړی ماشوم او بیا دهغه دمور جنازه کښیښودل شي یا دي دماشوم پښو ته دمور جنازه کښیښودله شي، دا هم جایزه ده.

ددواړو که جنازه یوځای کیږي لومړي دي دبالغ دعا او بیا دنابالغ دعا وویله شي. (فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۳۶۰ دطحطاوي ص ۳۴۵)

مسئله: که کومه میرمن دحمل دوضع په مهال ومري او ماشوم یې زیږیدلی نه وي، ددواړو دي یوځای دجنازي لمونځ وشي، چې ماشوم دمور په ګیډه کې مړ وي، دماشوم لپاره بیله جنازه نه کیږي. (آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۵۷)

مسئله: که کومه میرمن دحمل دوضع په حالت کې ومري خو په ګیډه کې یې ماشوم ژوندی وي، دمیرمنې ګیډه دي غوڅه او ماشوم دي تري راوباسي. که ژوندی را وایستل

شي او وروسته ومري، د نورو ماشومانو په څېر دي ورباندې نوم کښېښودل شي، غسل او کفن دي ورکړل شي، د جنازې لمونځ دي وشي او خښن دي شي. که مړ ؤ یا تر را ایستلو وړاندې مړ شو، نو د مور ګېډه دي نه څیري او ماشوم دي نه را ایستـــــل کیږي، خو که را وایستل شي د نورو مړه شویو ماشومانو حکم لري. (احکام میت ص ۱۱۵، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۴۰ په حواله)

(نن سبا د نویو اختراع شویو لوازمو په سبب د مړینې او ژوند حال یې معلومولای شي.)

مسئله : که چا د بل چا څه مال (قیمتي شی) تیر کړ او مړ شو، ګېډه دي وڅیري او هغه دي ترې را وایستل شي.
(علم الفقه ج ۲ ص ۲۰۷)

مسئله : که حامله میرمن ومري او ماشوم یې په ګېډه کې حرکت کوي، ګېډه دي وڅیري او ماشوم دي ترې را وباسي. دا حکم هغه وخت دی چې ماشوم د دومره مودې وي چې حرکت کوي او د مور تر مړینې وروسته یې هم حرکت پاتـه وي. د مودې کوم قید نشته بلکې که د ۹ میاشتو هم وي خو د مور تر مړینې وروسته یې په ګېډه کې حرکت معلوم نشي نو د مور ګېډه دي نه څیري. د ماشوم ژوندیتوب په حرکت کې دی نه په موده سره. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۷٦ درمختار ج ۱ ص ۸۴۰)

نن سـ[illegible] شویو لوازمو په مرسته د مړینې او [illegible] ي.



مسئله : که په ماشوم کې ساه نه وي یا وي خو معلومېږي چې مړ شوی دی کوم حرکت نلري، نو دا مړه شوې میرمن دي له هغه ماشوم سره خښه شي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۱۹۱ ردالمحتار ج ۱ ص ۸۴۰ په حواله)

مسئله : د میرمنې له ګېډې که د ماشوم څه برخه را ووتله او مړه شوه نو ماشوم (که مړ وي) له مــــوره دي نه بیلیږي بلکې میرمنې تـه غسـل ورکـول، کفـن ورکـول او لمـونځ ورباندې کول کافي دي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۶۹)

**د باغي، لاروهونکي او د والدینو د وژونکي د جنازې لمونځ**

پوښتنه : کـه قاتـل د سزا پـه ډول ووژل شي او یا پـه دار ځوړنـد شـي، د هغـه د جنـازې حکـم څـه دی؟ او د والـدینو د وژونکي د جنازې د لمانځه حکم څه دی؟

ځواب: د جنازې لمونځ د هر ګنهګار مسلمان کیږي خو باغي او لاروهونکی که د مقابلې په مهال ووژل شي، د هغه د جنـازې لمـونځ نـه کیـږي، نـه دي غسـل ورکـول کیـږي. همداسې که څوک له مور او پلار څخه کوم یو ووژني او دی په قصاص کې ووژل شي، د هغه د جنازې لمونځ دي هم نه ورکوي، که په خپل مرګ ومري د هغه جنازه کیږي خو مخور خلک دي په جنازه کې ګډون نکوي. (آپ کي مسائل ج ۳ ص ۱۳۲)

مسئله : د لاروهونکي او باغي جنازه له دې امله نه کیږي چې ترڅو د نورو لپاره عبرت او خبرتیا شي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۰۸، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۳ په حواله)

## دځان وژونکي دجنازې لمونځ

پوښتنه: چا ځان په خپله وواژه. دجنازې دلمانځه په مهال يې اختلاف راولاړ شو، چايې دجنازې لمونځ وکړ، هغوی دا بلې ډلې ته وويل تاسو له ثواب څخه بې برخې شوئ. خو دوهمې ډلې لومړنۍ ته وويل: تاسو دځان وژونکي په جنازه کې ګډون وکړ ګناه کار شوی، شرعي حکم يې څه دی؟

ځواب: ځان وژنه يو خورا ستر جرم دی. له همدې امله فقها ليکي چې نوموتي کسان دې دجنازې لمونځ نه کوي ترڅو له دې کار څخه دخلکو کرکه پيدا شي، عوام دې وکړي. په کوونکو يې ګناه نشته او نه يې دتاريکينو ګناه شته، ددې دواړو ډلو په يوه او بل باندې تور ويل غلط دی. (آپ کي مسائل ج ۳ ص ۱۳۱)

مسئله: ځان وژونکی فاسق دی کافر نه دی. نو دمغفرت دعا او ثواب ورته ببنل جايز دي. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۹۶، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۸۸، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۵ فتاوی رحيميه ج ۱ ص ۳۶۷)

مسئله: که يو مسلمان بل مسلمان قصداً ووژني، حکومت دې اعدام کړي، هغه ګناه کار دی خو دجنازې لمونځ دې ضرور ورباندې وشي. (فتاوی محموديه ج ۲ ص ۳۹۷ دشامي ج ۱ ص ۵۸۴ په حواله)

(دلته دې هم نوموتي خلک پکې ګډون نه کوي. رفعت قاسمي.)

مسئله: ځان وژنه که څه هم ستره ګناه ده، خو مرتکب يې کافر نه دی، نو ځکه يې دجنازې لمونځ فرض دی. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۹۶)



## په ترافيکي پيښه کې که ومري دهغه دجنازې لمونځ

مسئله: که له ريل يا موټر يا هم له بل څه ولويږي او ومري يا له څه شي سره په ټکر کې ومري، دا صغری شهادت دی. د شهيد ددنيا احکام نه ورباندې عملي کيږي خو په اخرت کې اميد دی چې په شهداوو کې وګڼل شي. انشاء الله. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۴۴)

مسئله: دشهادت لپاره لومړنی شرط اسلام دی، له همدې امله شيعه مسلمان نه دی، نو دهغه مړينه نه کبری شهادت دی او نه هم صغری. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۴۴)

يادونه: اهل تشيع يوه فرقه نه ده، هغوی ډيرې فرقې دي دټولو حکم يو نه دی او دا خبره دهمدې کتاب دجنازې دلمانځه په برخه کې څرګنده شوې ده. ريان.

## په بمبارۍ کې دشهيد شويو حکم

مسئله: په جګړه کې که په ښارونو کې دهوايې بمبارۍ له امله څوک شهيدان شي، په هغوی باندې دشهادت دنيايې احکام نه جاري کيږي، غسل ورکول کيږي.
(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۴۴ مراقي الفلاح ص ۳۱۲-۳۳۶)

مسئله: که څوک په اوبو کې ډوب او ومري يا دهيضې او طاعون په ناورغيو ومري، هغه حکماً شهيد دی، غسل او کفن ورته ورکول کيږي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۷۳)

مسئله: که کوم مسلمان دکفارو له لوري ووهل شي او مړ شي، هغه شهيد دی. حريق (سوزيدلی) غريق (ډوب شوی)

یا هغه چي دیوال ورباندي راولویږي او مړشي داټول دآخرت شهیدان دي ، هغوی ته غسل ورکول لازم دي. که یې امکان نه وُ، تیمم دي ورووهل شي. که پرته له غسل څخه خښ شي، حکم یې دادی چي تر خښولو وروسته دي پیا دجنازي لمونځ له قبرسره وشي، ځکه کوم لمونځ چي له غسل پرته شوي دي هغه اعتبار نلري .

تر خښولو وروسته یې غسل کیدلای نشي، متعذر دی، نو ساقطیږي او لمونځ پیا له قبره سره وربانـدي کیږي، خو دا حکم دمړي دبدن تر تغیر وړاندي دی.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۷۴ و ۴۷۶ ، ردالمحتار باب الشهید ج ۱ ص ۸۵۲)

مسئله : کامل شهید یوازي هغه وژل شوی دی چي په جنګ کي ووژل شي، هغه ددنیا او اخرت شهید دی او نور یوازي داخرت شهیدان دي، ددنیا په احکامو کي شهیدان نه دي.(امداد الاحکام ج ۱ ص ۸۴۱)

مسئله : حقیقي شهید ته غسل نه ورکول کیږي، خود جنازي لمونځ یې واجب دی. یو شرط یې دادی چي دبدن داسي برخه به یې موجوده وي چي غسل ورکول کیږي.

(کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۴۲)

## دشهید ډولونه

مسئله : داحنافو په نزد شهید هغه دی چي هغه په ظلم سره … ژل شوي وي، که هغه په جنګ کي وژل شوي وي یا



دباغي ، دښمن یا لاروهونکي له خوا مړشوي وي، که څه هم دغه یې دمړینې مستقیم سبب نه وي.

مسئله : شهید دري ډوله دی:

۱- کامل شهید : هغه دی چي ددنیا او آخرت شهید دی او دکامل شهید لپاره شپږ شرطونه دي:

۱- عقل . ۲- بلوغ . ۳- اسلام . ۴- له حدث اکبر(لویې بې اودسي) حیض او نفاس څخه پاکوالی . او داچي دهلاکت تر سبب وروسته به پرته له خوړلو ،څښلو او خوب کولو مړشوي وي ، نه به یې درملنه شوي وي او نه به له هغه ځایه کومي خیمي یا کورته په ژوند نقل شوي وي. نه به د لمانځه بشپړ وخت وربانـدي په ژوند تیر شوي وي او په وژونکي به یې قصاص واجب شوي وي ، که څه هم په کوم سبب مثلاً روغه جوړه یا بله وجه دقصاص حکم مرتفع شوی وي. خو که دا وژل داسي وي چي مالي بدل پکې واجبیږي، لکه غیر قصدي وژنه ، په هغه صورت کي دکامل شهادت درجه ورته نه پیدا کیږي. خو په کامل شهادت کي دا صورت هم شامل دی چي کوم مسلمان دخپل مال یا ځان یا دمسلمانانو او ذمیانو دحفاظت له امله وژل شوي وي.

دداسي شهیدانو په هکله مسئله داده چي غسل به نه ورکول کیږي خو که له ویني پرته نوره کومه ناولتیا وربانـدي لګیدلي وي هغه به یې پریمنځي.

شهيد په خپل لباس کې خښيږي خو داسي څه چې د کفن حيثيت نلري هغه به تري لري کوي، لکه پخته لرونکي جامه، خولۍ، جرابي، وسله او زغره خو د پړتوگ په خلاف چې هغه به نه تري لري کيږي.

مسئله: د شهيد د جنازي لمونځ کيږي او د هغه په وينو لړلی لباس سره خښيږي. د شهيدانو دوهم ډول دا دی چې يوازې د اخرت شهيد دی. لکه دا چې په ياد شويو شرايطو کې يې کوم يو پوزه کړي نه وي. مثلاً په ظلم وژل شوي وي خو د ناپاکي يا حيض او نفاس په حالت کې وي. يا تر ويشتلو وروسته سمدستې مړ نشي يا نابالغ يا مجنون وي يا په ناپوهې سره ووژلای شي چې په وژنه يې تاوان واجبيږي. داسې شهيدان کامل شهيدان نه دي خو د اخرت شهيدان دي، په قيامت کې ورته هغه څه شته کوم چې د شهيدانو لپاره وعده شوي ده.

داسي شهيدانو ته کفن او غسل ورکول کيږي، د نورو مړه شويو په څير د جنازې لمونځ ورباندي کيږي. د اخرت د شهيدانو په ډله کې هغه کسان هم دي چې ډوب شي يا وسوزي، په جلا وطنې کې مړ شي، په وبايې ناورغيو، استسقاء، پيچ، ساه بندي، سل، محرقه، چيچلو يا همداسې بل سبب ومري.



د طالب العلمې په حال کې او د جمعې په شپه مړ شوي هم دغسي دي. دي شهيدانو ته غسل ورکول کيږي، کفن ورکول کيږي، د جنازې لمونځ ورباندي کيږي که څه هم په آخرت کې د شهيدانو ثواب ورکول کيږي.

دريم ډول شهيد، دنياوې شهيد دی. له دې څخه مطلب منافق دی چې د مسلمانانو په صف کې ووژل شي، هغه ته غسل نه ورکول کيږي، په خپلو جامو کې يې خښيږي او د هغه له ظاهري حال سره ورباندي د جنازې لمونځ کيږي.
(کتاب الفقه ج۱ ص۸۵۱، علم الفقه ج۲ ص۲۰۵)

مسئله: که شهيد کامل وي کومې جامې چې يې اغوستې وي، هغه نه تري ايستل کيږي که يې جامې تر مسنون کفن کمې وي، نو د مسنون کفن شمير دې ورته پوره کړي دا زياتول جواز لري. که يې تر مسنون کفن جامې ډيرې وي لري کول يې هم جواز لري. (علم الفقه ج۲ ص۲۰۵)

**په داسې حال کې چې شهيد ژوندی وي، لمونځ يې ولې کيږي؟**

پوښتنه: په قرآن کريم کې د الله تعالی ارشاد دی:
"مؤمن چې د الله تعالی په لاره کې ومري، هغه ته مړ مه واياست هغه ژوندی دی."

له دې حقيقت څخه دا پوښتنه راپورته کيږي چې شهيد ژوندی دی، نو د شهيد د جنازې لمونځ ولې کيږي، د جنازې لمونځ خو په مړه شويو باندي کيږي؟

ځواب: ستاسو دسوال ځواب په ورپسي ایت کې شته، (هغه ژوندی دی خو تاسي نه پوهیږي) له دې ایت څخه معلومیږي چي قرآن کریم دشهیدانو کوم ژوند یاد کړی دی، هغه یې دنیایې ژوند نه دی، بلکې یو بل ډول ژوند دی چې ورته برزخي ژوند ویل کیږي او زموږ له شعور او پوهې څخه لوړ دی، ددنیا ژوند ورڅخه مقصد نه دی.

داچې دي مبارکو خلکو ژوند بشپړ کړی او تللي دي نو موږ یې دجنازې په لمانځه او خښولو مکلف یو، دهغه وراثت ویشل کیږي او میرمن یې تر عدت وروسته دوهمه نکاح کولای شي. (آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۳۲)

## دطبي معاینې دمړي دجنازې لمونځ

مسئله: نن سبا دهغه چاچې په ترافیکي پیښو کې مړ شوي وي یا وژل شوي وي، طبي معاینه کیږي، څیروي یې او دننه یې ګوري، ډیر خو داسي وي چې له شرعي ضرورت څخه پرته داکار کیږي او دا جواز نلري.

خو که په شرعي اړتیا سره کار کیږي، دبل شخص ژوند وربانديږ ژغورل کیږي یا دبل دحال دنه ضایع کیدلو له امله طبې معاینې کیږي، هلته هم باید شرعي احکام لکه ستراو د مړي احترام او نورو لحاظ وساتل شي. تر فراغت وروسته یې ټول اندامونه خښ کړای شي. (امداد الفتاوی ج ۱ ص ۵۰۸، کفایت المفتي ج ۴ ص ۱۸۸ - احکام میت ص ۲۲۷)



(که دطبې معاینې په صورت کې دمړه په وجود باندې پټۍ یا بل څه تړل شوي وي، که یې په پرانستلو کې مړه ته زیان رسیده، نه دې پرانیزي، په هغه حالت کې دې غسل او کفن ورکړي. محمد رفعت قاسمي)

مسئله: تر خښولو وروسته قبر سپړل او مړي دطبې معاینې لپاره را ایستل جواز نلري. په غیر مسلم حکومت کې دې مسلمانان هڅه وکړي چې دا قانون منسوخ کړي، که یې کولای نشوای، حکومت داکار جبراً کاوو نو مسلمانان معذور دي. (کفایت المفتي ج ۴ ص ۱۸۹)

## که دجسد څه برخه وموندل شي، دهغه دجنازې لمونځ

که دچا پوره جسد ونه موندل شو، څه برخې یې پیدا شوي، ددې څو صورتونه دي:

- یوازې لاس یا لینګې یا سر یا ملا یا کوم بل اندام یې وموندل شو، دهغه غسل، کفن، دجنازې لمونځ هیڅ نشته، په یوه جامه کې دې ونغښتل شي او خښ دې شي.

مسئله: دوجود څو متفرق اندامونه مثلاً دوه لینګې یا دوه لاسونه، یا یو لاس او یوه پښه یا دغسي نور غړي وموندل شول، دغه سره یوځای شي او تر نیم بدن ورڅخه کم بخوږ شي، دمړي ډیره برخه غایبه وي، ددې غړو غسل، کفن او لمونځ شته، په جامه کې دې پټ او خښ شي.

مسئله: که دجسم نیمه برخه له سر سره وسپړل شي نو غسل او کفن نه ورکول کیږي، دجنازې لمونځ یې کیږي په

ځواب: ستاسو د سوال ځواب په وریسې ایت کې شته، (هغه ژوندي دي خو تاسي نه پوهیږئ) له دې ایت څخه معلومیږي چې قرآن کریم د شهیدانو کوم ژوند یاد کړی دی، هغه یې دنیایي ژوند نه دی، بلکې یو بل ډول ژوند دی چې ورته برزخي ژوند ویل کیږي او زموږ له شعور او پوهې څخه لوړ دی، د دنیا ژوند ورڅخه مقصد نه دی.

دا چې دې مبارکو خلکو ژوند بشپړ کړی او تللي دي نو موږ یې د جنازې په لمانځه او خښولو مکلف یو، د هغه وراثت ویشل کیږي او میرمن یې تر عدت وروسته د وهمه نکاح کولای شي. (آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۳۲)

## دطبي معاینې د مړي د جنازې لمونځ

مسئله: نن سبا د هغه چا چې په ترافیکي پیښو کې مړ شوي وي یا وژل شوي وي، طبي معاینه کیږي، څیروي یې او د ننه یې ګوري، ډیر خو داسي وي چې له شرعي ضرورت څخه پرته دا کار کیږي او دا جواز نلري.

خو که په شرعي اړتیا سره کار کیږي، د بل شخص ژوند وړ باندې ژغورل کیږي یا د بل د حال د نه ضایع کیدلو له امله طبې معاینې کیږي، هلته هم باید شرعي احکام لکه ستراو د مړي احترام او نورو لحاظ وساتل شي. تر فراغت وروسته یې ټول اندامونه خښ کړای شي. (امداد الفتاوی ج ۱ ص ۵۰۸، کفایت المفتي ج ۴ ص ۱۸۸ - احکام میت ص ۲۲۷)



(که دطبې معاینې په صورت کې د مړه په وجود باندې پټۍ یا بل څه تړل شوي وي، که یې په پرانستلو کې مړه ته زیان رسیده، نه دې پرانیزي، په هغه حالت کې دې غسل او کفن ورکړي. محمد رفعت قاسمي)

مسئله: تر خښولو وروسته قبر سپړل او د مړي د طبي معاینې لپاره را ایستل جواز نلري. په غیر مسلم حکومت کې دې مسلمانان هڅه وکړي چې دا قانون منسوخ کړي، که یې کولای نشوای، حکومت دا کار جبراً کاوو نو مسلمانان معذور دي. (کفایت المفتي ج ۴ ص ۱۸۹)

## که د جسد څه برخه وموندل شي، د هغه د جنازې لمونځ

که د چا پوره جسد ونه موندل شو، څه برخې یې پیدا شوي، د دې څو صورتونه دي:

- یوازې لاس یا لینګې یا سر یا ملا یا کوم بل اندام یې وموندل شو، د هغه غسل، کفن، د جنازې لمونځ هیڅ نشته، په یوه جامه کې دې ونغښتل شي او خښ دې شي.

مسئله: د وجود څو متفرق اندامونه مثلاً دوه لینګې یا دوه لاسونه، یا یو لاس او یوه پښه یا د غسې نور غړي وموندل شول، د غه سره یو ځای شي او تر نیم بدن ور څخه کم بچوړ شي، د مړي ډیره برخه غایبه وي، د دې غړو غسل، کفن او لمونځ شته، په جامه کې دې پټ او خښ شي.

مسئله: که د جسم نیمه برخه له سر سره وسپړل شي نو غسل او کفن نه ورکول کیږي، د جنازې لمونځ یې کیږي په.

جامه کې پټ او خښیږي.

مسئله: که د جسم ډیره برخه ومونده شي، که څه هم سر یې نه وي غسل، کفن او لمونځ هر څه دې وشي او خښ دې شي.

(هغه جسد چې د مسلمانۍ نښه په کې نه وي نو له مسنونې طریقې پرته دې غسل ورکړل شي، خښ دې کړل شي، که کومه داسې قرینه وه چې زړه ورباندې د مسلمانۍ شاهدي ویله، نو لمونځ دې ورباندې وشي او د مسلمانانو په هدیره کې دې خښ شي. رفعت قاسمي)

مسئله: که د مړي جسد خراب او شړیدلی ؤ سبب یې په اوبو کې ډوبیدل یا بل څه و نو د جنازې لمونځ ورڅخه ساقطیږي. (امداد الاحکام ج ۱ ص ۸۳۰ - بحر ج ۲ ص ۱۸۲)

## که کوم اندام په ژوند کې ترې بیل شي

که په ژوند له چا څخه کوم غړی غوڅ شي یا د عملیاتو په واسطه ترې بیل شي، د هغه غسل کفن او د جنازې لمونځ هیڅ نشته، خو په جامه کې دې پټ او خښ کړي. (احکام میت ص ۱۲۳)

مسئله: که کوم اندام له ژوندي انسان څخه بیل شي، په هغه باندې د جنازې لمونځ نه کیږي. که د مړي له سر پرته نور وجود موجود و. د جنازې لمونځ یې کیږي خو که یې یوازې سر ومونده شو، د جنازې لمونځ یې نه کیږي. لنډه دا قاعده داده: که تر نیم زیات جسد ومونده شو، د جنازې لمونځ یې کیږي او کنه ؤ، بیا نه کیږي.

(فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۳۱۵، رد المحتار ج ۱ ص ۸۰۴ په حواله)



## په نیم جسد باندې د جنازې لمونځ

که د چا یوازې سر ومونده شو، غسل نه ورکول کیږي، هسې خښیږي. که د چا د بدن تر نیم ډیر ومونده شو، غسل ورکول یې ضروري دي، که سر ورسره وو او که نه و. خو که تر نیم زیات نه و بلکې نیم و، که سر ورسره ؤ غسل ورکول کیږي او که نه و، نه ورکول کیږي. که تر نیم کم ؤ غسل نه ورکول کیږي، که سر ورسره ؤ او که نه و. (علم الفقه ج ۲ ص ۱۸۸)

مسئله: که د مړي نیم جسد او سر ورسره ؤ، هغه د پوره جسم حکم لري. په مسنونه طریقه دې تجهیز، تکفین او تدفین وشي او د جنازې لمونځ دې ورباندې وکړل شي. که جسم نیم ؤ سر ورسره نه و نو د داسې مړي نه په مسنونه طریقه غسل شته، نه کفن او نه خښول او نه هم لمونځ ورباندې کیږي. و دې مینځې په یوه جامه کې دې پټ او خښ کړي او خاوره دې ورباندې واچوي. که تر نیم جسد کم و هم د غه یې حکم دی. (فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۹۴ د شامي ج ۱ ص ۸۰۹ په حواله)

مسئله: که د مړي د جسد ډیره برخه پاته وه، یعنې تر نیم زیاته وه، که څه هم سر ورسره نه و نو غسل ورکول کیږي او لمونځ ورباندې کیږي. خو که یې ډیره برخه سوزیدلې او ایره شوې وه او لږه برخه یې پاته وه نو غسل او لمونځ یې لازم نه دي. (فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۳۴۵، رد المحتار ج ۱ ص ۸۰۴، باب صلوة الجنائز په حواله)

***********

## که تر خښولو وروسته ځینې اندامونه وموندل شي؟

مسئله: که د کوم مړي بدن ډېره برخه وموندله شوه او نوره ونه موندله شوه، په دې ډېره برخه یې د جنازې لمونځ وکړا و خښ یې کړ، وروسته هغه پاته برخه وموندله شوه، په پاته برخه د جنازې لمونځ نه کیږي، په یوه جامه کې دې وپیچي او خښ دې کړي.(احکام میت- ۱۲۳ د عالمګیري او شامي په حواله)

مسئله: په ځنګل یا بل ځای کې د مړي ټول جسد ونه موندل شو یوازې سر او ځینې هډوکي یې پیدا شول، په دې صورت کې د هډوکو غسل او کفن ته ضرورت نشته، هغه دې په جامه کې پټ او خښ کړي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۰۴، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۰۴ په حواله)

مسئله: څوک په سیند کې ډوب شو، جسد داسې وموندل شو چې هسې هډونه پاته وو. د هغه د جنازې لمونځ نه کیږي، هغه هډونه دې په پاکه جامه کې په خاورو کې خښ کړل شي. (امداد الاحکام ج ۱ ص ۸۳۰)

مسئله: څوک که د طاعون له ځایه وتښتي او هغه هلته ومري د هغه د جنازې لمونځ کیږي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۸۶)

مسئله: د بدعتي د جنازې لمونځ هم کیږي ځکه هغه کلمه وایي، کافر نه دی. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۵۳)

مسئله: د غیر مسلم زوی که کوم مسلمان واخلي د جنازې لمونځ یې نه کیږي خو که یې پلار یا مور کوم یو مسلمان وي



نو د جنازې لمونځ یې واجب دی.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۵۲، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۱ په حواله)

مسئله: د ګنهکار مسلمان د جنازې لمونځ هم کیږي، که څه هم هغه زاني، شرابي، بې لمانځه او فاسق وي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۵۹)

مسئله: د نشه اي موادو خوړل، څښل حرام دي، له شرابي سړي سره خوړل څښل ورنه دي، خو که ومري د جنازې لمونځ ورباندې کیږي، د سود خوړونکي هم د غه حکم دی، یعنې د جنازې لمونځ دې وشي او د سود راکړه، ورکړه حرامه ده، له داسې کس څخه بیل اوسیدل ضروري دي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۱۳۴)

مسئله: خاوند ته د خپلې میرمنې د جنازې لمونځ صحیح دی، ضرور دې وکړي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۱۵)

مسئله: څوک چې د روژې په حال کې ومري، روژه ماته نه کړي، د هغه د جنازې لمونځ صحیح دی، هغه د روژې د نه ماتولو له امله ګنه کار نه دی، په دې صورت کې ورته اجر ورکول کیږي. (دارالعلوم ج ۵ ص ۳۳۶)

مسئله: که د زیږیدلو په مهال په ماشوم کې د ژوند کومه نښه ولیدله شي، د جنازې لمونځ دې وشي او که نه وه، نه دې کیږي. (فتاوی دارالعلوم ص ۳۵۹)

مسئله: که ماشوم مړ وزیږي، د جنازې لمونځ یې نشته، خو کفن ورکول کیږي او خښیږي. (که یې پزه، غوږونه، لاس

او پښې او نور ټول جسم وو کفن ور کول کیږي او خښیږي)

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۵۹ ،ردالمحتار ج ۱ ص ۸۲۸ په حواله)

مسئله : دبې واده دجنازې لمونځ داسې ضرور دی لکه دواده والا ، خو نکاح عفت خوندي ساتي.

مسئله : داغلطه ده چې که چا واده کړی نه وا او مړشو د جنازې لمونځ یې نه کیږي، ځکه دجنازې دلمانځه لپاره دمړي مسلمان والی شرط دی ، واده کول شرط نه دي.

(آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۳۰)

## که غیر مسلم د مسلمان په جنازه کې ګډون وکړي

مسئله : دمسلمانانو په ذمه چې فرض دی هغه دمړي غسل، دجنازې لمونځ او نور دي،چې دا پوره شي بیا که کوم غیر مسلم شخص له مړي سره لاس لګاوو، مخ یې کوت یا یې استغفار وایه یایې په خپل ډول لمونځ کاوو نو له دي څخه نه ورته زیان شته او نه هم ګټه ، که وس و منع دي کړي او که نه و، پټه خوله دې وي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۵۳)

مسئله : که کوم پیر او مرشد تر جنازې وړاندې هندوانو دخپلې عقیدې او ورته ددرناوي له امله ساز او سروز کاوو، کورنۍ یې هغه منع کول ، بیا هم نه منع کیدل نو دمنکراتو له امله دې جنازه نه پریښود له کیږي، بلکې له منکراتو دې هغوی منع کړي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۰۲ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۳ په حواله)

**********



## دغیر مسلم په جنازه کې ګډون کول

سوال : دلته یو غیر مسلم ماشوم مړشو، یو مسلمان شخص یې په جنازه کې ګډون وکړاو دهغه ماشوم مړی یې په خپلو لاسونو کې واخیست او یویې وړ. ددې شخص په هکله حکم څه دی؟ ایا داکاریې په ایمان او نکاح اغیز کوي؟

ځواب :دکوم مصلحت یا اړتیا له امله ، له غیر مسلمانانو سره ناسته ولاړه ،دهغه په درد او دوک کې ګډون کول او دانسانیت په چوکاټ کې ورسره مرسته کول … تیره بیا چې ګاونډي هم وي، شرعاً جایز دي.نیت به پکې سم او دهغه داصلاح وي.د مداهنت (چاپلوسي – تملق) به نه وي. خو دهغوی په مذهبي معاملو او رواجونو کې ګډون کول جواز نلري، نو که کوم غیر مسلم ناروغ وي یا مړ شي،دهغه پوښتنه او تعزیت خو جوازلري اما له جنازې سره یې تلل او په نورو مذهبي رواجونو کې یې ګډون کول ناجایز دي.

کومه پوښتنه چې شوي ده که هغه دخپل مروت یا په بل لحاظ سره پکې ګډون کړي وي نو هغه دي له دي کار (دمړي اخستلو او وړلو) له زړه توبه وکاړي. دخلکو په وړاندې دي خپله توبه څرګنده کړي ، بیا دې داسې حرکت نه کوي او دغسي هوډ دي وکړي ،دهغه ایمان او نکاح باقي پاته دي، په دې کې شک نه کیږي.(فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۱۸۰ ،ردالمحتار ج ۵ ص ۵۴۱ کتاب الحظر په حواله ،امداد الفتاوی ج ۱ ص ۵۳۱)

مسئله: ځينې خلک وايي، کله چې د غير مسلم جنازه وليدله شي ،نو داسې دې وايي:

في نارجهنم خالدين فيها. په شريعت کې ددې هيڅ اصل نشته. (اغلاط العوام ص ۲۱۸)

## دجنازې دلمانځه لپاره په هديره کې چوتره جوړول

مسئله: چوتره په داسې ځاى جوړول چې هغه دهديرې لپاره وقف وي او هغه دلمانځه لپاره ځانګړې کول جواز نلري. هغه چوتره دې ړنګه شي او دمړو دخښولو لپاره دې ځمکه خالي شي. خو که دغه ځمکه دمړو دخښولو لپاره وقف شوي نه وي، بلکې هغه يې دجنازې دلمانځه لپاره وقف کړې وي، نو بيا دجنازې لمونځ ورباندې صحيح دى. که له پنځګونو لمونځونو څخه کوم لمونځ کله په دې چوتره وکړل شي، پروا نلري. خو ددې پنځګونو لمونځونو لپاره هغه ځانګړې کول جواز نلري. (کفايت المفتي ج ۷ ص ۱۴۰)

که چوترې ديوال نه درلوداو مخته ستره ودروي لمونځ کيږي.

مسئله: که دجنازې دلمانځه لپاره يا دېخ او ګرمي په مهال، دکښيناستلو لپاره کومه خونه يا بل څه دهديرې په خالي ځاى کې جوړ شي، پروا نلري. په هغې کې څه تشبه (يو رنګوالي) منع نه ده. خو په هديره کې دجنازې دلمانځه لپاره داضروري ده چې نژدې ورته قبر نه وي، غوره داده چې دجنازې لمونځ بل ځاى وشي. (فتاوى دارالعلوم ج ۵ ص ۳۵۰)



مسئله: چيرې چې څلورولورته قبرونه وي، دجنازې لمونځ او نورفرض لمونځونه هلته کول مکروه دي.
(فتاوى دارالعلوم ج ۵ ص ۳۶۷)

مسئله: د جماعت په مسجد کې دجنازې لمونځ کول مکروه دى، که په هديره کې مسجد ؤ او هلته پنځه وخته لمونځونه نه کيدل او هغه دجنازې دلمانځه لپاره جوړشوى و، هغه په حقيقت کې دمسجد حکم نلري، هلته پکې دجنازې لمونځ صحيح دى. (فتاوى دارالعلوم ج ۵ ص ۵۴۴، ردالمحتار ج ۱ ص ۶۱۵ په حواله)

مسئله: که په هديره کې خالي ځاى و، نژدې ورسره قبرونه نه وو يا خو دومره لرې وي چې دلمونځ کوونکي سترګې ورباندې ونه لګيږي يا يې ترمنځ کوم حايل و نو دجنازې لمونځ پرته له کراهت څخه صحيح دى. خود قبرونو په منځ کې دجنازې لمونځ کول منع دى.
(فتاوى رحيميه ج ۱ ص ۳۶۳ د صغيري ص ۱۸۱ په حواله)

## جنازه دمسجد په انګړ کې ايښودل

پوښتنه: زموږ په مسجد کې يې يوه لورته دجنازې دلمانځه لپاره يو ځاى جوړ کړى دى، دجنازې لمونځ هلته کيږي خو که جنازه دفرض لمانځه په وخت راشي نو هغه د مسجد په انګړ کې دفرض لمانځه تر کيدلو ږدي، په دې کې څه خبره نشته؟

ځواب: له عذراو اړتيا پرته جنازه دجماعت ځاى يا انګړ

او مسجد ته داخلول منع او مکروه دي، ځکه د مسجد د ناولتیا ویره ده.(له مړي څخه د وینې یا نورې ناولتیا د وتلو خطره ده.)

(فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۱۰۵ د شامي ج ۱ ص ۸۲۷ په حواله، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۸۶۶ په حواله)

**په مسجد کې داسې د جنازې لمونځ کول چې مړي بهر وي**

پوښتنه: ځینې ځایونه رواج دی چې د مسجد د قبلې لور ته تر محراب بهر، د جنازې د ایښودلو لپاره یو ځای جوړ وي، په محراب کې داسې دروازه یا کړکین پرېږدي چې امام دننه ولاړ وي او د جنازې لمونځ وکړي. ایا په داسې ډول سره خو کراهت نشته چې جنازه بهر او امام دننه ولاړ وي.

ځواب: په مسجد کې خو په هر حال د جنازې لمونځ مکروه دی. که جنازه په مسجد کې وي او که بهر، خو که د باران یا بل څه عذر وي او بل ځای هم نه وي بیا په مسجد کې د جنازې لمونځ جایز دی، په دې صورت کې که جنازه بهر وي نو غوره داده چې امام او څو تنه مقتدیان هم تر مسجد بهر په چوتره کې ودرېږي. ځکه جنازه من وجه (له یوه امله) د امام په حکم کې ده، که امام یوازې بیل ودرېږي، تنزیهي مکروه ده.

(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۳۴، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۳ په حواله، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۹۶)

مسئله: په عامه لاره کې د جنازې لمونځ کول مکروه ده خو که عذر و، بلا کراهته جواز لري. (فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۱۷۸)

مسئله: له عذره پرته په کوم بازار یا لاره کې د جنازې لمونځ کول مکروه دي. (آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۵۹)



مسئله: که کوم عذر نه وي او هسې د جنازې لمونځ په مسجد کې وشي، د جنازې لمونځ اداء کیږي، کفایي فرض هم ساقطیږي، خو ثواب نه ترلاسه کیږي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۶۷، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۲۷ په حواله)

مسئله: مسجد ته د لمانځه پرته هم د مړي راوړل مکروه دي او په مړي باندې په مسجد کې د جنازې لمونځ مکروه دی، که څه هم بهر کښېښودل شي. (خو دا کراهت هلته دی چې کوم عذر نه وي.) (کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۴۴)

**که په مسجد کې زیاتوالی راولي هلته د جنازې لمونځ**

مسئله: کومه برخه چې پخوا مسجد وه، هلته دوهم جماعت او د جنازې لمونځ کول (تنزیهي) مکروه دی. هغه حصه چې په مسجد کې وروسته زیاته شي، که یې دا زیاته برخه د مسجد په نیت جوړه کړه، نو هم ورباندي د مسجد احکام جاري کیږي، یعنې هلته د ناپاکه شخص ورتګ منع ده او دوهم ځلي جماعت مکروه کیږي.

که د مسجد په نیت اضافه شوې نه وي، په دې غرض یې اضافه کړې وي چې د اړتیا په مهال به ماشومان هلته کښېنې او درس به وایې یا که لمونځ کوونکي ډېر شي، هلته به درېږي خو د مسجد حصه نه وي، نو په دغسې ځای کې د مسجد حکم نه جاري کیږي، ناپاک شخص ورتلای شي، دوهم جماعت او د جنازې لمونځ پکې کیدلای شي.

داتحقیق او پلټنه ،له وقف کوونکي او د مسجد له بانې څخه کیږي چې دا زیاتوالی یې د مسجد په نیت کړی او کنه.
(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۷۱ ،کبیري ج ۱ ص ۵۴۵ په حواله ،ترمذي شریف ج ۱ ص ۲۰۰)

مسئله :په غصب شوي ځمکه د جنازې لمونځ کول مکروه ده.
(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۷۵ ،مراقي ج ۱ ص ۳۲۷ په حواله)

مسئله :د جنازې لمونځ که په ټاکلي ځای د خلکو ګنجایش نه درلود، د جماعت له ځای څخه پرته بل ځای نه و، په دې صورت کې پرته له کراهته د جماعت په ځای کې د جنازې لمونځ کیدلای شي .(فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۱۷۹)

**په مسجد کې د جنازې لمونځ کول**

مسئله : له عذر څخه پرته په مسجد کې د جنازې لمونځ کول مکروه دي، نبوي ارشاد دی :

من صلی جنازة في المسجد فلا شیء له.(ابوداود شریف ج ۲ ص ۱۵۳)

په بخاري ،مسلم او نورو کې راغلي ، کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم، د نجاشي د مړینې خبر واوریده ،له اصحابو سره بهر ووت ، نږدې ورته چې کوم ځای د جنازې لپاره ځانګړی شوی وو، هلته یې صف وتاړه او د جنازې لمونځ یې پکې وکړ.(صحیح بخاري ج ۱ ص ۱۶۷ – مسلم ج ۱ ص ۳۰۹)

دا په دې پیښې پورې ځانګړې نه ده بلکې د رسول الله صلی الله علیه وسلم معمول دا وو چې د جنازې لمونځ به یې په مسجد کې نه کاوو. په مسلم (ج ۱ ص ۳۱۳) کې دي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کې به یې جنازه



مسجد ته نه راوړه، بلکې رسول الله صلی الله علیه وسلم به بهر د جنازې لمونځ کاوو. رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه وو په مسجد کې د جنازې لمونځ نه کاوو، تر مسجد بهر یې ځانته ځای جوړ کړی و، دا ځای له مسجد سره نږدې ختیځ لور ته و. له دې څرګندونو څخه ښکاري چې مسجد د پنځګونو لمونځونو لپاره جوړوي ، هلته له عذره پرته د جنازې لمونځ کول له کراهته خالي نه دي.

که په مسجد کې د جنازې لمونځ له کراهته پرته جایز وای، رسول الله صلی الله علیه وسلم به یو مستقل ځای ورته نه جوړاوو ، بلکې مسجد ورته کافي و، خو داسې نه وو، رسول الله صلی الله علیه وسلم یو ځای د مسجد د ودانۍ له ختم سره جوړ کړی و چې د جنازې لمونځ به یې پکښې کاوو.

د ابن سعد په طبقات کې دا څرګند ونه شته ، نور دلیل ته اړتیا نشته. (التعلیق الصبیح ج ۲ ص ۲۳۹ ،فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۸۷)

مسئله :په حرمینو شریفینو کې د جنازې په کولو استدلال ځکه کیدلای نشي چې دا د هغوی مسلک دی.(پر موږ حجت نه دی.) (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۸۳ – فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۲۹۴)

**په مسجد کې د جنازې دلمانځه دري صورته او د هغوی احکام**

مسئله :په مسجد کې د جنازې دلمانځه د کولو دري صورتونه دي ،د احنافو په وړاندې په ترتیب سره دري واړه مکروه دي.یو دا چې جنازه ، امام او مقتدیان ټول د ننه په

مسجد کې وي. دوهم یې دا دی چې جنازه بهر، خو امام او مقتدیان د مسجد په دننه کې وي. دریم دا چې جنازه، امام او څو تنه مقتدیان بهر او نور دننه په مسجد کې وي.

خو که د صحیح عذر له امله په مسجد کې دننه د جنازې لمونځ وکړي جواز لري. (اپ کې مسائل ج ۳ ص ۵۸)

مسئله: د مسجد په دننه کې د جنازې لمونځ کول مکروه ده بهر دي کیږي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۵۷)

## په ناپاکه ځمکه د جنازې لمونځ

پوښتنه: چیرې چې ناولتیا وي، پاک نه وي هلته د جنازې لمونځ کول صحیح دي که نه؟

ځواب: ځمکه په وچیدلو پاکیږي، لکه په مشکوة شریف کې چې حدیث شریف دی، کله چې ځمکه وچه وي او ښکاره ورباندې نجاست نه وي، هلته د جنازې لمونځ صحیح دی. که په وچه ځمکه کوم وچ نجاست وي، هغه دې لرې کړل شي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳،۲۳ د مشکوة ج ۱ ص ۲۰۱ په حواله)

مسئله: که میت او جنازه پاک وي، چیرې چې جنازه کښېښودله شي که هغه ناپاک وي دا زیان نلري، لمونځ صحیح دی، دراګرځولو اړتیا یې نشته.
(فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۳۶۰، احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۰۷، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۲ په حواله)

مسئله: له بان یا بل څه شخه په اوبدل شوې چارپایي چې لمونځ ورباندې جایز نه وي، هلته د مړي ایښودل او یا



د جنازې لمونځ کول جایز دي. په هغه جنازه ښودل او هغه ترمخ ایښودل هم صحیح دي. که چارپایي ناپاکه وي، په هغه دي پاکه جامه ولویږي او مړي دي ورباندي کښېښودل شي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۹۸)

{پالنګ، کټ یا بل څه چې ورباندي جنازه وي او هغه په ځمکه ایښې وي، د جنازې لمونځ یې صحیح دی. دا طریقه داسې نه ده لکه په سوارۍ چې جنازه ایښې وي یا چا اخستې وي، دا ژوندی شی نه دی. په چارپایي ایښودل حکماً په ځمکه ایښودل دي.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم د جنازې لمونځ چې کیده هغه مهال یې مبارک جسد په سریر (کټ) باندي ایښی و. (محمد رفعت قاسمي)}

## په پایزار باندې پښې ایښودل او د جنازې لمونځ کول

پوښتنه: که د پښو (بوټونو) تلی ناولی او منځ یې پاک وي، هغه ایستل، سرییره ورباندي پښې ایښودل او د جنازې لمونځ کول څرنګه دي؟

ځواب: روا دي، د څه شي که په یوه لوري ناولتیا وي او بل لوري ته یې سرایت کړی نه وي، د هغه په پاک لوري د جنازې لمونځ کول جایز دي. خو داسې بوټونه چې لاندې لوري یې ناولی وي، په پښو کول او عام لمونځونه ورسره کول صحیح نه دي. ځکه د لمونځ کوونکي په خوځیدلو د هغه ناولی لوري

هم حرکت کوي او دا دلمانځه مانع دی، خو که یې لاندې تلې هم پاک وي، بیا یې پښو کول او لمونځ ورسره کول جایز دي.
(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۹۲ دعالمگیري ج ۱ ص ۳۲ په حواله)

مسئله: پڼې که پاکې وي، هغه په پښو کول او د جنازې لمونځ کول صحیح دي، خو که هغه پاکې نه وي، نو نه هغه پښو کول او لمونځ کول صحیح دي او نه پر هغو پښې ایښودل او لمونځ کول صحیح دي. خو که یې سرپیرنه برخه پاکه وه خو لاندې تلی یې ناپاک وي، په هغه پښه ایښودل او لمونځ کول صحیح دي. ځمکه که وچه یعني پاکه وي نو لوڅې پښې ورباندې دریدل صحیح دي. (آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۶۰ – علم الفقه ج ۱ ص ۱۹۲)

مسئله: که پڼې وباسي او پر ځمکه ودریږي د ځمکې پاکي شرط ده. ځمکه چي وچه شي پاکه ده، چې د ناپاکې اثر وربانديي نه وي. (امداد الاحکام ج ۱ ص ۸۳۳)

## پڼې پښو کول او د جنازې لمونځ کول

مسئله: ځینې خلک په هغه بوټونو چې پښو کوي یې پښې ږدي او د جنازې لمونځ کوي، دا نه ګوري چې هغه پاک دي او که ناپاکه. خو که بوټونه پښو وي لمونځ کوي نو ضروري ده چې ځمکه او د بوټونو ذننه او لاندې او دواړه اړخونه پاک وي، کنه لمونځ نه کیږي. که له بوټونو پښې کاږي او بیا پښې وربانديي ږدي او لمونځ کوي، نو دا ضروري ده چې د بوټونو پاسنۍ برخه، کومه چې له پښو سره لګیږي



پاکه وي، که څه هم لاندې لوری یې ناپاکه وي او که یې پاسنۍ برخه ناپاکه وي له هغه سره لمونځ نه صحیح کیږي.
(امداد الاحکام ج ۱ ص ۷۴۰)

## په عیدګاه کې د جنازې لمونځ کول

مسئله: راجح او صحیح قول دادی چې عیدګاه یوازې د اقتداء د جواز چې صفوف پکې اتصال ولري، د مسجد حکم لري. نو په عیدګاه کې د جنازې لمونځ د مسجد په څیر منع نه دی.
که له عیدګاه سره بل ځای وي او که نه وي جواز لري. که یې خوا کې عامه لاره وي نو هلته د جنازې لمونځ مکروه ده. همداسې که کومه مځکه د چا ملکیت وي، هلته له اجازې پرته مکروه دی. که کوم ځای د جنازې لپاره ځانګړی وي نو هلته د جنازې لمونځ کول په اتفاق سره غوره دی. د بل په ځمکه کې یې په اجازه د جنازې لمونځ مکروه نه دی. (فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۲۴۲)

مسئله: په عیدګاه کې د جنازې لمونځ جایز دی.
(فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۳۰۱، فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۷۵، احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۱۶)

## د قبر ځمکه په مسجد کې داخلول

پوښتنه: د مسجد د قبلې لورته نژدې څو پخوانې قبرونه دي، ایا دا ځای د جماعت لپاره کیدلای شي؟ د قبر ځمکه په مسجد کې داخلول، په دې صورت کې خو د قبر سپکاوی نه دی؟ په لمونځ کولو کې خو خرابي نه راځي؟
ځواب: د قبر ځمکه که د مسجد ملک وي یا چا مسجد ته ورکړې وي او دا بې علامې قبرونه دومره زاړه وي چې دا

یقین وي چې مړي ینیخي خاوري شوي وي ، نو دا ځای دمسجد لپاره کیدلای شي ، هلته په لمونځ کولو کې څه خبره نشته ، دلته دمړو سپکاوی هم نه دی .خوکه کومه هدیره وقف وي ، دهغي هیڅ برخه هم په مسجد کې شاملیدلای نشي.ځیني فقهاوو دداسي هدیري چې بي کاره وي نه اوس پکې مړي خښیږي او نه په راتلونکي کې ورته داتوقع وي ، د دي اجازه ورکړي ده چې په مسجد کې ورګډه شي . نو دسختې اړتیا په مهال په دې باندې عمل کول صحت لري.
(فتاوی رحیمیه ج ١ ص ٣٦٨ دشامي او عمدة القاري په حواله)

## دجنازې لمونځ تر جمعې ځنډول

پوښتنه :دجمعې په ورځ مړ شوي ،وارث یې دجمعې تر لمانځه وروسته خښوي، وایې دجمعې په ورځ ثواب ډیر وي، ایا داصحیح دی؟

ځواب : یوازې ددې لپاره دمړي ځنډول مکروه دي، مستحب اوغوره داده چې دهغه په خښولو کې بیړه وشي؛ که داسې مهال ومړي چې په خښولو یې دجمعې لمونځ پاته کیږي دجمعې تر لمانځه دې وځنډول شي.
(فتاوی محمودیه ج ٢ ص ٣٧٣ ،دطحطاوي ص ٣٣٢ په حواله ،فتاوی دارالعلوم ج ٥ ص ٢٦٥)

مسئله : دا رواج دشریعت خلاف دی، ددې لپاره جنازه ځنډول چې ډیر خلک پکې ګډون وکړي دا مکروه ده.په جنازه کې په بیړه کولو دومره تاکید دی چې په مکروه وختونو کې لا اجازه ورکړل شوې ده.یعني که مکروه وخت جنازه تیاره وه هم دې انتظار نکوي.تلوار دې کوي چې دا مستحب ده .(فتاوی دارالعلوم ٥/٣١٩)



## داختر دلمانځه په مهال دجنازې لمونځ

مسئله :په درمختار (ج ١ ص ٧٧٥) کې لیکي :داختر لمونځ دې تر جنازې وړاندې وسي. خو که خطبه وروسته وویله شي یا هم لمونځ کیږي،لمونځ وشو.وهم مکوئ.(فتاوی دارالعلوم ج ٥ ص ٣٦٩)

مسئله :دجنازې لمونځ دې تر خطبې هم وروسته وکړي، دا اسانه ده ، کنه خلک دجنازې تر لمانځه وروسته خطبه نه اوري.(امداد الاحکام ج ١ ص ٨٣٣)

مسئله :څرنګه چې ضرورت وي ،هغسې دې وشي.څه خبره نشته.(فتاوی دارالعلوم ج ٥ ص ٣٥٩)

## دجنازې لمونځ تر سنتو وروسته که وړاندې

مسئله : په دې کې اختلاف دی چې دجنازې لمونځ ترسنتو وروسته وشي که وړاندې ؟

په دې زمانه کې یې تر سنتو وروسته کول مناسب دي ، ځکه له دین سره دغفلت غلبه ده ترفرضو وروسته که خلک جنازې ته راووزي دسنت دپرېښودلو ویره وي.
(احسن الفتاوی ج ٢ ص ٤١٨ –فتاوی دارالعلوم ج ٥ ص ٢٩٦ –آپ کې مسائل ج ٣ ص ١٥٩)

مسئله :لو مړی دماسپښین لمونځ له سنتو سره وشي او بیا دې دجنازې دلمونځ وکړي، داحکم دولي او غیر ولي ټولو لپاره دی. خوکه دڅه ضرورت له امله دجنازې لمونځ وړاندې وکړل شي هم څه خبره نشته . خو غوره داده چې لو مړی دماسپښین لمونځ له سنتو سره وشي.(فتاوی دارالعلوم ج ٥ ص ٣٧٠ ، ردالمحتار ج ١ ص ٧٧٥ په حواله)

## دجنازې دلمانځه لپاره نفل پرېښودل

پوښتنه: دنفل لمونځ یې کاوو، د جنازې لمونځ پیل شو، د جنازې دلمانځه لپاره نفل پرېښودل کیدلای شي؟

ځواب: که دجنازې لمونځ نه نیول کیده نو نفل دي پرېږدي اما قضايي لازمه ده. (فتاوی رحیمیه ج۱ ص۳۶۱، ردمختار ج۱ ص۶۶۶ مع شامي)

مسئله: که مړی ګاونډی یا خپلوان او یا هم صالح شخص وي، تر هدیري پورې یې له جنازې سره تلل تر نفلو غوره ده.

(احسن الفتاوی ج۴ ص۲۱۴، ردالمحتار ج۱ ص۸۴۰ په حواله)

## ایا دجنازې لمونځ په ټولو حاضرینو ضروري دی؟

مسئله: دا صحیح ده چې دجنازې لمونځ به ټول حاضرین کوي، ځکه دا لمونځ هم فرض دی، یعنې کفایي فرض؛ چې دځینو په کولو دنورو له ذمې ساقطیږي. خو فرض په ټولو دی. نو ټول حاضرین دي کوي. د بدن او جامو پاکوالی پکې شرط دی. که دچا جامې ناپاکه وي او یا یې اودس نه وي هغه دي نه کوي. (فتاوی دارالعلوم ج۵ ص۳۱۶، دغنیة ج۱ ص۵۳۹ په حواله)

مسئله: دجنازې لمونځ کفايي فرض دی. که یې ځینې خلک وکړي، چا چې پکې ګډون کړی نه وي هغه ګنهکار نه دی، خو هغه له ثوابه بې برخې پاته کیږي.

(فتاوی دارالعلوم ج۵ ص۳۲۹، فتاوی محمودیه ج۷ ص۳۲۵)

مسئله: که نورو خلکو دجنازې لمونځ وکړ او چا ونکړ په هغه مواخذه نشته. خو دا ضروري نه ده چې یوازې دموزو (بوټونو) دساتلو لپاره چې په ختینه ځـــــــمکه کولوپې



خرابیږي، ځان تري ساتي. بیا دې له دې سره احتیاط وشي.

(فتاوی دارالعلوم ج۵ ص۳۳۹)

## که په جنازه کې ګډون کوونکی لمونځ ونکړي

مسئله: که څو کسان دجنازې لمونځ وکړي نو د کفايي والي له امله د ټولو له ذمې ساقطیږي. خو ثواب یوازې هغو ته رسیږي چې لمونځ یې کړي دی. دلمانځه په مهال چې نور کسان دسیل کوونکو په ډول ولاړ وي او په لمانځه کې ګډون نه کوي، دېره بېغیرتي ده او دمړي دحقوقو او دلمانځه د احترام خلاف کار دی.

(فتاوی محمودیه ج۲ ص۳۷۳)

## مسافر او دجنازې لمونځ

مسئله: دجنازې لمونځ کفايي فرض دی. که په مړي باندې دجنازې لمونځ وشي، نو مسافر ته دلمانځه سوال نه پیدا کیږي. که لمونځ شوی نه وي نو ښه دا ده چې مسافر یې هم وکړي. که څه ستونزه وي یا یې بېړه وي او نه یې وکړي بیا هم ګنهکار نه دی، همدا سې دښځو حال هم دی، یعنې که ورته موقع وه، نو په ښځو کې دې ګډون وکړي او کنه هم ګناه نشته. (فتاوی محمودیه ج۷ ص۲۱۹)

## دقرآن کریم دزده کړې په مهال دجنازې لمونځ

پوښتنه: که کوم ښوونکی دقرآن کریم ښوونه کوله او دجنازې لمونځ تیار شو، نور ښوونکي په جنازه کې حاضر وو، دې ښوونکي ته دا ښه ده چې جنازې ته لاړ شي او که ښوونه وکړي؟

ځواب : که کوم عذر نه وي ،نو په جنازه کې دې ګډون
وکړي او که کوم عذر وي او په ښوونه کې لګیا پاته شي هم
کومه خبره نشته. (فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۲۴۰)

## په مکروه وخت کې د جنازې لمونځ

مسئله : که جنازه چې د جنازې د لمانځه سبب دی په دریو
(مکروه) وختونو کې حاضره وه ، نو د احنافو په نزد به
د جنازې لمونځ نه ځنډوي ، غوره داده چې د جنازې لمونځ
وکړل شي، که د جنازې لمونځ تر مکروه وختونو وړاندې
کیدلای شي بیا یې په دغو دریو (مکروه) وختونو کې اداء
کول مکروه دي.

د توپیر لامل یې دادی چې په لومړي صورت کې وجوب
نیمګړی دی، اداء هم نیمګړې ده.

او په دوهم صورت کې یې وجوب بشپړ دی او اداء یې
نیمګړې ده ، له دې امله تحریمي مکروه ده، د ځینو فقهاوو
په نزد خو بیخې نه صحیح کیږي. نو اصل په جنازه کې داده
چې ونه ځنډیږي. لکه له حدیث شریف څخه چې معلومیږي.
خو که چیري مانع او خنډ موجود وي، ځنډیدلای شي. لکه په
دوهم صورت کې چې مو یادونه وکړه .یعنې په هغه صورت
کې چې جنازه تر مکروه وخت وړاندې حاضره شوې وي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۲۴ ، د مشکوة ص ۱۶۱ او ۹۴ په حواله)

مسئله :په حرمینو شریفینو کې د سهار او مازدیګر تر
لمانځه وروسته سمدستي د جنازې لمونځ کیږي ، په هغه کې



باید ګډون وشي ، ځکه ترسهار او مازدیګر وروسته نوافل
او د طواف دوه رکعته کول مکروه دي خو د جنازې لمونځ
جایز دی. (آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۵۹)

مسئله : د جنازې لمونځ د مازدیګر او ماښام ترمنځ صحیح
دی، کراهت نلري. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۳۵ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۲۶ په حواله)

مسئله : کوم وختونه چې لمونځونه مطلقاً منع دي، په
هغو وختونو کې د جنازې لمونځ هم منع دی او هغه ممنوع
وختونه دري دي: لمرختل، لمرلویدل او استواء ،یعنې د زوال
مهال، که جنازه تیاره شي او دغه وخت راورل شي دا وختونه
منع نه ده. (فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۶۸ ، شامي ج ۱ ص ۲۵۰ په حواله)

مسئله : که د عین استواء په مهال جنازه تیاره شوه ، د
جنازې لمونځ یې مکروه نه دی، خو که تر زوال وړاندې
حاضره شوه بیا د استواء په مهال تحریمي مکروه ده.
(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۴۷ ،ردالمحتار ج ۱ ص ۳۸۸ په حواله)

مسئله : دا وخت (زوال ،طلوع یا د لمر لویدل) جنازه راغله
نو لمونځ یې کیږي، مکروه نه ده خو که وړاندې راشي او بیا
یې وځنډوي ، نو د غه وخت یې کول جایز نه دي، منع دی.
(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۳۷۱ ،شامي ج ۱ ص ۳۴۷)

مسئله : د شپې مهال د جنازې لمونځ کول صحیح دي،
کراهت نلري . (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۰۳)

مسئله : د شپې د مړي خښول بیشکه صحیح دي.
(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۲۲)

## د جنازې د لمانځه امامت حق د چا دی؟

پوښتنه: د یوه مسجد امام وایي: د جنازې لمونځ له ما پرته بل څوک کولای نشي، ایا دی د مړي تر ولي هم وړاندې دی؟ او د ده دا دعوه څرنګه ده؟

ځواب: د حنفي مذهب په کتابونو کې د جنازې د لمانځه امامت په دې ترتیب لیکل شوی دی، د جنازې د لمانځه د امامت لپاره تر ټولو لومړی (مسلمان) پاچا دی. خو که موجود ؤ. یا د هغه نائب، بیا قاضي او بیا د مسجد امام او دا هم په درمختار کې دي چې د کلي د امام وړاندې والی تر ولي استحبابا دی. یعني که یې د کلي د مسجد د امام په موجودیت کې ولي وکړي هم صحیح ده.

دا هم په درمختار او شامي کې دي چې که ولي غوره او افضل و، نو د کلي تر امام د ولي امامت غوره دی. په هر حال د امام دا دعوه بالکل غلطه ده.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۴۰، الدرالمختار ج ۱ ص ۸۲۳، باب صلوة الجنائز ج ۱ ص ۵۳۲ په حواله)

مسئله: د کلي امام هغه مهال ډېر حقداره دی چې د میت په اولیاوو کې تر ده افضل نه وي. که د مینت په اولیاوو کې هغه چې د ولایت حق لري تر امام افضل وي نو ډېر حق د هغه دی او یا به د امامت اجازه ورکوي.

مسئله: که د امام انتخاب د کلیوالو او د مسجد د اهل له لوري په ټولو کې د عالم شخص شوی وي، نو د هغه شرعي اصولو په اساس چې فضیلت دی، تر ټولو د مسجد امام



حقدار دی چې تر ده بل افضل څوک نه وي، خو که د امام انتخاب په قومیت، عصبیت یا د کمې تنخواه له امله شوی وي او د مړي خپلوان ترې غوره وي، بیا هغه د جنازې د لمانځه حقداره دي.

(فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۳۸۲، بحرالرائق ج ۲ ص ۱۸۰، او مراقي الفلاح ج ۱ ص ۳۴۳ په حواله)

مسئله: که د کلي امام د ولي له اجازې پرته د جنازې لمونځ وکړي، نو که امام تر هغه افضل وي، ولي یې بیا کولای نشي.

(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۰۷ او کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۴۴)

مسئله: د میرمنې د جنازې د امامت ډېر حقدار یې پلار دی چې یا یې وکړي او یا چا ته اجازه ورکړي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۰۲)

مسئله: دا آټکل بالکل غلط دی چې که سید موجود ؤ بل څوک د جنازې لمونځ کولای نشي، بلکې د سید په موجودیت کې بل د جنازې لمونځ کولای شي. (آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۶۱)

## که په کوم امام پسې څوک عادي لمونځونه نه کوي، په جنازه کې یې امامت

پوښتنه: که څوکسان په کوم امام پسې وختي لمونځونه نه کوي، په همدې امام پسې د دې کسانو د جنازې لمونځ کېږي که نه؟

ځواب: په هغه پسې یې د جنازې لمونځ کېږي، خو که د شرعي نیمګړتیاوو او عیبونو له امله په هغه پسې لمونځونه نه کوي، داسې وجه وي چې هغه فاسق وي، نو بیا د هغه امامت په ټولو لمونځونو کې مکروه دی چې د جنازې لمونځ هم پکې راځي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۰۲، ردالمحتار ج ۱ ص ۵۲۳ په حواله)

## دجنازې لمونځ په مزدورۍ اخستلو جواز لري او که نه؟

پوښتنه: یو چا په ټول عمرکې لمونځ کړي نه وي او روژه يې نيولې نه وي، تر مړينې وروسته يې يوه عالم پيسې واخستلې او دجنازې لمونځ يې وكړ، ايا دا جواز لري كه نه؟

ځواب: دداسې چا چې لمونځ نه کوي د جنازې لمونځ کول فرض دي. ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد کوي:

"صلوا على كل بر وفاجر" (شرح فقه اكبر ص ۹۱)

(يعنې په هر نيک او بد باندې لمونځ وکړئ.)

او دجنازې په لمانځه بدل او فديه اخستل حرام دي، داد اخستونكي ناپوهي ده او ددنيا طمع هغه ړوند كړى دى چې دمسلمانانو دجنازې پر لمانځه باندې اجرت اخلي، الله تعالی دې ورته هدايت وكړي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۲، ردالمحتار ج ۵ ص ۴۶ کتاب الاجاره په حواله)

مسئله: دمسجد امام يا موذن چې معاش له مسجد څخه اخلي، په هغه کې دجنازې لمونځ کول هم شامل دي که نه دي؟ که وي او له کوم وقف څخه چې دا معاش اخلي په هغه کې هم دداسې شرط ځاى وي نو دا مزدوري صحيح ده. يا که دا شخص په ناخاپي ډول دچا دجنازې لمونځ ونکړي نو دهغه اغيز په معاش باندې نسته، خو که دا عادت وي چې که دجنازې لمونځ ونکړي نو دمعاش مستحق نه کيږي.

(كفايت المفتي ج ۷ ص ۱۴۷)



## په اجرت باندې دلمانځه حکم

پوښتنه: كه څوک په اجوره باندې دجنازې لمونځ وكړي، دجنازې لمونځ يې كيږي كه نه؟ كفايي فرض ساقطيږي او كه نه؟

ځواب: دجنازې لمونځ اداء كيږي او فرضيت هم له غاړې ساقطيږي خو دجنازې په لمانځه اجرت اخستل معصيت او حرام دي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۶۵، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۰۴)

مسئله: دجنازې په لمانځه داسې اجرت وركول او اخستل چې لمونځ وكړي او اجرت واخلي دا ناجايز دى. خو كه څوک دجنازې د لمانځه لپاره مزور ونيسي او معاش ورته مقرر كړي بيا كومه خبره نشته. (كفايت المفتي ج ۷ ص ۱۴۷)

## ميرمن دجنازې لمونځ كولاى شي؟

مسئله: دا ښكاره ده چې ميرمن دسړي امام كيدلاى نشي، خو دجنازې دلمانځه په هكله ليكي: كه ميرمن دجنازې په لمانځه كې دسړيو امامت وكړي، كه څه هم امامت يې صحي نه دى او دسړيو لمونځ په هغې پسې نه كيږي خو دا چې دهغې خپل لمونځ كيږي نو فرضيت ساقطيږي، ځكه دجنازې لمونځ كه يوې ميرمنې وكړ هم فرض كفايي اداء كيږي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۲۹، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۲)

مسئله: په شامي کې له فتح القدير څخه نقل شوى دى چې دجنازې په لمانځه کې يوازې دميرمنو جماعت مکروه نه دى او دجنازې لمونځ اداء کيږي، آن که يوه ميرمن هم د

جنازې لمونځ وکړي ،فرض اداء کیږي او دسړیو په جماعت کې دمیرمنو حضور مطلقاً مکروه ده.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۵۷۱ ،ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۷ په حواله)

مسئله :که دجنازې په لمانځه کې دچا ترڅنګ کومه میرمن ودریده نو دسړي لمونځ صحیح کیږي، ځکه دجنازې په لمانځه کې دمیرمنې خواته دریدل مفسد نه دي.(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۱٦)

مسئله :دجنازې لمونځ به سړي کوي ،میرمنې به یې نه کوي خو که دجماعت شاته ودریږي ددوی لمونځ هم کیږي.

(آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱٦۸)

**که سړي نه وو، ایا میرمنې دې جنازه وکړي؟**

پوښتنه :که چیرې کوم سړی نه وُ، ایا میرمنې دجنازې لمونځ کولای شي؟ که یې لمونځ صحیح وي نو میرمنې به جماعت څرنګه کوي؟

ځواب:میرمنې دې یوازې دجنازې لمونځ وکړي،دجنازې په لمانځه کې جماعت واجب نه دی، نو ځکه ښه داده چې میرمنې جماعت ونکړي، بلکې بیل ،بیل لمونځ وکړي خو ټولې دې په یو وخت کې وکړي، دیوې ترفراغت وروسته دې بله نه پیل کوي اوجماعت یې هم له کراهت څخه پرته جایز دی. په دې صورت کې دې امام میرمن دصف په منځ کې ودریږي ،دسړو په څیر دې دصف مخته نه کوي.

(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۳۸ ،ردالمحتار ج ۱ ص ۷۲ په حواله)

**درسول الله (صلی الله علیه وسلم) دجنازې لمونځ چا وکړ؟**

مسئله :په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې دجنازې لمونځ صحابه کرامو بیل ،بیل وکړ، یوه ډله به حجرې ته



ننوتله او بیل ، بیل به یې لمونځونه وکړل چې هغه به فارغ شول او را بهر به شول بیا به بله ډله ورغله او په انفرادي توګه به یې لمونځ وکړ. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۱۷ ،زرقاني ج ۸ ص ۲۹۲ په حواله)

مسئله :درسول الله صلی الله علیه وسلم دجنازې دلمانځه امامت چا کړی نه دی، خلکو بیل،بیل لمونځونه وکړل او دا طریقه ورته ابوبکر (رضی الله عنه) وښودله. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۰۴)

{له عبدالله بن سعد (رضی الله عنه) څخه په مستدرک دحاکم (ج ۳ ص ٦۰) کې یو روایت راغلی دی چې یوځل دمرض الوفات په مهال رسول الله صلی الله علیه وسلم دکورنۍ غړي دعایشې رضی الله عنها حجرې ته راوغوښتل او څو نصیحتونه یې ورته وکړل. په پای کې هغوی ورته عرض وکړ: یا رسول الله صلی الله علیه وسلم! ستاسو تر وفات وروسته به ستاسو دجنازې لمونځ څوک کوي؟ او څرنګه به یې کوي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد وکړ:

"کله چې تاسو راته غسل راکړ، کفن مو راکړ تاسو ټول دعایشې(رض) له حجرې څخه دڅو شیبو لپاره بهر ووزئ، لومړی به جبرائیل علیه السلام زما دجنازې لمونځ وکړي ، بیا میکائیل علیه السلام ،بیا اسرافیل علیه السلام او بیا به عزرائیل علیه السلام دجنازې لمونځ وکړي (درود او سلام به وایي) بیا نوري ملایکې.وروسته تاسو لومړی سړي او بیا میرمنې ډله ،ډله دننه راشئ او په ماصـــلوة او سلام

وواياست ،يا عام مسلمانان سړي او ميرمنې ."

دغسې لومړی اهل بيت (نبوي كورنۍ) صلوة اوسلام وړاندي ووايه يا مهاجرينو ،له دي خلكو سره ابوبكر او عمر (رضى الله عنهما) هم ولاړ وو ، درود اوسلام يې وړاندي ووايه.}
(البدايه والنهايه ج ۵ ، حاشيه سنن ابن ماجه- محمد فعت قاسمي.}

**په شافعي مذهبه امام پسې د جنازې لمونځ**

پوښتنه :زيد حنفي مذهبه دی، د جنازې په لمانځه کې يې په شافعي مذهبه امام پسې اقتداء وکړه ، دشوافعو په نزد دجنازې په لمانځه کې پنځه تکبيرونه دي، ايا د حنفي مذهبه اقتداء به دپنځم تکبير هم وي؟

ځواب : دحنفي په شافعي مذهبه پسې اقتداء صحيح ده خو په پنځم تکبير کې دي متابعت نه کوي ،پټه خوله دي ودريږي او له امام سره دي سلام وګرځوي.(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۳۲، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۸ په حواله ، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۹۱ ،فتاوی رحيميه ج ۵ ص ۱۰۲)

مسئله :که دجنازې په لمانځه کې امام دڅلور تکبيرونو په ځای پنځه تکبيرونه ووايې نو لمونځ کيږي. (البته حنفي مذهبه امام ) (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۱۸ ،ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۷ په حواله)

مسئله :دشافعي مذهبه کسانو د جنازې په لمانځه کې له تکبير سره لاسونه پورته کوئ، دحنفي مذهبه لپاره دجنازې په تکبيراتوکې متابعت کول مستحب کار دی.
(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۳۳۳ ،ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۶ په حواله)

مسئله :په شافعي مذهبه پسې دحنفي مذهبه شخص اقتداء صحيح ده، خو په شيعه امام پسې صحيح نه ده.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۶۴)



**که دشوافعو په مسجد کې دجنازې لمونځ ؤ حنفي به متابعت کوي؟**

پوښتنه :دمړي خپلوان شافعي مذهبه دي امام هم دهغه مذهب دی. په مسجد کې پرته له کوم عذرڅخه دجنازې لمونځ کوي، احناف به يې متابعت کوي او که نه ؟ که حنفي مذهبه دجنازې لمونځ ونکړي ايا ګنهګاره کيږي؟

ځواب :داچې په جماعت کې حنفي مذهبه هم ګډون کوي، شوافع دي مراعات وکړي اودجنازې لمونځ دي تر مسجد بهر وکړي، خو که داسې ونکړي نو حنفي مذهبه دي مجبوراً پکې ګډون وکړي. هيـــله ده مواخذه وړاندي نه وي او که څوک احتياطاً پکې ګډون ونکړي،داهم پروا نلري.(امداد الاحکام ج ۱ص ۸۳۵)

**که دجنازې دلمانځه څوک ونه مونډل شي نو بيا؟**

پوښتنه :په ځينې کليوکې دجنازې دلمانځه څوک نه وي، له انتظار سره ،سره څوک نه پيدا کيږي، دخرابيدلو له امله مړي له لمانځه پرته دفن کوي، ددي په هکله څه حکم دی؟

ځواب :دجنازې لمونځ کفايې فرض دی،که يې څو تنه وکړي، دټولو غاړي خلاصي دي.خو که يې هيڅوک ونکړي ، ټول دفرضو تارکين ګڼل کيږي او مړی په زيان کې پاته کيږي. نو دجنازې لمونځ زده کول او کول خورا ضروري دی. که هيڅوک هم دجنازې دلمانځه دکولو ونه مونډل شي، يو سړی يا ميرمن دي اودس وکړي،له جنازې سره دې ودريږي، تکبير دي ووايې او لاسونه دي وتړي ،بيا دي نور دري تکبيرونه ووايې .(ټول به څلور تکبيره شي) نو دجنازې لمونځ

کیږي او خلک له ګناه څخه خلاصیږي. (فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۹۷)

مسئله: که چیرې څوک د جنازې د لمانځه په سم اداء کولو نه پوهیدل، هلته موجود مسلمانان دي د جماعت په شکل ودریږي، څلور تکبیرونه دي یو په بل پسې ووایې، تر هر تکبیر وروسته دي د مغفرت دعا کوي. تر لومړي تکبیرو روسته دي ثناء (سبحانک اللهم) تر دوهم وروسته درود او تر دریم وروسته دي هغه دعا ولولي کومه چې یې زده وي او تر څلورم تکبیر وروسته دي سلام واړوي. (کفایت المفتي ج ۱ ص ۵۵)

## په ناسته د جنازې لمونځ کول

پوښتنه: که د مړي ولي ناروغ او کمزوری وي او په ناستو لمونځ وکړي حکم یې څه دی؟

ځواب: پنه دي صورت کې د جنازې لمونځ صحیح کیږي، دا حکم یوازې د ولي لپاره نه دی، هرچا ته چې د جنازې د لمانځه حق وي د هغه لپاره هم دا حکم دی. (په ناستو دي ناروغ او کمزوری د جنازې لمونځ وکړي یادي وکړي.)

(فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۱۱۷)

مسئله: د جنازې د لمانځه په مهال که کوم عذر نه وي نو په ناسته او پرسپارلي جایز نه دی. (علم الفقه ج ۳ ص ۱۹۶)

## د جنازې د لمانځه تر مخ تیریدل

مسئله: د لمانځه تر مخ د تیریدلو ممانعت په عام لمونځونو کې دی، د جنازې په لمانځه کې جواز لري، او د امام په وړاندې جنازه ستره ده او د امام ستره د مقتدیانو لپاره کافي ده.

(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۲۹)



## د جنازې په لمانځه کې به چیرې ګوري

مسئله: په دې هکله کومه څرګنده جزیه تر سترګو شوې نه ده، د قاعدې غوښتنه داده چې د نورو لمونځونو په څیر به د جنازې په لمانځه کې هم د سجدې ځای ته ګوري. د لمانځه په مختلفو ارکانو کې له مختلفو ځایونو ته له کتلو مقصد خشوع او خضوع ده. که یو ځای ته وکتل شي، توجه یو لوري ته کیږي. هغه خشوع او خضوع ته معین شوې وي، په قیام، رکوع او سجده کې چې په کومو ځایونو نظر لګوي طبعاً هغه اسانه دی او له طبعي حالت سره برابر دی، له همدې امله تعین شوی هم دی. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۳۰)

## په غیاب کې د جنازې لمونځ

پوښتنه: په غیاب کې د جنازې لمونځ جواز لري او که نه؟ داچې زید وایې رسول الله صلی الله علیه وسلم د حبشې د پاچا نجاشي د جنازې لمونځ په غیاب کې وکړ، ایا د زید داوینا صحیح ده؟

ځواب: د اعلاء السنن (ج ۸ ص ۱۷۴) له حدیثونو څخه ثابتیږي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د نجاشي او معاویه ابن معاویه مزني (رضی الله عنه) د جنازې لمونځونه له لرې څخه داسې وکړل چې د معجزې په توګه د هغوی جنازې رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ته وړاندې شوې، نو ځکه له دې دواړو پېښو څخه د غایبانه جنازې د کولو استدلال باطل دی.

که فرضاً دا معجزه له حدیث څخه ثابته شوي نه وي ، بیا هم دا پیښي باید په معجزه یا د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ځانګړتیا وو حمل شي، ځکه له :

"وصل علیهم ان صلوتک سکن لهم" سره برابر، رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د هر صحابي د جنازي په لمانځه حریص ؤ. تر دي چي که به د رسول الله صلی الله علیه وسلم له لمانځه پرته کوم صحابي دفن کړای شو، رسول الله صلی الله علیه وسلم به خلک تنبیه کول او پر قبر به یې د جنازي لمونځ کاوو. رسول الله صلی الله علیه وسلم له لري څخه د ځینو صحابه وو او قراؤ د جنازي لمونځ کړي نه دي. دا ښکاره کوي چي په غیاب کې د جنازي لمونځ صحیح نه دی.

د نجاشي ، معاویه یا نورو لمونځ ،رسول الله صلی الله علیه وسلم د معجزي یا د خپلي ځانګړتیا له کبله کړي دي.

(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۰۱ ، کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۴۱ ، فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۳۴۶ ،ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۳ په حواله)

**ایا له نجاشي پرته د بل چا لمونځ هم په غیاب کې شوي دي؟**

د جنازي د لمانځه لپاره د مړي حاضریدل ضروري دي ، په غایب باندي لمونځ صحیح نه دي. خو که مړی له لمانځه پرته خښ کړای شي نو په قبر یې تر یوي مودي لمونځ کیدلای شي. رسول الله صلی الله علیه وسلم د نجاشي د جنازي لمونځ په غیاب کي کړي دی. دا روایت معتبر دی. د حدیث په شرح



کې راغلي دي چي د نجاشي جنازه ورته حاضره کړل شوه او په غیاب کې نه وه. کوم صحابه چې د جنازي په لمانځه کې شریک وو ، هغوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم تابع وو.

علامه ابن تیمیه (رح) لیکي: که مړی په کوم ښار کې د جنازي له لمانځه پرته خښ شي، لکه د نجاشي حال چې ؤ، نو په بل ښار کې دي خلک د جنازي لمونځ په غیاب کې وکړي. که د چا د جنازي لمونځ وشي او خښ کړل شي بیا دي د جنازي لمونځ ورباندي نه کوي ځکه فرض د لو مړي لمانځه په کولو اداء شو.

ډیر صحابه په لري ،لري ځایونو کې وفات شوي دي ، لکه د بیر معونه په پیښه کې چي رسول الله صلی الله علیه وسلم د وحي له امله خبر شو او ورته غم هم ډیر پیښ شو ،خو د هغوی د جنازي لمونځ یې ونکړ.

تر رسول الله (صلی الله علیه وسلم) وروسته، د صحابه وو هم په چا باندي په غیاب کې د جنازي د لمانځه کولو خبره ثابته نه ده. که دا عمل یو متوارث سنت وای،نو صحابه کرامو به هم ضرور دا کار کړی وای. (فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۲۹۵ ،د کبری ص ۵۴۱ په حواله رحیمیه ج ۶ ص ۳۷۲)

مسئله : د حرمینو شریفینو امامان د احمد حنبل (رح) پیروان دي، د هغوی له مسلک سره سم د جنازي لمونځ په غیاب کې کول جایز دي. د امام ابو حنیفه او مالک (رحمهما) په نزد بیا جواز نلري.
(آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۶۷)

مسئله : د جنازي حضور د جنازي د لمانځه یو شرط دی، که څه هم یو ازي له امام سره نژدي وي. (شامي ج ۱ ص ۸۱۳)

## دجنازې دلمانځه دامامت ضروري مسائل

مسئله :دسنې مسلمان دجنازې لمونځ قادیاني امام کولای نشي ،ځکه هغه خلک مسلمان نه دي. غیر مسلم ، دمسلمان جنازه کولای نشي،که کوم غیر مسلم دمسلمان دجنازې لمونځ وکړي بیایې دجنازې لمونځ کول فرض دي. که یې له لمانځه پرته خښ کړي ټول مسلمانان ګنهکاردي (آپ کې مسائل ج ۲ ص ۱۶۱)

مسئله :چیري چې دجنازې دلمانځه دکولو څوک نه وي، که دچا دجنازې پوره لمونځ زده نه و، یوازې یو شخص دي اودس وکړي،جنازه دي مختـه کښېږدي او څلور ځله دي الله اکبر ووایې،فرض اداء کیږي او بیا دي خښ کړي.
(امداد الفتاوی ج ۱ ص ۷۳۶)

مسئله : رافضي کـه غـالي وي چې رفض یې د کفرحد تـه رسیدلی وي، نو که هغه دچا دجنازې لمونځ یوازې وکړي، کفایې فرض یې نه اداء کیږي، په هغه پسي اقتداء هم سمه نه ده.په ماشوم پسي هم اقتداء صحیح نه ده.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۱۱ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۵۲۴ ، باب الامامة په حواله)

مسئله :دجنازې په لمانځه کې دمیرمنې، خنثی اونابالغ ماشوم امامت صحیح نه دی. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۵۱)

مسئله :هلته چې دطاعون ناروغي وي، که بل څوک نه وي چې دجنازې لمونځ ورکړي، ورتګ ضروري دی، خو چې دي پوهیږي ، که ورنشم نو لمونځ نه کیږي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۴۲)

مسئله :که هیڅوک هم دجنازې دلمانځه دکولو نه وُ نو



ټول ګنهګاردي، ځکه دجنازې لمونځ ضروردی اولې ترلږه خو چې یو کس دجنازې لمونځ وکړي هم فرضیت اداء کیږي. او که نه بیا ټول ګنه کاردي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۰۲ ، ردالمحتار باب الامامت ج ۱ ص ۵۲۳ په حواله)

مسئله :که دمړي ولي غیر عالم شخص امام کړ، نو غوره او احتیاطي خبره داده چې لمونځ راونه ګرځوي، داچې دجنازې لمونځ بیا کول دامام ابوحنیفه(رح) په نزد مشروط نه دی، نو له دې امله ډیر احتیاط په دې کې دی چې لمونځ راونه ګرځول شي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۱۰ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۵۲۶ په حواله)

مسئله :که لومړنی لمونځ ولي وکړ یا دهغه په اجازه بل چا وکړ او ولي پکې وُ ،نو دبل چا لپاره په دې مړي یا یې په قبر بیا لمونځ کول صحیح نه دي. خو که ولي یې دجنازې لمونځ کړی نه وُ، دهغه دبیا کولو حق شته ، خو چاچې لومړی ځل لمونځ کړی وي، هغوی دي بیا ګډون نه کوي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۵۸ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۲۶ په حواله)

مسئله :دمیرمنې ولي دهغې پلار یا ورور او نور عصبه دي، میړه یې ولي نه دی. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۷۸)

مسئله :دجنازې دلمانځه لپاره دولي اجازه اخستله کیږي، ترپلار وروسته تر ټولو هلک مقدم دی، په هغوی کې بیا مشرورانـدې دی چې اجازه ورڅخه واخستله شي، هغـسې له اجازې پرته هم دجنازې لمونځ اداء کیږي. (آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۶۱)

***********

## دجنازې دلمانځه فرایض او سنتونه

مسئله : دجنازې په لمانځه کې دوه شیان فرض دي :

۱– څلور ځلي الله اکبر ویل ، دلته هر تکبیر دیوه رکعت په ځای دی.

۲– قیام ، یعنې په ولاړه دجنازې لمونځ کول. داسې لکه دفرض او واجب لمونځونو لپاره چې قیام فرض دی او پرته له عذره په ناستو لمونځ کول جایز نه دي. دلته هم دغسې قیام فرض دی او له عذره پرته یې پریښودل جایز نه دي. رکوع ، سجده ،قعده او نور په دې لمانځه کې نشته . (علم الفقه ج ۲ ص ۲۹۳)

دجنازې په لمانځه کې درې شیان سنت دي :

۱– دالله تعالی حمد. ۲– په رسول الله (صلی الله علیه وسلم) درود ویل .

۳– مړي ته دعا کول . (علم الفقه ج ۲ ص ۲۹۳، کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۴۰)

جماعت په دې لمانځه کې شرط نه دی . که یو شخص هم دجنازې لمونځ وکړي فرض اداء کیږي. که څه هم دالمونځ کوونکی سړی، میرمن، بالغ او نابالغ وي صحیح دی .خو که یې هیڅوک هم ونکړي ، ټول ګنهکار دي .خو په جنازه کې چې څومره ډیر کسان وي هغومره ښه دي. (علم الفقه ج ۲ ص ۱۹۵)

## دجنازې دلمانځه لپاره شرایط

مسئله :دجنازې لمونځ فرض کفایي دی، له هغه څخه منکر کافردی، دجنازې لمونځ په حقیقت کې له ارحم الراحمین ذات څخه دمړي لپاره دعاده .



مسئله : دجنازې دلمانځه دوجوب لپاره هغه شرایط دي کوم چې دنورو لمونځونو لپاره دي. دلته یو بل شرط هم ضروري دی. هغه دا چې دې شخص ته به یې دمړینې علم وي ،که ورته دا خبر نه وي، بیا هغه معذور دی ، دجنازې لمونځ وربانذې ضروري نه دی. (ردالمحتار)

دجنازې دلمانځه دصحت لپاره دوه ډوله شرطونه دي:یو هغه چې له لمونځ کوونکو سره اړه لري، هغه دادی چې دنورو لمونځونو لپاره دي، لکه :

۱– طهارت. ۲– ستر عورت. (له نو ترزنګونو پټوالی)

۳– استقبال قبله. ۴– نیت. وخت ددې لپاره شرط نه دی.

دوهم ډول هغه شرایط دي چې له مړي سره اړه لري:

۱– دمړي اسلام ، دکافر او مرتد دجنازې لمونځ صحیح نه دی. مسلمان که څه هم فاسق یا بدعتي وي ، دجنازې لمونځ یې صحیح دی.

۲– دمړي بدن او کفن به له حقیقي او حکمي نجاست څخه پاک وي. که حقیقي نجاست یې له بدن څخه ووزې او له همدې امله یې بدن نجس شي، پروا نلري، لمونځ صحیح دی. (ردالمحتار)

مسئله : که کوم مړی له حکمې نجاست څخه پاک نه وي، یعنې ورته غسل نه وي ورکړل شوی یا دغسل دنه امکان په صورت کې ورته تیمم وهل شوی نه وي، په هغه دجنازې لمونځ کول صحیح نه دی. خو که دهغه پاک کول ممکن نه ؤ

له غسل او تیمم پرته خښ کړای شو او په قبریې خاوري هم ولویدلي بیا یې په هغه حالت کې لمونځ جوازلري.

مسئله: که کوم مړي ته غسل نه وو ورکړل شوی یا یې تیمم نه وو وهل شوی او لمونځ یې وشو او تر خښولو وروسته یې ورته پام شو چې غسل نه و ورکړل شوی، بیا دې په قبر باندې دجنازې لمونځ وکړل شي، ځکه لومړنی لمونځ صحیح نه و، اوس چې غسل یې ممکن نه دی نو لمونځ یې کیږي.

۳- دمړي بدن به پټ وي، که مړی بالکل لوڅ وي، نو دجنازې لمونځ یې صحیح نه دی.

۴- مړی به دلمونځ کوونکو ترمخ وي، که مړی شاته وي لمونځ وربانديې صحیح نه دی.

۵- مړی یا هغه شی چې مړي وربانديې ایښودل شوي وي هغه به په ځمکه وي. که مړی خلکو په لاسونو کې اخستی وي یا په کوم موټرکې یا په کوم حیوان دپاسه وي او لمونځ یې وشي، دانه صحیح کیږي.

۶- مړی به هلته موجود وي، که هلته موجود نه وي، لمونځ نه صحیح کیږي.

۷- مړی چې چیري ایښودل کیږي دهغه ځای پاکوالی شرط نه دی. (علم الفقه ج ۲ ص ۱۹۳، کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۱۰)

۸- دجنازې په لمانځه کې جماعت شرط نه دی، که یو کس هم دجنازې لمونځ وکړي، فرض اداء کیږي. که هغه سړی وي



که میرمن، که بالغ وي او یا هم نابالغ وي. خو دلته ډلې او جماعت ته اړتیا ده ځکه دامړي لره دعا ده، که څوکسان سره راغونډ شي، د څه شي لپاره دعا وکړي، هغه یو عجیب خاصیت لري چې درحمت دنزول او دقبول سبب ګرځي.
(علم الفقه ج ۱ ص ۲۹۴، کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۴۰)

## دجنازې په لمانځه کې دصفونو طریقه

مسئله: دجنازې په صفونو کې د ډیرواټن پریښودلو ته اړتیا نشته، نژدې، نژدې صفونه دریدل دي. (په دې کې سجده نشته چې ډیرواټن وغواړي). (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۴۶)

او په مابین کې فاصله پریښودل مکروه دي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۹۹، ردالمحتار ج ۱ ص ۵۳۱ په حواله)

مسئله: داسې مشهوره ده چې دجنازې په لمانځه کې دصفونو ترمنځ دیوې سجدې په اندازه فاصله پاته کیږي، داغلطه ده، څه اصل نلري. دې ته څه ضرورت نشته. (داچې سجده پکې نشته نو ځای پریښودلو ته یې څه اړتیا ده.)
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۸۹)

مسئله: دجنازې په لمانځه کې دامستحب دی چې حاضر کسان (که کم وو) په دریو صفونو کې ودریږي، آن که یوازې اوه کسان وي، یو دې امام شي، په لومړي صف کې دې دري کسان ودریږي، په دوهم کې دوه او په دریم کې دې یو تن ودریږي. (علم الفقه ج ۲ ص ۱۹۵، ردالمحتار ج ۱ او کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۴۲ په حواله)

ددې مستحب والی وجه داده چې په یوه صحیح حدیث کې

له رسول الله (صلی الله علیه وسلم) څخه رانقل شوي دي چې په کوم مړي دري صفونه دجنازې لمونځ وشي، هغه بخښل کیږي.
(ابوداود)

داچې په جنازه کې څومره زیات افراد وي هغومره ښه ده ځکه دادمړي لپاره دعا ده او چې څو مسلمانان سره راغونډ شي دالله تعالی په دربارکې دعا وکړي، درحمت دنزول او دقبول لپاره عجیبه ځانګړتیا لري. خو دجنازې په لمانځه کې ددې لپاره ځنډ کول چې خلک ډیر شي مکروه ده.
(محمدرفعت قاسمي)

له عایشه رضی الله عنها څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد وکړ: په کوم مړي چې دمسلمانانو یوه ستره ډله چې شمیر یې سلو تنو ته ورسیږي دجنازې لمونځ وکړي، نو دالله تعالی حضور ته دهغه سپارښتنه وکړي یعنې دمغفرت او رحمت دعا ورته وکړي، دهغوی دعا ضرور قبلیږي. (معارف الحدیث ج ۳ ص ۴۸۰)

دمالک بن هبیره رضی الله عنه داعادت و چې کله به یې دلمونځ کوونکو شمیر کم ولید، دهمدې حدیث له وجه به یې هغه کسان دري صفه کول. (احکام میت ص ۸۲)

## دجنازې دلمانځه نیت

پوښتنه: دجنازې په لمانځه کې به امام دمقتدي نیت کوي، که نه؟ نیت کول په ژبه ویل ضروري دي، که نه؟ که چاته



معلوم نه و چې مړی سړی دی که میرمن نو په دې صورت کې به نیت څرنګه کوي؟

ځواب: امام ته دمقتدي دنیت کولو ضرورت نشته، نه نیت ویل په ژبه ضروري دي، بلکې په نیت کې دزړه قصد ته اعتبار دی او په ژبه ویل یې مستحب دی. که مړی معلوم نه و چې سړی دی او که ښځه، داسې نیت دې کوي چې په کوم مړي امام دجنازې لمونځ کوي زه هم له امام سره په هغه مړي لمونځ کوم. که یې تعین ونکړي هسې دجنازې دلمانځه نیت وکړي هم صحیح دی.
(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۸۹، دتنویر ص ۴۳۱ په حواله او کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۳۴)

**که څوک وروسته په لمانځه کې شریک شو، څرنګه نیت به کوي؟**

پوښتنه: دجنازې لمونځ ودرید، یو سړی وروسته راورسید او دجنازې په لمانځه کې شریک شو، داورته نه معلومیږي چې جنازه دچا ده، ایا مړی سړی دی، ښځه ده او که ماشوم، په دې صورت کې به هغه څرنګه نیت کوي او څه به وایې؟

ځواب: دسړي او ښځې لپاره دجنازې په لمانځه کې دعا یو ډول ده، دماشوم او ماشومې ددعا لپاره الفاظ سره بیل دي، که دماشوم دجنازې په لمانځه کې هم دبالغ دعا وویله شي، صحیح ده. نو که څوک وروسته پکې ګډون کوي او ورته معلومات نه و فقط دجنازې دلمانځه نیت دې کوي او دبالغانو دعا دې وایې. (آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۶۳)

مسئله : دماشوم په جنازه کې که څوک وروسته شریک شي ورته معلومات نه وي چي داماشوم هلک دی که نجلۍ ، نو اللهم اجلعه لنا فرطا دمذکر په ضمیر دعا دي ووایې ځکه دشخص به تاویل دمؤنث لورته هم راجع کیږي او که یې دمؤنث په ضمیر ووایې هم صحیح دی ځکه هغه دنفس په تاویل صحیح ده . (یعني دواړه ډوله یې ویلای شي)

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۵۰ ، دهدایه ج ۱ ص ۱۶۳ په حواله)

**که څوک وروسته ګډون وکړي ، لموځ به څرنګه بشپړ کوي؟**

پوښتنه : که څوک وروسته جنازې ته ورسید ، تیر شوي تکبیرونه به څرنګه پوره کوي؟

ځواب : مقتدي چې هر وخت راورسیږي تکبیر دي ووایې او له امام سره دي ګډون کوي ، که څه هم امام څلورم تکبیر ویلي وي ، خو سلام یې ګرځولی نه وي ، نور تکبیرونه دي دامام تر فراغت وروسته ووایې . که دګډون په مهال پوه شو چې کوم تکبیر دی ، نو بیا دي دهغه دعا ووایې کومه چې امام یې وایې او پاته شویو تکبیرونو کې دي پاته شوي دعا وي په ترتیب سره ووایې .

که پوه نه شو چې امام په کوم تکبیر کې دی ، نو دلومړي تکبیر دعا یعني ثناء دي ووایې ، بیا دي په ترتیب سره نوري ووایې . په پاته شویو تکبیرونو کې که دجنازې دپورته کیدلو ویره وي ، دعا دي نه وایې . فقط تکبیرونه دي ووایې .



که جنازه پورته شوه نو لا ځمکې ته نژدې وه نو تکبیرونه دي ووایې او که دخلکو اوږو ته نژدې وه ، بیا دي تکبیرونه نه وایې ، لمونځ نه صحیح کیږي .(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۹۱، آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۶۵)

مسئله : څوک چې دجنازې په لمانځه کې وروسته ګډون وکړي ، هغه دي دامام تر فراغت وروسته تکبیرونه ووایې . که دجنازې داخستلو ویره وه چې ډیر دغسي کیږي دعا دي نه وایې .

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۷۰ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۲۰ په حواله ، علم الفقه ج ۲ ص ۱۱۷)

**دجنازې په لمانځه کې دکمو یا زیاتو تکبیرونو حکم**

مسئله : دجنازې په لمانځه کې که امام تر څلورو تکبیرونو زیات ووایې ، مقتدي دي په زیاتو تکبیرونو کې متابعت نه کوي ، دسلام ګرځولو انتظار دي وباسي ، په دې صورت کې دټولو لمونځونه صحیح کیږي . که تر څلور تکبیرونو کم ووایې نو دټولو لمونځونه باطل دي ، خو دا په هغه شرط چې په قصدي توګه یې کم ووایې ، که تکبیر سهواً پاته شي نو ددې حکم دادی لکه پوره یو رکعت چې پاته شي ، خو دلته سجده سهو نشته . (کتاب الفقه ج ۱ ص ۲۲۳ ، علم الفقه ج ۱ ص ۲۰۷)

مسئله : که دچا دجنازې په لمانځه کې څلورم تکبیر هیر شو ، یوه لوري ته یې سلام واړاوو او ورته یاد شول نو څلورم تکبیر دي ووایې او بیا دې سلام وګرځوي .

(فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۲۲۳ ، فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۳۶۱)

مسئله : په دریو تکبیرونو دجنازې لمونځ ختمول ، لمونځ فاسدیږي خو په پنځو تکبیرونو ختمولو نه فاسدیږي .

(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۶۷ ، دطحطاوي ص ۳۲۲ په حواله)

## دجنازې دلمانځه لپاره تیمم کول

مسئله: که دجنازې دلمانځه دتیریدلو ویره وه بیا د تیمم وهلو جواز شته، مثلاً لمونځ ولاړ دی او په اودس کولو دلمانځه دتیریدلو ویره وه نو تیمم دي وکړي او لمونځ دي ونیسي. که څه هم اوبه وي، دادنورو لمونځونو په خلاف ده چې وخت هم تیریږي خو په اوبو باندي قدرت وي، تیمم جواز نلري. (علم الفقه ج ۲ ص ۱۹۲)

## له اودس پرته دجنازې لمونځ

مسئله: دا غلطه خبره ده چې دجنازې لمونځ له اودس پرته جایز دی، له اوداسه یا تیمم پرته دجنازې لمونځ کول کبیره ګناه ده. خو که امام ولاړ وا او یو څوک راغی او د اودس په کولو لمونځ تري تیریده او تیمم وکړي په لمانځه ورسره و دریږي، جواز لري. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۳۷، ردالمحتار ج ۱ ص ۲۲۳ باب التیمم په حواله)

مسئله: که دا ویره وه چې د اودس په کولو د جنازې لمونځ تیریږي، تیمم دي ووهي په لمانځه دي دریږي. خو دا تیمم یوازې د جنازې لپاره دی، نور لمونځونه په دې تیمم باندي جواز نلري، بلکې اودس کول ورته ضروري دي.
(آپ کې مسائل ج ۳ ص ۳۷۱)

مسئله: که د جنازې دلمانځه لپاره اودس وکړي، نور لمونځونه ورباندي صحیح دي.

(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۷۴، فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۳۷۱)



## د ډیرو جنازو یوځای لمونځ کول

مسئله: د څو جنازو لمونځ یوځای کول هم جواز لري، په دې دریو صورتونو کې که هریو غوره کوي:

لومړی صورت دادی چې جسدونه داسې کښیږدي چې دیوه له پښو سره دبل سر وي.

دوهم صورت یې دادی چې جسدونه دیوه او بل ترڅنګ داسې کښیږدي چې دیوه له اوږي سره دبل سر وي او دغسې دیوې زینې شکل تري جوړ سي.

دریم صورت یې دادی چې وړاندي وروسته یې سره کښیږدي او دټولو سینې دامام په مقابل کې وي.

په وروستنیو دوو صورتونو کې به امام ته نژدې سړي وي بیا وړیسې نابالغ ماشوم، وړیسې خنثی بیا میرمن او بیا نابالغه ماشومه.

په لومړي صورت کې چې دصف په صورت وي، امام دي له افضل او غوره سره نژدې ودریږي. (امداد الفتاوی ج ۱ ص ۸۲۶، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۲ په حواله، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۲۸، احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۰۸، کفایت المفتي ج ۴ ص ۷۵۰)

مسئله: که (خدای مکړه) څو جنازې یوځای وي، دهغو یوځای لمونځ کیدلای شي او په دې کې څه خبره نشته. دټولو د جنازې لمونځ اداء کیږي او دجنازې په لمانځه کې اللهم اغفرلي لحینا ... تر پایه دسړو، ښځو او ماشومانو لپاره ویله کیږي. په دې صورت کې غوره او افضل دادی چې دهر یوه دجنازې لمونځ بیل، بیل وشي، کوم مړی چې غوره او

ښه دي اول او بیا په ترتیب سره څوک چې افضل دی ، وشي .

مسئله : که د ټولو د جنازې لمونځ یوځای کیږي، د ټولو نیت دي وکړي او غوره طریقه داده چې د امام مخته ټول داسې کښېښودل شي چې امام د هغو د سینو په برابر ودریږي. لومړی د سړي بیا د نابالغ ماشوم بیا د میرمنې بیا د نابالغې ماشومې جنازې کښېښودلې شي. که په دې جنازو کې د خنثی جنازه هم وي نو د میرمنې تر جنازې دي وړاندې کښېښودله شي، بیا دې د میرمنې جنازه وي. امام دې تر ټولو له غوره سره ودریږي. (فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۹۸ ، نور الایضاح ص ۱۲۷ په حواله)

مسئله : د مړو په زیاتوالي کې چې عامه وبا وي په جواز عمل کیږي یعني یو ځل د ټولو د جنازو د لمانځه په کولو کې کومه خبره نشته . (امداد الاحکام ج ۱ ص ۸۲۸ ، فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۱۰۰ ، علم الفقه ج ۲ ص ۱۹۶ – فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۳۲۸)

## د جنازې په ډله ایز لمانځه کې کومه دعا ویله کیږي؟

پوښتنه : په حرمینو شریفینو کې د لویو او وړو جنازه یوځای کیږي، په دې صورت کې کومه دعا ویله کیږي ؟

ځواب: په ډله ایز لمانځه کې هغه دعا ویله کیږي کومه چې د لویانو د جنازې په لمانځه کې ویله کیږي. په دې کې ماشوم هم راځي. (آپ کې مسائل ج ۳ ص ۱۶۳)

مسئله : د بالغ سړي او ښځې په دعا کې توپیر نشته ، یو ډول ده .

(فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۳۴۲ ، غنیة ج ۱ ص ۵۲۹)



## د سړي څو ځلې د جنازې لمونځ

پوښتنه : د یوه مړي د جنازې لمونځ دوه ، درې ځلې کول څرنګه دي؟

ځواب : که د جنازې لمونځ داسې څوک وکړي چې د هغه حق وي بیا یې نو بیرته کولای نشي.

(فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۳۱۳ ، رد المحتار ج ۱ ص ۸۲۶ په حواله)

مسئله : که د مړي ولي د جنازې لمونځ وکړي، نو د جنازې لمونځ بیا نه کیږي، خو که هغه ونکړ بیا کیږي او په دوهم ځلي کې هغه کسان ګډون کولای شي چې لومړی یې کړی نه وي.

(آپ کې مسئله ج ۳ ص ۱۹۷)

مسئله : که لومړی ځل ولي د جنازې لمونځ ونکړ او نه د هغه په اجازه شوی و ، داسې چا کړی وي چې د تقدم حق یې نه درلود . نو ولي یې بیا کولای شوای . خو که ولي لومړی لمونځ کړي او یا ورکړي و ، بیا نورو ته اجازه نشته چې مکرر (دوهم ځل) یې لمونځ وکړي. (فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۸۲۹)

مسئله : که د ولي له اجازې پرته لمونځ شوی وي نو ولي ته د اعادې (راګرځولو) حق شته خو په دې صورت کې هغه چا ته چې لومړی یې د جنازې لمونځ کړي وي د بیا لمانځه حق نشته.

په حمزه رضی الله عنه باندې په تکرار سره لمونځ کول د هغه ځانګړتیا وه ، هر ځل له نورو شهیدانو سره یې ایښودلو کې یې دده لمونځ مقصود نه و ، بلکې د لمانځه د ځـای او نورو

صالحانو د جوار د برکت لپاره ایښودل کیده.
(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۱۳، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۲۶ په حواله، اعلاء السنن ج ۸ ص ۲۱۸)

مسئله: په حمزه رضی الله عنه باندي لمونځ په تکرار سره سوی نه دی، یو ځل یې د جنازې لمونځ وسو، بیا د نورو شهیدانو ؤ، خو د حمزه (رضی الله عنه) جنازه به ورسره ایښودله کیدله، همدا ورسره ایښودل یې راوي په اویا وو لمونځونو تعبیر کړی دی او له لمانځه څخه مطلب تکبیر دی.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم د جنازې د لمانځه تکرار، د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ځانګړتیا وه. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۶۱)

## ایا د جنازې دوهم ځلي لمونځ کول ګناه ده؟

پوښتنه: په یوه کلي کې د جنازې لمونځ وسو، کله چې بل کلي ته یې یووړه چیري د مړي د خپلوانو هستوګنه وه، هلته مسلمانانو د خواخوږي لپاره بیا د جنازې لمونځ ورباندي وکړ، لومړی جنازه یې ولي وکړه، نو د بیا جنازه کوونکو ګناه شته کنه؟ که ګناه وي بیا به صغیره وي او که کبیره؟

ځواب: د جنازې لمونځ بیا کول غیر مشروع او ناجایز دی. څرګنده ده چې د غیر مشروع او حرام مرتکب ګنهکار دی. د ثواب مستحق نه دی او حرام فعل کبیره ګناه ده.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۴۹ د عالمګیري مصري ج ۱ ص ۱۵۳ په حواله)

مسئله: که د جنازې لمونځ د ولي په اجازه په جماعت سره وشو، بیا نکیږي. خو لومړی ځل که پرته له جماعته شوی وي نو تر خښولو وړاندي یې بیا کول مستحب دي. (کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۴۹)



## د جنازې لمونځ څه وخت مشروع شو؟

مسئله: له طحطاوي علي مراقي الفلاح (ص ۳۳۸) څخه معلومیږي چې د جنازې د لمانځه د مشروعیت په هکله دوه قوله دي: لومړی دا چې د جنازې لمونځ د دي امت ځانګړتیا ده او د خدیجې (رضی الله عنها) تر وفات وروسته مشروع شوی دی.

دوهم قول دا دی چې په آدم علیه السلام باندي ملایکو د جنازې لمونځ وکړ او نورو ته هم دغسي مقرر شو.
(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۳۲)

## د جنازې په لمانځه کې امام چیري دریږي؟

مسئله: سنت داده چې د امام تر مخ جنازه داسي کښېښودله شي چې سر یې د امام ښي او پښې یې چپ لور ته وي. د دې په خلاف بد ده. (فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۴۶)

مسئله: مستحب دي چې امام د مړي سیني ته مخامخ ودریږي، مړی که سړی وي او که میرمن، که بالغ وي او که نابالغ، فرق نکوي. (کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۴۲)

مسئله: د زیلعي د ۲۴۲ مخ له عبارت څخه معلومیږي چې امام دي د مړي د سر یا پښو لوري ته نه دریږي، سیني ته دي برابر ودریږي. په روایت کې چې راغلي دي چې مړی یې وړاندي کښېښود او رسول الله صلی الله علیه وسلم ودرید لمونځ یې وکړ، د دې مطلب همدا دی. ځکه سر او لاسونه تر سینه لوړ دي، ګیډه او پښې تري لاندي دي نو سینه په وسط (منځ) کې ده او بله خبره داده چې سینه د ایمان، حکمت

او علم ځای دی، له دې امله سینه فوقیت لري او داسې کول مستحب دي.

که د ځنګونو یا اوږو برابر هم ورته ودریږي، لمونځ صحیح کیږي، خو د مړي له یوې برخې سره برابر دریدل د جنازې د صحت لپاره شرط دی. که د مړي کومه برخه د امام په وړاندې نه وي، بیا د جنازې لمونځ صحیح نه دی.

(فتاوی محمودیه ج ٢ ص ٤٤٦ – علم الفقه ج ٢ ص ١٩٤)

## د جنازې د لمانځه طریقه

د جنازې د لمانځه مسنون او مستحب طریقه داده چې مړی مخته کښیږدي، امام یې د سینې په برابر ودریږي او خلک د امام ترشا ودریږي، داسې نیت وکړي:

نَوَیْتُ اَن اُصَلِیَ صلوة الجنازة لله تعالی ودَعَاء للمیت.

(ما نیت وکړی چې د جنازې لمونځ وکړم چې د الله تعالی لمونځ دی او مړي ته دعا ده.)

دا نیت په عربي یا خپله مورنۍ ژبه وي او دواړه لاسونه د تحریمې د تکبیر په څیر تر غوږونو لوړ کړي، یو ځل الله اکبر وایې. دواړه لاسونه د لمانځه په څیر وتړي او تر هغې لومړی تکبیر وروسته، سبحانک اللهم، تر اخره ووایې. بیا دوهم ځل الله اکبر ووایې، خو دا ځل لاسونه، او چت نکړي، په لمانځه کښې چې درود ویل کیږي هغه درود شریف ووایې. دریم تکبیر وویل شي، لاس او چت نشي او مړي ته دعا وشي.



که مړی بالغ سړی یا ښځه وي، دا دعا ووایې:

اللهم اغفر لحینا ومیتنا وشاهدنا وغائبنا وصغیرنا وکبیرنا وذکرنا وانثانا. اللهم من احییته منا فاحیه علی الاسلام و من توفیته منا فتوفه علی الایمان.

په ځینو حدیثونو کې نوري دعاوې هم راغلي دي او فقهاوو رانقل کړي دي، که دواړه دعاوي ووایې هم ښه ده. کومه دعا چې غواړي هغه دې ووایې. که مړی نابالغ ماشوم وي نو دا دعا دې ووایې:

اللهم اجعله لنا فرطا وجعله لنا اجراوذخرا وجعله لنا شافعا ومشفعا.

او که مړی نابالغه ماشومه وي، هم دا دعا ویله کیږي خو د "اجعله" په ځای "اجعلها" او د "شافعا" او "مشفعاً" په ځای "شافعة" و "مشفعة" ووایې.

کله چې دا دعا ووایې نو څلورم تکبیر وویل شي، لاسونه او چت نسي او سلام واړول شي. داسې لکه چې په لمانځه کې اړول کیږي. په دې لمانځه کې التحیات او د قرآن کریم قرائت او نور څه نشته، مقتدي هم هغه څه وایې کوم چې امام یې وایې. (فتاوی دارالعلوم ج ٥ ص ٣٤٨، ردالمحتار ج ١ ص ٨١٦ په حواله، احکام میت ص ٧٢، آپ کي مسائل ج ٣ ص ١٦٢، کتاب الفقه ج ١ ص ٧٣٧، ترمذي ج ١ ص ١٩٨)

مسئله: د جنازې د لمانځه له هر تکبیر سره، سر د آسمان لورته نه پورته کیږي. (آپ کې مسائل ج ٣ ص ١٦٤ – علم الفقه ج ٢ ص ١٩٤)

## دجنازې دلمانځه سلام ورو او که په زوره ؟

مسئله : دجنازې دلمانځه دسلام په هکله دري قولونه دي :

۱- دواړه لورو ته سلام ورو ویل کیږي.

۲- یو لورته په زوره او بل لورته ورو ویل کیږي .

۳- دواړه په لوړغږ.

په اصل کې لومړی صورت یعني دواړو لورو ته ورو ویل غوره دي. دریم صورت یعني امام دواړو لورو ته سلام په زوره وایي ، دعام تعامل له امله په هغه فضیلت لري .که لومړنی صورت غوره شي ،په عوامو کې فتنه او ګډوډي پیدا کوي نو هغه دي نه غوره کوي.

(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۸۵ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۷ په حواله)

مسئله : دجنازې په لمانځه کې دواړو لورو ته سلام اړول واجب دی ، نو یوه لورته سلام جایز نه دی.

(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۱۸ ، طحطاوي ۳۲۰ په حواله)

مسئله :دجنازې په لمانځه کې تر څلورم تکبیر وروسته او تر سلام وړاندي کومه دعا نشته .

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۷۰ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۷ په حواله)

## له سلام سره لاسونه خلاص وي او که بند ؟

مسئله : دجنازې په لمانځه کې تر څلورم تکبیر وروسته به لاسونه بند وي او سلام به اړوي . دادي هم څرګنده وي چې تر هر تکبیر وروسته ذکر مسنون دی. تر لومړي تکبیر وروسته ثناء تر دوهم وروسته درود شریف، تر دریم وروسته دعا اوتر څلورم وروسته سلام دی . دا هر یو مسنون ذکر دی.



تر څلورم تکبیر وروسته دذکر په مشروعیت کې خبره نشته که خلاف وي، هغه دعا په مشروعیت کې ده . ذکر عام دی چې سلام هم پکې شامل دی.فقها دجنازې په لمانځه کې وضع یعني لاس نه خلاصول دمسنون بللو لپاره کافي دي ، له تصریح پرته دهغه خلاف کول صحیح نه ښکاري.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۱۴ ،شامي ج ۱ ص ۴۵۵ په حواله، امداد الاحکام ج ۱ ص ۸۲۸ په حواله)

مسئله :دجنازې دلمانځه دڅلورم تکبیر ویل او سلام ګرځول دواړه ډوله صحیح دي . که لاس خلاص کړي او سلام واړوي او که سلام وګرځوي او لاس خلاص کړي.

(کفایت المفتي ج ۴ ص ۹۶– احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۲۷ ، فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۶۸)

مسئله : دجنازې په لمانځه کې سلام اړول دسلفو او خلفو معمول پاته شوی دی او دسلام اړولو دثبوت په اړه په کنز العمال کې دري روایتونه راغلي دي.(کفایت المفتي ج ۴ ص ۹۹)

مسئله :دجنازې لمونځ دامام او مقتدي په هکله یو ډول دي ، یوازې دومره توپیر لري چې امام تکبیر او سلام په زوره وایي او مقتدیان یې ورو وایي .نور شیان یعني ثناء ، درود او دعا مقتدي هم ورو وایي او امام هم.(علم الفقه ج ۱ ص ۱۹۵)

مسئله :دجنازې په لمانځه کې دوه ځله سلام ویل کیږي ، لومړی ښي او بیا کیڼ لوري ته .

په ښي لور کې دښي خوا دخلکو نیت کیږي او کیڼ لوري ته دکیڼې خوا دخلکو نیت کیږي خو دمړي نیت په یوه کې هم نه کیږي.(کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۳۳)

## که دجنازې په لمانځه کې سلام هیر سو؟

پوښتنه :دجنازې په لمانځه کې ترڅلورم تکبیر وروسته امام سلام اړول هیر سول ، نو ایا لمونځ کیږي که نه ؟

ځواب : دجنازې په لمانځه کې سلام فرض نه دی، واجب دی، په عامو لمونځونو کې دواجب په پرېښودلو سره دسهو سجده کیږي. خو دجنازې په لمانځه کې دسهو سجده نشته نوځکه لمونځ صحیح کیږي، راګرځول یې واجب نه دي.

(احسن الفتاوی ج ۴ ص۲۲۹ ، طحطاوي ج ۱ ص۳۲۱ په حواله)

مسئله :دجنازې په لمانځه کې سلام واجب دی، لکه په نورو لمونځونو کې چې واجب دی ، نو که سلام پاته سي لمونځ نه باطلیږي.(کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۴۰)

مسئله :دجنازې په لمانځه کې که له تر څلورم تکبیر څخه پرته سلام وګرځوي خو وروسته ورته یاد شي او څلورم تکبیر ووایې او امام بیا سلام وګرځوي په دې صورت کې لمونځ وسو .(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۶۵ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۳ په حواله ، احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۳۰ ، مراقي الفلاح ص ۳۲۱ په حواله )

مسئله :که دجنازې په لمانځه کې امام تر دریو تکبیرونو وروسته سلام واړوي ،بیا دفتح په ورکولو سره څلورم تکبیر ووایې ،لمونځ پوره کړي صحیح دی او دلمانځه دراګرځولو ضرورت نشته . که دري تکبیرونه څلور وګڼي او سلام واړوي ،داسهو بلل کیږي او که پوه وي او په دې باور تر دریو تکبیرونو وروسته سلام واړوي چې دجنازې په لمانځه کې



دري تکبیرونه دي ،دا سلام قصدي بلل کیږي او لمونځ فاسدیږي .(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۴۲۱ ، درمختار مع شامي ج ۱ ص ۷۰۵ ، کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۴۶)

## دجنازې تر لمانځه وروسته دعا کول

پوښتنه :دجنازې تر لمانځه وروسته په ولاړه ، مستقل دمړي لپاره دمغفرت دعا کول څرنګه دي ؟

ځواب : دجنازې لمونځ په خپله دعا ده او مړي ته دمغفرت دعا یکې اصل دي ، ترلمانځه وروسته دریدل او دعاکول ثابت نه دي، بلکې دفقه په کتابونو کې ورڅخه منع شوې ده.

لایقوم بالدعاء بعد الصلوة الجنازه.

(خلاصة الفتاوی ج ۱ ص ۵۲۵ ، فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۰۷)

مسئله : دجنازې تر لمانځه وروسته لاسونه پورته کول او دعاکول په شریعت کې کوم ثبوت نلري. لمونځ په خپله دعا ده ، هو که په زړه کې له لاس پورته کولو پرته دعاکوي ، جواز لري. دله ایزه دعا کول، لاس پورته کول بدعت دی.

(کفایت المفتي ج ۴ ص ۸۵)

مسئله : له رسول الله (صلی الله علیه وسلم) او صحابه وو (رضی الله عنهم) څخه ثابته نه ده ، ځکه یې فقها ناجایزه او مکروه ګڼي.

(احسن الفتاوی ج ۱ ص ۳۳۶ ، رحیمیه ج ۱ ص ۳۵۷)

مسئله : فقهاوو دجنازې تر لمانځه وروسته بیا دعا کول مکروه او ممنوع لیکلي ده ځکه دجنازې لمونځ پخپله دمړي لپاره دعا ده . یکې دزیاتوالي اړتیا نشته. تر لمانځه وروسته دا التزام چې دري ،دري ځله دا خلاص سورة ولولي او ثواب یې مړي ته وبښي ، ښه نه دي. بل وخت په خپل زړه کې پرته له

اعلان او التزام څخه که کوم سورت وویل شي، کومه خبره پکې نشته.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۴۲، مرقات المفاتیح ج ۱ ص ۳۶۹، فتح الباري ج ۱ ص ۱۲۲)

**تر لمانځه وروسته دامام په جامه څه نښه ولیدله شوه**

پوښتنه: یو څوک امام وُ او د جنازې لمونځ یې ورکړ وروسته یې په جامه څه نښه ولیدله شوه چې غسل ته یې اړتیا وه، د جنازې لمونځ صحیح شو او که به بیا په قبر کیږي؟

ځواب: په دې صورت کې لمونځ نه دی شوی، بیا به یې کوي، که خښ شوی وي په قبر باندې به یې کوي. یعنې د مړي تر خرابیدلو وړاندې، ځینو تر دریو ورځو پورې حکم ورکړی دی. په دې معنی چې تر دریو ورځو پورې په قبر لمونځ کیدلای شي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۲۸)

مسئله: امام د جنازې لمونځ ورکړ، بیا څو قدمه ولاړ، معلومه شوه چې په ذکر یې د بولو څاڅکې راغلل، په دې اشتباه لمونځ نه خرابیږي، شوی لمونځ صحیح دی.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۰۳)

**په هیره یې بې اودسه لمونځ وکړ؟**

پوښتنه: امام په سهوه سره بې اودسه لمونځ وکړ، د جنازې تر وړلو وروسته ورته یاد شول چې اودس یې نه وُ، په داسې حال کې څه حکم دی؟

ځواب: په دې صورت کې د جنازې لمونځ شوی نه دی، په درمختار کې راغلي چې که امام بې اودسه او قوم اودس درلود لمونځ به راګرځي. نو دا د جنازې لمونځ به بیا کوي او



که مړی دفن شوی وي تر هغه لمونځ ورباندې لازم دی تر څو مړي خراب شوي او شړیدلی نه وي. یعنې ورباندې د غسې ګمان نه وي، ځینو فقهاوو داموده درې ورځې ښودلې ده. که داموده تیره شوه بیا هیڅ کیدلای نشي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۱۷، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۲۶، باب الجنایز په حواله)

**که د جنازې په لمانځه کې د دعا په ځای سورت وویل شي**

پوښتنه: یوه سړي د جنازې لمونځ ورکړ، د دعا په ځای یې: "قل هو الله" او "انا اعطینا" د جنازې په لمانځه کې وویل، د دې حکم څه دی؟ ایا لمونځ وشو او که ونه شو؟

ځواب: په دې صورت کې لمونځ وشو، خو ده بد وکړل ځک
د جنازې په لمانځه کې د قرآن کریم ایاتونه یا سورتونه ویل مکروه دي، له فاتحې پرته چې اختلاف پکې دی، په بیا کې دې دا شخص نه امام کیږي، ورته لازمه ده چې ثنا او دعا یاد کړي، که څه هم کومه سزا ورته نشته.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۱۸، د عالمګیري مصري ج ۱ ص ۱۵۴ په حواله)

مسئله: فقهاوو دا لیکلي دي چې که د دعا په نیت فاتحه د
جنازې په لمانځه کې وویله شي صحیح ده او دا مطلب
عالمګیري د روایت دی.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۵۲۶، کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۴۰)

**که یې جنازه سرچپه ایښې وه؟**

پوښتنه: په غلطۍ سره یې د جنازې د لمانځه په مهال جنا
سرچپه ایښې وه، کوم لورته چې یې سر ایښودل کیږي ه
لورته یې پښې کړې وي، د جنازې تر لمانځه وروسته معلو

شو . ایا دجنازې لمونځ وشو؟ لمونځ بیرته راوګرځول شي؟

ځواب : که پوهیږي او جنازه چپه ړدي دامکروه ده . که په هیره داسي وشي څه خبره نشته دلمانځه دراګرځولو یې اړتیا نشته .(فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۳٦۰ ، درمختار او طحطاوي ص ۵۹۳ ، احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۲۹ ، درد المحتار ج ۱ ص ۸۱۳ په حواله)

## دجنازې دلمانځه په اړه مسائل

مسئله : دجنازې په لمانځه کې به مقتدي دامام په پیروي ثناء او نورڅه برابر وایې او ترلمانځه وروسته لاس پورته کول او دعا کول ثابت نه دي ، فقهاوو دامنع کړي دي، ځکه لمونځ په خپله دمړي لپاره دعا ده .

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۲۰ ، اپ کي مسائل ج ۳ ص ۱٦۵)

مسئله : دکومو خلکو چې دجنازې دلمانځه دعا زده نه وي ، یوازې په اقتداء او تکبیرونو یې لمونځ کیږي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۴۳ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۴ په حواله)

مسئله : چاته چې ماثوره دعاوې یادي نه وي، تر دریو تکبیرونو وروسته ،د "اللهم اغفرلنا" په ویلو سره یې دجنازې لمونځ کیږي خو سنت دعا ونه ویله سوه .

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۴۷ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱٦ په حواله)

مسئله : څوک چې دجنازې دلمانځه په جوړښت نه پوهیږي، هغوی دې هم په لمانځه کې ګډون کوي ، له امام سره دې تکبیرونه وایې، که یې ماثوره دعا یاده نه وي "اللهم اغفرلنا" دې په ځای وایې او داکافي دي .(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳٦۹)

مسئله : څوک چې دجنازې دلمانځه په دعا نه پوهیږي، نیت



دي وکړي، دامام ترشا ودریږي یوازې په تکبیرونو او سلام اکتفا وکړي، لمونځ کیږي او مړي ته یې ثواب رسیږي.

دجنازې په لمانځه کې د دعا رکنیت مختلف فیها مسئله ده .

علامه شامي یې رکنیت ته ترجیح ورکړې ده ، خو دعذر په مهال دارکنیت په اتفاق سره ساقطیږي .(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۱٦)

مسئله : یوازې دڅلور تکبیرونو په ویلو سره دجنازې لمونځ اداء کیږي: څوک چې دتکبیرونو په ویلو پوهیږي دهغه دجنازې لمونځ کول صحیح دي.

(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۷۴ ، مراقي الفلاح ص ۳۲۰ په حواله ، علم الفقه ج ۲ ص ۲۰۷)

دجنازې دلمانځه لپاره هغه شرایط دي کوم چې دنورو لمونځونو لپاره دي ،پرته له رکوع او سجدې او نور. کوم شیان چې نور لمونځونه فاسدوي هغه دجنازې لمونځ هم فاسدوي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴٦۴)

مسئله : دجنازې لمونځ هم په هغو شیانو فاسدیږي کوم چې نور لمونځونه ورباندي فاسدیږي ، یوازې دومره توپیر شته چې دجنازې په لمانځه کې قهقهه خندا اودس نه ماتوي او له میرمنې سره په خواکې دریدل، فساد نه راولي.

(علم الفقه ج ۲ ص ۱۹۵)

## دجنازې له لمانځه پرته که مړی خښ کړای شي؟

مسئله : کوم ماشوم که ژوندی وزیږي دجنازې لمونځ یې فرض دی، که پرته له جنازې خښ شي ، هغه خلک چې ورباندي خبر دي هغوی ګنهګار دي، دداسې جنازې حکم

چې پرته له لمانځه خښ شوي وي ، دادی چې په قبر یې د جنازې لمونځ کیږي، دا تر هغه چې په خرابیدلو یې ګمان نه وي .ددي تحدید ځیني علماوو په دریو ورځو کړی دی. خو صحیح داده چې څه وخت ورته تاکل شوی نه دی تر څو یې دخرابیدلو اټکل نه وي تر هغه لمونځ کول وربانديي فرض دی. خو چې هغه وخت تیر شي او لمونځ وربانديي ونکړي خلک ګنهګار پاته شول .کفاره یې داده چې توبه او استغفار وکړي او بیا داسې کار ونکړي.بس همدومره کافي دي نور سختې له همدې خلکو سره ونشي ځکه دا کار یې په ناپوهي سره کړی دی.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۲۸۸ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۲۶ په حواله)

مسئله :دمړي دجسد ترخرابیدلو او شړیدلو وړاندي یې په قبر دجنازې لمونځ کیدلای شي او دجسد دخرابې موده یې معلومه نه ده. بلکي ددي مدار دمړي په جثه ، موسم او دځمکې په حالت او خاصیت پورې اړه لري. ځیني ځایونه دري ورځي ، ځیني لس ورځي او ځیني ځایونه مړی تر یوې میاشتې نه خرابیږي. دځمکې دتاثیر او نورو په هکله له ماهرو مسلمانانو څخه پوښتنه وشي او په هغې خبره عمل وشي. دجسد تر خرابیدلو وروسته یې په قبر دجنازې د لمانځه جواز نشته.(فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۱۸۹ ، درمختار مع شامي ج ۱ ص ۸۲۷ په حواله، بحر ج ۲۱ ص ۱۸۲)

## دبیرته تللو لپاره په اجازه اخلي ؟

مسئله : دجنازې تر لمانځه وروسته ترخښولو وړاندي که



ځوک بیرته ځي دمړي له خپلوانو اجازه اخستل مستحب ده .
(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۱۴ ، دخانیه ج ۱ ص ۹۱ په حواله)

مسئله : دا جازې اخستلو ضرورت نشته ، خو ترخښولو وړاندي تلل تر هغه کم ثواب لري چې که ترخښولو وروسته لاړ شي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۵۶ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۸ باب الجنائز)

مسئله : دجنازې تر لمانځه وړاندي بیرته تلل مطلقاً مکروه دي. تر لمانځه وروسته که دمړي خپلوان اجازه ورکړي نو بیرته تګ مکروه نه ده.(کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۶۹)

## دهدیرې آداب

یوه عامه غلطي داده چې هدیرې ته په رسیدلو خلک ددنیا خبري نه پریږدي ،حال دا چې هدیره دعبرت ځای دی. دقبر او اخرت او دهغوی دویروونکو مرحلو او په خپل انجام دفکر کولو ځای دی.

قبرستان ته په ورتلو چې دسلام ویلو کوم کلمات رانقل شوي دي ، اکثر خلک ورڅخه غافل دي . ډیر کسان هدیري ته دننوتلو مشهوره او معلومه لاره پریږدي، په قبرونو دپاسه تیریږي او دمړي قبر ته درسیدلو هڅه کوي ، کله خو دقبرونو دپاسه خیژي ،خو یاد ولرئ چې داسې کول منع دي. معلومه او تاکلي لاره که څه هم اوږده وي خو په هغې تلل ضرور دي. ځیني کسان چې هدیري ته ورسیږي، دمړي خوا وشا کینې، دمړي دخښولو کار ګوري خو ددوی له ناسې څخه دمړي خپلوان او قبر کندونکي په تکلیف کیږي، د ډیروالي له امله

یو او بل ته ضرر رسوي ، خوا او شا نور قبرونه هم تر پښو لاندې خرابوي. دا په یاد ولرئ چې د ښخولو کار لیدل فرض او واجب نه دي ، خو نورو ته په دې کار سره تکلیف رسول حرام دي. د قبرونو خرابول هم جواز نلري نو له دې ګناهونو څخه ځان ساتئ . له قبر سره یوازې د قبر جوړوونکي پریږدئ، تر څو په اسانۍ سره خپل کار وکړي ، د خاورو د ورکړې وخت چې راشي هغه ورته ورکړئ.

ځینې کسان د خاورو خښتو د ورکولو په مهال خورا بیړه کوي، یو له بل سره په ټنګ وهي او تکلیف سره رسوي، دا هم ناجایز دي.(احکام میت ج ۱ ص ۲۳۵)

په پیل کې چې توحید لا د خلکو په زړونو کې پسم ځای نیولی نه و ، له شرک او جاهلیت څخه د وتلو لا ډیره موده تیره شوي نه وه ، رسول الله صلی الله علیه وسلم خلک قبرونو ته له تللو څخه منع کول، ځکه د شرک او قبر لمانځنې له ککړتیا څخه ویره وه. خو کله چې د امت توحیدي مزاج پوخ او کلک شو او له هر ډول جلي او خفي شرک څخه یې په زړونو کې کرکه پیدا شوه او قبرونو ته له تللو څخه د شرک د جراثیمو د پیدا کیدلو اندیښنه ورکه شوه. رسول الله صلی الله علیه وسلم قبرونو ته د ورتللو اجازه وکړه او دا یې هم څرګنده کړه چې دا اجازه ځکه وشوه چې د قبرونو په زیارت کولو سره له دنیا سره مینه کمیږي او په زړونو کې د آخرت یاد پیدا کیږي.
(معارف الحدیث، ج ۳ ص ۴۸۸)



## په هدیره کې په پټو پښو ګرځیدل

پوښتنه : ځینې ځایونه عادت دی چې په هدیره کې په تیریدلو بوټ یا څپلۍ کاږي، ځکه په پټو پښو په هدیره کې ګرځیدل د مړو بې عزتي ګڼي. د دې شرعي حکم څه دی؟

ځواب : په قبر د پاسه ګرځیدل بې احترامي ده، که هغه په پټو پښو وي او که په لوڅو ، خو په ټوله هدیره کې په پټو پښو ګرځیدل بې احترامي نه ده. (فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۲۳۴)

مسئله :په قبرونو د پاسه لاره جوړول منع دي، که هغه په پټو پښو تګ وي او که په لوڅو پښو ، خو که د قبرونو د پاسه نه وي یا په پټو پښو تګ را تګ هم صحیح دی.

## په خپل ژوند ځان ته قبر جوړول

مسئله :که هدیره عامه وقف وي. چا پکې ځان ته قبر وکنده او خوندي یې وساته ، کوم بل شخص خپل مړی پکې خښ کړ، په دې صورت کې دې د مړي خپلوان یوازې د قبر کندلو اجوره د قبر څښتن ته ورکړي. صاحب القبر د جسد د ایستلو اجازه نلري. که قبر ونه باسي یوازې په زړه کې دا ولري چې زه به د لته خښیږم ، په دې صورت کې که هلته بل مړی خښ کړای شي، دی د هیڅ شي حق نلري. د جسد د ایستلو حق یوازې په هغه صورت کې شته چې ځمکه د چا په ملکیت کې وي او دده له اجازې پرته څوک پکې خښ کړل شي.
(کفایت المفتي ج ۷ ص ۱۲۵ ، فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۴۰۶)

مسئله : ترمړینې وړاندې په ژوند د ځان لپاره په کفن او قبر

(چې ځمکه وقف نه وي) چمتولوکې کومه خبره نشته.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۰۶)

## دقبر ځمکه به په کوم مال (پیسو) اخستله کیږي؟

پوښتنه: مړی خوېې ځینې وارثان په عامه هدیره کې خښوي، خوځینې بیا دقبر لپاره ورته ځمکه اخلي اوهلته یې خښوي. ایا دځمکې بیه دمړي له مال او ملکیت څخه ورکوي اوکه دوارثانو؟

ځواب: دالګښت په تجهیز او تکفین کې شامل دی، نو دمړي له شتمنۍ څخه ورکول کیږي. وارثانو ته داضروري نه ده چې هغه مړی په عامه هدیره کې خښ کړي، بلکې که غواړي نو د قبر په اندازه دي ځمکه ورته واخلي او هلته دې خښ کړي، وارث او یا پوروالا یې مانع کیدلای نشي. هوکه یې هغه په خپله خوښه په عامه هدیره کې خښوي هم جواز لري. خوکه مړي میرمن وي او میړه هم ولري، هغه یې دتجهیز او تکفین ذمه وار دی، نو دمیرمنې دترکې له مال څخه دي دالګښت نه کیږي. میړه دي دخپل حیثیت او خوښې برابر دتجهیز او تکفین کار وکړي. که یې میړه نه وي او یا انکار وکړي نو بیا دي دمیرمنې له ترکه مال څخه دتجهیز او تکفین لګښت پوره کړي. (فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۲۶۰)

مسئله: دمړي په خښولو او نورو کاورنو کې یې مسنونه طریقه خپله شي تر څو نه پکې اسراف وشي او نه هم د پورورېو وارثانو حق ته زیان ورسیږي، مثلاً قبر هم خام جو



شي، که مړی شتمن وي او که بې وزله، که غسل ورکول او قبر کندل په اجوره وي، هغه لګښت هم له حیثیت سره سم او په متوسطه درجه کې وي. که په عامه هدیره کې ورته ځای نه موندل شي، دقبر لپاره دي ورته ځمکه واخستله شي دهغې بیه دي هم دتجهیز او تکفین دسامان په ډول دترکې له شتمنۍ څخه ورکړل شي. (مفید الوارثین ص ۳۲)

## دمملوکي هديري حکم

مسئله: هدیره که وقف وي، نو دکومو کورنیو لپاره چې وقف ده، هغه خپل مړي هلته پکې خښولای شي او متولي یې دمنع کولو حق نلري، متولي داهل استحقاق حق باطلولای نشي. (کفایت المفتي ج ۴ ص ۱۱۷)

مسئله: که دیاچا له لوري چاته ځمکه دتملیک په ډول ورکړل شوي وي. هغه یې ملیکت ده. که یې په هغې ځمکه کې یوه ټوټه دخپل اولاد دخښولو لپاره وقف کړه، دا خاص وقف دی. ترڅو هغه کسان چې ورته وقف شوي وي پاته وي نورو ته دخښولو اختیار پکې نشته. خو که یې وقف نکړي او په خپله مملوکه ځکه کې یې خښ کړي نو په هیڅ حالت کې نورو ته دخښولو حق نشته. خو په دې ټولو حالاتو کې دملکیت ثبوت ورکول دمدعي په ذمه دي. (کفایت المفتي ج ۴ ص ۱۱۷)

مسئله: دقبرونو ځمکه که دقبرونو لپاره وقف نه وي، دچا ملکیت او یا دبل څه لپاره وقف شوي وي. کله چې دمړي

دبدن داجزاوو دنه پاته کیدلو گمان غالب شي، نو په قبرونو ودانۍ جوړول یا کښت کول او یا هغه کار کول چې ورته وقف شوي ده، جواز لري. (کفایت المفتي ج ۴ ص ۱۱۸)

مسئله: دهدیرې ځمکه که دخښنولو لپاره وقف شوې وي، هغه دهستوگنځای په توگه استعمالول جواز نلري، همداسې له هغه ځای څخه دقبرونو نښې لرې کول هم جواز نلري.

خو که ځمکه وقف نه وه بلکې دچا په ملکیت کې وه او هلته یې دڅښتن له اجازې پرته څوک خښ کړل شول یا یې اجازه ورکړه خو ځمکه یې وقف نکړه نو په دې صورت کې که داگمان غالب شي چې نور نو مړی خاوري شوی دی، مالک ته یې په هغې ځمکه ودانۍ جوړول جواز لري.

(کفایت المفتي ج ۴ ص ۱۲۲)

مسئله: دعامې هدیرې لپاره دوقف شوې ځمکې خرڅول جواز نلري، په کرایه ورکول پیرل او پلورل یې جواز نلري. دقبرستان لپاره په وقف شوې ځمکه دهستوگنې ځای جوړول ناجایز دي. هو! که دهدیرې دساتلو په مقصد دمحافظ لپاره ځاله یا بل ځای جوړیږي دامباح دي.

(کفایت المفتي ج ۴ ص ۱۳۶)

## دعامې هدیرې حکم

مسئله: هغه هدیره چې دعامو مسلمانانو لپاره وقف شوې وي. که هغه دکلي له مسجد سره وي یا بل ځای وي هلته له خښنولو څخه ممانعت دمتولي په اختیار کې نه ده، که هغه



کوم مړی له خښنولو څخه منع کړي، ظالم دی. متولي ته په خپله هدیره کې چې دمسلمانانو لپاره وقف وي له چا څخه دقبر بیه یاد نور څه پیسې اخستل جواز نلري. همداسې هلته قفل اچول او له خښنولو څخه ممانعت کول ظلم دی.

(کفایت المفتي ج ۴ ص ۱۴۷)

مسئله: که هدیره دعامو مسلمانانو لپاره وقف نه وه، کومې ځانگړې ډلې یا کورنۍ ته وقف وه نو چې چاته وقف وي، هغوی ته ځانگړې ده او هغه حقوق پکې ورته حاصل دي چې عامو مسلمانانو ته په عام وقف کې حاصل دي، خو هغوی له موقوف علیه څخه پرته نورو ته هم دمړي دخښنولو اجازه ورکولای شي، ځکه هدیره یې ملکیت نه ده بلکې د هغه موقوف علیه حق دی. هغه څوک چې دا هدیره ورته وقف ده، نورو مړو ته دخښنولو اجازه ورکولای شي خو دځمکې دبیې اخستل ورته جایز نه دي. (کفایت المفتي ج ۴ ص ۱۴۷)

## له اجازې پرته دفن کول

پوښتنه: که دځمکې دمالک له اجازې پرته څوک دهغه په ځمکه کې مړی خښ کړي، ایا دځمکې مالک یې بیرته ایستلو ته مجبورولای شي؟

ځواب: دمړي وارث ته دې ووایې چې مړی وکاږي، که یې ونه کاږي دځمکې مالک حق لري چې قبر وسپړي او مړی وکاږي یا دقبر ځمکه هموار کړي.

(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۹۳، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۴۰ په حواله)

مسئله: که مړی راوباسي عام مسلمانان دي دملوکه ځمکې اجازه واخلي یا دي په عام موقوفه ځمکه کې خښ کړي. (فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۱۲ ، دمجمع الانهر ج ۱ ص ۱۸۵ په حواله ، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۷۵)

(دمړي د را ایستلو یا یې دقبر په هموارولو مړي ته هیڅ عذاب نشته ، دا غلطي دژوندو ده چې ولي یې اجازه نه اخستله ، که مالک ورته اجازه ورکوي په دي کې یې ثواب ده . محمد رفعت قاسمي)

## په مسجد کې قبر جوړول

پوښتنه: یوه خونه وقف علی المسجد ده ، متولي په هغې کي خپل پلار خښ کړ. ایا دا کار شرعاً جواز لري او متولي لره څه حکم دی؟

ځواب: دا خیانت دی ، له همدې امله متولي واجب العزل دی. په حاکم یا عامو مسلمانانو لازم دي چې دا قبر وسپړي ، مړی راوباسي یا قبر له ځمکې سره برابر کړي ، ځکه دقبر په پاته کیدلو دمسجد وقف معطل پاته کیږي او اشغال بالغیر ورته لازمیږي. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۹۳ ، ردالمحتار ج ۵ ص ۱۷۴ په حواله)

مسئله: دمسجد غرب لور ته چي کومه ځمکه دمسجد له وقف ځمکې څخه بهر وي قبر پکې جوړول منع نه ده.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۰۵)

مسئله: دقبر دځمکې په بام (مسقف قبر) باندي لمونځ کیدلای شي. (فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۱۰۹)



مسئله: که مسجد ته نژدې دمړو دخښولو لپاره کوم ځای ځانګړی وي ، هلته یې خښول کومه خبره نه ده ، داسي ځای دي خښوي چې ورته خاص وي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۰۹ ، د ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۵ ، باب صلوة الجنایز په حواله)

## له هدیرې څخه بیل دمړي خښول

پوښتنه: دعام مسلمانانو له هدیرې څخه بیل دمړي خښول جواز لري کنه؟

ځواب: مسلمانان په عامه هدیره کې خښول مسنون کار دی. ددې خلاف یو خاص ځای خښول یې مکروه دي. دکوم عالم یا بل مشر خښول دمدرسې یا مسجد ترڅنګ یا بل خاص ځای یې مکروه ده. دکوم عالم یا بل مشر خښول دمدرسي یا مسجد ترڅنګ یا بل خاص ځای اوس یو عام کار شوی دی، فقهاوو دا کار ښه بللی نه دی. نو په لارښود جنابانو دا وصیت کول واجب دي چې تر مړینې وروسته دي په عامه هدیره کې خښ کړي.
(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۴۰۶ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۷ په حواله)

مسئله: ګنبده جوړول یا یې په تعمیر کې خښول له انبیاوو پرته چاته جایز نه دي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۹۵ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۶ ، دمشکوة باب دفن المیت ج ۱ ص ۱۴۸ په حواله)

## په ګډه هدیره کې دمړي خښول

مسئله: مسلمان مړی په داسې هدیره کې خښول چې هلته غیرم مسلمانان ، هندوان ، سیکان او عیسایان هم خښ وي،

بنه نه ده، مکروه ده .خو چې بل ځای د ښخولو لپاره و مونډل شي .اما که مجبوري وه او له دغه شریک قبرستان پرته بل ځای نه و، د مسلمانانو بیله هدیره نه وه، نو بیا دي هلته ښخ کړي. دغسې ځای د جنازې لمونځ هم کول مکروه دي، خو که هلته کوم ځای پاک وچې د قبرونو نښې پکې نه وي او د قبلې لور ته کوم قبر نه وي، نو د جنازې لمونځ او نور څه هلته صحیح دي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۹۹، ردالمحتار ج ۱ ص ۳۵۳، باب تکره صلوة في الکیفیة په حواله)

## په ناپاکه ځمکه قبر جوړول

سوال: که په کوم ځای کې له ډیره وخته نجاست پروت وي، خاوره پروا چوله شي بیا مړی پکې ښخول صحیح دي او کنه؟

ځواب: په حدیث شریف کې راځي: ځمکه په وچیدلو سره پاکیږي. نو چې په دې کډي کې خاوره واچوي او هغه ځمکه وچه شي، هغه پاکه ده، مړی پکې ښخول صحیح دي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۸۲)

## که په ودانۍ کې قبر راوخوت

مسئله: په یوه ودانۍ کې د تادا او کندلو په مهال جسد راووت، هغه به هلته ږدي ځکه جسد چې چیري وي له هغه ځایه یې بې ضرروته نقل کول جایز نه دي. خو که یې هلته ایښودل ستونزمن وي او د بې عزتي ویره یې وي. مثلاً په دې تاداب کې جسد وي او یا بله مجبوري وي نو بیا جواز لري چې بل ځای په کومه هدیره کې یې پرته د جنازې له لمانځه



دفن کړي. تر څو د مړي احترام و ساتل شي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۰۹، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۴۰ په حواله غنیة ص ۵۶۳، امداد الاحکام ج ۱ ص ۸۱۹)

## روافض چیري ښخ کړای شي؟

مسئله: که له روافضو څخه څوک ومري، که یې خپل خلک موجود وي هغه به یې تجهیز او تکفین وکړي خو که هغوی څوک نه وو، نو نورو مسلمانانو ته لازمه ده تر څو یې تجهیز او تکفین وکړي. که هغه رافضي داسې څوک وي چې د کفر حکم وربانـدې جاري شوی نه وي، نو تجهیز او تکفین دې د مسلمانانو په څیر وشي، د جنازې لمونځ دې اداء کړي او ښخ دې کړي. خو که وربانـدې د کفر حکم جاري کیدلای شوای، نو په تجهیز او تکفین کې دې د سنت مراعات نه کیږي او د جنازې لمونځ دې هم نه کوي، همسې دې دفن کړي.

(کفایت المفتي ج ۴ ص ۱۹۴)

مسئله: هغه څوک چې شیخینو (ابوبکر او عمر (رضی الله عنهما)) ته بد رد وایي ډیر فقهایې کافر ګڼي او هغه روافض چې د عایشې (رضی الله عنها) په افک قایل دي یا د ابوبکر (رضی الله عنه) له صحابي والي منکر وي یا علی (رضی الله عنه) ته د الوهیت قایل وي، هغه په اتفاق سره کافر دي او په مختار شامي کې دي چې د داسې روافضو په تکفین او تجهیز کې مرسته کول، د هغوی د جنازې لمونځ کول، د مسلمانانو په هدیره کې یې ښخول صحیح نه دي او له هغوی سره متارکه او مقاطعه باید وسې تر څو و پوهیږي او اهل سنت و مني.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۰۳، ردالمحتار ج ۱ ص ۳۹۸، فصل المحرمات په حواله، فقه اکبر ص ۱۸۸)

## دجذامي تدفين

مسئله :دمسلمان جذامي جسد دمسلمانانو پههديره کې دفن کړای شي. په هغه مالګه اچول خاوري کول یا سوځول شرعي کار نه دی ،بلکې لکه نورمسلمانان مړي داسې دې دفن کړای شي. (فتاوی دارالعلوم ج۵ ص ۴۰۴ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۷ په حواله، مشکوة ج ۱ ص ۱۴۹)

(دمسلمان جسد سوځول جواز نلري، دايومشرکانه توهم لمانځنه ده نوځکه یې خښول په کار دي.) (محمدرفعت قاسمي)

مسئله :که څوک په بحري بېړۍ کې ومري او ساحل ته تر رسېدلو دمړي دخرابېدلو وېره نه وه ،نو په وچه کې دې خښ کړای شي او کنه په اوبو کې دې وغورځول شي او داچولو په مهال که دروند وزن ورپوري وتړل شي ښه ده ،ترڅو داوبو تل ته لاړ شي. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۴۰ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳٦ ، په حواله مشکوة ج ۱ ص ۸٦۱)

## دلادرکه خښول

مسئله : که څوک په کوهي یا بل ځای کې ولوېږي یا تر ودانۍ لاندې شي او ومري ، دهغه دجسد را ایستل شونی نه وي،نو دمجبورۍ له امله یې غسل او کفن معاف دي. چیري چې جسد دی هغه ځای یې قبر وبلل شي او د جنازې لمونځ یې وشي. داتر هغه چې جسد خراب شوی نه وي. (شامي ج ۱ ص ۸۲۷)

مسئله : که څوک په سمندرکې لاهو شي او ومري او دجسد [illegible] معلوم نه وي . یا په بل ډول مړ شي او جسد یې ورک



شي ، په داسې حال کې یې غسل ، کفن دجنازې لمونځ او خښول هر څه معاف دي، دجنازې لمونځ دې په غیاب کې نه کوي، ځکه دجنازې دلمانځه لپاره یو شرط دادی چې مړی به حاضر وي . (شامي ج ۱ ص ۸۲۷)

## په زاړه قبر کې نوی مړی ایښودل

مسئله :که قبر دومره زوړ وي چې مړی بالکل پکې خاوري شوی وي ، په داسې قبر کې دوهم مړی خښول صحیح دي او له ضرورت پرته داسې کول منع دي خو دضرورت په مهال جواز لري .که په قبر کې زاړه هډوکي موجود وي، هغه دې بېل په قبر کې کېښېښودل شي. خو که مړی په قبر کې بالکل سالم موجود وي هم دضرورت په مهال په داسې قبر کې بل مړی ورسره ایښودل جواز لري، خو د زاړه او نوي مړي ترمنځ دې دخاوري حائل جوړ شي.

مسئله :که کله په یوه وخت کې په یوه قبر کې دڅو مړو دایښودلو اړتیا پیدا شي ، که ټول سړي وي او یا ټولې ښځې وي نو تر ټولو لومړی دې افضل په لحد کې کېښېږدي او بیا نور. که مړي ګډ وو ، نو لومړی دې سړي بیا هلکان ، بیا خنثی او وروسته ښځې کېښېښودلي شي او ددوی ترمنځ دې خاوري واچوله شي. (فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۱۱ ، دالتبیین هندیه ج ۱ ص ۱۰۷ په حواله، احسن التفاوی ج ۴ ص ۲۴۰ ، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۷۸ ، درمختار ج ۱ ص ۸۳۵)

مسئله :په یوه قبر کې تر یوه زیات مړي خښول که ضرورت نه وي، مکروه دي . خو که ضرورت وي بیا کېدلای شي په یوه

قبرکې تر یوه زیات مړي خښ کړای شي.

(کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۶۷ – علم الفقه ج ۲ ص ۲۰۸)

### دقبر خاوره دتبرک لپاره وړل

پوښتنه: که څوک دښو خلکو له قبرڅخه دتبرک لپاره خاوره یوسي او له ځان سره يې کښېږدي ایا جواز لري؟ که جواز نلري نو هغه خاوره چیرې واچوي؟

ځواب: له وقف شوي هدیرې څخه خاوره وړل ناجایزه ده، ځکه هغه وقف ده. له خپل مملوکې هدیرې څخه خاوره وړل جواز لري، ځکه دی يې مالک دی. خو دتبرک لپاره دکوم ښه سړي دقبر خاوره وړل او له ځان سره ایښودل یو محدث (نوی پیدا شوی) کار دی.

مړي چې کله خاوري شو دقبرځای که يې خپل ملکیت وي کرل يې صحیح دی، نو له دي څخه معلومیږي چې دقبرد خاوري کوم ځانګړی درناوی په شریعت کې نشته، مړی احترام لري نو ددي خاوري اچول په عامه لاره کې هم صحیح دي. (فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۵۳)

مسئله: عهدنامه لیکل یا قرآن کریم یا بل څه په قبرکې ایښودل جواز نلري، دافقهاوو منع کړې دي، ځکه ویره ده چې په نجاست ناپاک شي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۲۷ او ج ۵ ص ۴۴۱ تفصیل یې په شامي کې ده، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۹)

### په قبرکې دننه پخې خښتې، ډبره یا بل شي لګول

مسئله: په قبرکې دننه دمړي خوا وشا له ضرورت پرته د



دلرګې تختې، ډبرې، سیمنټ او پنبه په بټۍ کې پخې شوې خښتې لګول تحریمي مکروه دي.

مسئله: که ځمکه ډیره نرمه وه، رطوبت پکې وا و دقبر دلویدلو ویره وه، نو دا ړتیا په اندازه داشیان پکې لګول جواز لري. که په لرګیو، ډبرو یا سمټو دا اړتیا پوره کیدله بیا دي په بټۍ کې له پخو خښتو او اوسپنې څخه ډډه وشي، ځکه هلته پکې داوراثر دی خو په ډبره او سمټې خښتوکې دا بدوالی نشته.

دداسې ضرورت په مهال دلرګیو او اوسپنې په تابوت کې مړي خښول جواز لري خو دا وسپنې له تابوت څخه دې تر ممکن حده ډډه وشي، په هرډول تابوت کې غوره دا ده چې دلاندې پکې خاوره واچوله شي او دمړي دواړو لوروته خامې خښتې کښېښودلې شي. دننه لوري يې په ختې ولوښل شي.

۳- دمړي پاسنې لورته پرته له ضرورته لرګي، ډبره یا دسمټ ګل (اخیړ) یا اوسپنه لګول جایز دي.

۴- له پاسه قبرته دختو اخیړ ورکول صحیح دي خو ډډه ورڅخه کول غوره دي.

۵- په قبر دپاسه دسمټو پلستر یا کوم ډول خښتې لګول جواز نلري. پلستر او ودانۍ وربانديې جوړول په صراحت سره په لحدیث کې منع شوي دي. خښته لګول هم په ودانۍ کې

شامل دي ، دا دزینت په نیت حرام دي او د استحکام لپاره تحریمي مکروه دي چې په ګناه کې له حرام سره برابر دي. خو د درندګانو له ویرې خامې خښتې لګول پروا نلري.

(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۸۹ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۹ په حواله ، فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۹۲)

مسئله :دقبر لحد خام پرېښودل او خوا و شا پخول هم صحیح نه دي . (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۵۴)

## له زاړه قبر څخه خښتې را ایستل

مسئله :په دې کې شک نشته چې له اړتیا پرته په قبر کې د ننه پخې خښتې او ډبرې لګول صحیح نه دي . په پاسنۍ برخه کې يې هم اجازه نشته . خو د خښتو او ډبرو درا ایستلو لپاره قبر پرانستل هم صحیح نه دي. لکه دا چې کوم مړی خښ شي او بیا معلومه شي چې غسل نه دی ورکړل شوی . نو تر خاورو اچولو وروسته د مړي د غسل لپاره قبر پرانستل صحیح نه دي. خو که په قبر د پاسه ډبرې یا خښتې لګیدلي وي نو هغه لرې کولای شي.په دې شرط چې وارثان يې راضي وي ، دفتنې کومه ویره نه وي او خلک خبر وي چې پوخ قبر جوړول صحیح نه دي. نو بیا پاسنۍ برخه چې ډبرې او خښتې پکې لګیدلي وي هغه لرې او قبر له خاورو سره سم شي. که وارثان خوښ وو داسې کیدلای شي.(فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۱۱۴)

مسئله :هدیره د مسلمانانو لپاره وقف ده . د هدیرې د کټې لپاره هلته دکانونه جوړول شرعاً جواز نلري . په هدیره کې د مړي خښول اصل مقصود دي.(فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۱۸۰)



## قبر څرنګه جوړ شي ؟

مسئله : قبرونه په دوه ډوله دي : بغلي او صندوقي . بغلي قبر سنت دی . د دې شکل او صورت دا دی چې د پوره قبر تر کندلو وروسته د قبلې لور ته تر دیوال لاندې يې وکندي او دومره ځای جوړ کړي چې میت په اسانۍ پکې کښېښودل شي. بیا يې مخته خامې خښتې داسې کیږدي چې هغه ځای بند شي کوم چاک او چوله پاته نشي . که خامې خښتې نه وي نو بانسونه دې کښېږدي که هغه هم نه وي بیا دې د لرګي تختې کښېږدي . بیا د ونو پاڼې او خزلې یا د خرماوو څانګې د خونې د چت په څېر ورباندې واچوي تر څو خاورې ترې تیرې نشي. خو دا بغلي قبر په کلکه ځمکه کې جوړیدلای شي . که په نرمه ځمکه کې جوړ کړای شي نو ژر لوېږي . په دغسې ځمکه کې صندوقي قبرونه جوړوي . د هغه صورت دا دی چې د قبر تر کندلو وروسته ، د هغه په تل کې په اوږدوالي دویالي په څیر دومره ځمکه وکاږي او پاکه يې کړي چې مړی پکې ځملولای شي .په هغه د پاسه خامې خښتې ،بانس، د لرګې تختې که داشیان نه وو ، ډبرې ورباندې کښېږدي چې قبر مسقف د صندوق په څیر جوړ شي او دلاندې خاورې ورته توېې نشي . بیا د پاسه خاورې ورباندې واچوي او قبر ډک کړي.

مسئله : که مړی په قبر کې کښېښودل شي او له پوښ (چت) پرته ورباندې خاوره ولوېږي دا د سنت خلاف دی . دا د مړي بې

عزتـي هـم ده . (یعنـي اول دي تختـي او نورڅـه پـه لحد کښیښودل شي او بیا دي وربانديخاوري ولـویږي، ترڅوپه مړي باندي راساً خـاوره ونـه لـویږي). (فتاوی رحیمیه ج ۱ص ۲۸۳ ،عالمګیري ج ۱ص ۱۶۵ په حواله ،و فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۱۷۲)

مسئله : که دځمکې دنرموالي له امله دقبر دلویدلو ویره وه نو صندوق (میانه ګور) قبر جوړول جایز دي. دقبردخولي دپټولو لپاره که خامي خښتې، تختې یا نورڅه نه وو یا ضرورتاً دډبرې هم استعمالیدلای شي. ترڅو ځناوران قبرونه سپړي او مړي ته ونه رسیږي. خو ښه داده چې دډبري لاندي لوری هغه چې دمړي خواته وي په خټه ګل (اخیړ) شي ترڅو دمړي څلورو لورو ته خاوري معلومې شي .

(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۳۸۴ ، شامي ج ۱ص ۸۳۶)

مسئله : په نرمه او شګلنه ځمکه کې چې قبر دریدلای نشي په خامو خښتو دلحد سمول جواز لري .که دضرورت له امله دلحد هر لوري ته خښتې کښیښودلي شي، جواز لري ،آن مستحب دي. (فتاوی دارالعلوم ج ۱ص ۳۷۲)

مسئله :که دخپلې کورنۍ او خپلوانو قبرونه سره نژدي وي، کومه خبره پکې نشته . که ممکن وي نو داکار غوره او افضل دی. که بیل ، بیل وي پیژندل یې ستونزمن وي، یوځای سره ښه دي.(فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۹۵)

مسئله :قبر مربع جوړول مکروه دي ،مستحب دادی چې قبر ولاړوي، داوښ دکومې په څیر وي ، لوړوالی یې یوه لویشت



(۱۹ انچه =۲۲ سانتې) یا تردي څه زیات وي.

مسئله : تر یوه لویشت زیات قبر لوړول مکروه دي.

(علم الفقه ج ۲ ص ۲۰۱)

(له قبرڅخه په راکښلو شویو خاورو یې لوړول پروا نلري. خو وروسته نوره خاوره اچول او لوړول مقصد دي چې پرې لوړ نشي.)

**دقبر (لحد) کړی والی به څومره وي؟**

پوښتنه : داسې مشهور ده چې لحد به دومره لوړ وي چې کله ملایکې دسوال لپاره ورته راشي او مړی کښینوي ، سر یې پورته ونه لګیږي، داخبره کوم اصل هم لري ؟

ځواب : دقبرپاسنی برخه دسینې یا ټول بدن په اندازه لوړه وي، چیري چې مړی ږدې، هغه (لحد) دومره لوړ وي چې مړی پکې کښیږدي ،نو پاسنۍ تخته ورسره ونه لګیږي، که نژدي دوې لویشتې وي نو له مړي سره نه لګیږي. دمړي دخښولو په مهال نه دملایکو دراتلو لپاره دځای دپریښودلو ضرورت شته او نه دمړي دراکښینستلو ، که ملایکې ورته راځي هغه دناستې لپاره خپل ځای لري، دقبر خاوره دمړي لپاره داوبو په څیر نرمه وي.

مسئله : دقبر اوږدوالی او سور دومره وي چې هلته دمړي او دورکښینته کوونکي ځای پکې وي.

(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۰۵ ، طحطاوي ص ۳۳۳ په حواله ، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۸۷ ،کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۶۱)

مسئله :داهسې ناپوهي ده ،ملایکې مړي په قبرکې نه بلکې دبرزخ په عالم کې راکښینوي . دلحد اوشق کړی دومره لازم دی چې مړی پکې دسنت مطابق ستوني ستغ څملولای شي.

پورتنۍ برخه له جسم څخه بيله، خو ډيره ورته نږدې وي، تر څو له ځيرونکو حيواناتو څخه خوندي وي.

(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۴۲ ، امداد الاحکام ج ۱ ص ۸۳۹)

مسئله : دفقهاوو مطلب له نيم قامت څخه دټول قبر ګډوالى دى چي دايې لږه اندازه ده . تر دې زياته تريو قد پورې ښه ده او ګټه يې داده چي بدبوى يې پورته نشي اوله ځيرونکو حيواناتو ساتلى وي. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۳۴۳ او امداد الاحکام ج ۱ ص ۳۳۸)

## دقبر دلحد لوري

مسئله : مستحب داد ي چي لحد په قبر کې دقبلې لورته وي، خو که مړى دغفلت يا کوم عذر له امله دابل طرف ته کښيښودل شي او خاوري ورباندي ولويږي نو بيا دقبر سپړلو او دمړي سمولو ته اړتيا نشته.

(فتاوی محموديه ج ۱ ص ۴۲۷ ، عالمګيري ج ۱ ص ۱٦۴ په حواله)

مسئله : په قبر کې لحد کندل سنت دي ، که دلحد دکندلو په هکله کوم عذر و، بيا يې (ميانه ګور) شق کول لازم دي . له لحد يا شق پرته دمړي په جسم باندي دغسې خاوره اچول دسنت خلاف دي . (فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۳۸۹)

## که دقبر دکندلو په مهال هډوکي راوخيژي ؟

مسئله : که وړاندې لا پوهيږي چي دلته به هډوکي راخيژي هلته دي قبر نه کاږي. خو که وړاندي نه پوهيږي او دقبر د کندلو په مهال هډوکي راووزي. هغه دي يوه لورته کښيږدي دهغوى او مړي ترمنځ دي خاوره واچوي. (فتاوی محموديه ج ۷ ص ۲۴۷)



مسئله : که قبر کندل وخت غواړي او يا ځای کم وي نو په يوه قبره کې دڅو مړو ايښودل جواز لري خو لومړى دي داسي شخص کښيږدي چي بستر عالم يا باتقوى شخص وي ، وروسي دکمي درجي اشخاص کښيښودل شي.

(الجواب المتين ص ۳۳ -ميان صاحب)

## که دخښولو په مهال قبر ولويږي

پوښتنه : که مړی په قبر کې کيږدي ،تختې او نور څه ورکړي، دخاوري اچولو په مهال تختې کښته ولويږي، هغه را ايستل او سمول او يا بل قبر ته دمړی وړل جواز لري او که نه؟

ځواب : که تختې په خاوره کې پټې شوي وي نو بيايې راکښل جواز نلري. هغسې دي خاوره ورباندي واچوله شي. خو که دتختو ترپټيدلو وړاندي وي بيايې راپورته کول جايز دي ، که دا قبر دبيرته سمولو وړ نه وي نو دا اړتيا له مخې دي بل قبر جوړ کړل شي.

(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۰۳ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۷ په حواله ، فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۲۸۷)

## که زوړ قبر کښيني

پوښتنه : که زوړ قبر کښيني، ايا دهغه تختې را وايستلي شي او سمې شي او که بل قبر ته نقل شي؟

ځواب : په قبر دپاسه دي خاوره واچوله شي او سم کړای شي، قبر سپړل ،دلاندي تختې سمول يا مړی را ايستل او بل قبر ته وړل جواز نلري . (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۰۳ ، ردالمحتار په حواله ج ۱ ص ۱۳۹ ، فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۳۸٦)

مسئله :قبرونه چي ونړیږي خاوره وروباندي اچول جایز دي. خو دعاشورا یا بله ورځ ددې کار لپاره ځانګړي کول کوم اصل او دلیل نلري .(کفایت المفتي ج ۴ ص ۳۸)

(که اړتیا وه خاوره دي وروباندي واچوي . کومه ورځ دي ورته ځانګړي کوي.)

مسئله :په قبرباندي خاوره اچول صحیح دي قبر که په مملوکه ځمکه کې وي او که په وقف ځمکه کې، جواز شته.

(فتاوی محمودیه ج ۲ ص۲۹۶)

## که په قبر کې کوم سامان پاته سي ؟

مسئله : که دچا کوم سامان دمړي دخښولو په مهال په قبر کې پاته شي ،بیا کندل او پیسي یا بل څه را ایستل جواز لري.

(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۱۴ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۷ په حواله ،امدادالفتاوی ج ۱ ص ۷۳۴)

## په زاړه قبر خاوره اچول

مسئله :دقبرسپکاوی شرعاً منع دی نو ځکه په هغه کښیناستل، ګرځېدل او نجاست وروباندي اچول هرڅه ناجایز دي. کوم قبرچې خراب شوي وي نو په دې نیت چې له سپکوالي څخه ساتلی وي ، په هغه خاوره اچول صحیح دي.

(فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۳۳۳ ، دمجمع الانهر ج ۱ ص ۱۸۷ په حواله، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۸۴ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۲۷ ،دفن المیت)

## پوخ قبر جوړول

دقبرپوخ جوړول شرعاً اجازه نشته،منع دی. په حدیث شریف کې دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دپاخه قبر جوړولو ، وروباندي ودانۍ جوړولو او وروباندي کښیناستلو



ممانعت کړی دی.

له همدې امله فقهاوو په قبر کې دپخو خښتو له ایښودلو او څلورو خواوو ته پخې چوترې له جوړولو ، په قبر دپاسه له اور او په هغه له پاخه شوي څه څخه ممانعت کړی دی.

(ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۷)

نو له ضرورت پرته، دقبر لپاره ددیوالونو اړتیا نشته . په خام قبر کې دمړي ګټه ده ، په خام او غیر مشهور حالت کې قبر د الهي انوارو او رحمت ډیر مستحق دی. دا دزیارینو په زړونو اغیز کوي او مړینه یې یادیږي او دنړۍ دزوال نقشه یې سترګو ته دریږي. دزیارت القبور چې کوم مقصد دی، هغه تر لاسه کیږي. له مړي سره دمینې له امله دا ضروري نه ده چې په هغه ښکلی او پوخ قبر جوړ شي. صحابه رضی الله عنهم درسول الله صلی الله علیه وسلم ریښتوني مینه وال وو ، دهغه داوداسه اوبه به یې ځمکې ته نه پریښودلي ، په لاسونو او مخ اوسترګو به یې وهلي. له داسې مینې سره ،سره یې دخپل خورا ګران بادار قبر پوخ جوړ نکړ، خام یې پریښود. موږ ته هم دهغوی په لاره تلل لازم دي.

مسئله :که اړتیا محسوسه شوه چي دقبر نښان پاته شي ، کله ، کله دي وروباندي خاوره اچوله کیږي .دقبردنښې دپاته کیدلو او دا فکر چې له بې عزتي څخه ساتلي وي او دخلکو تر پښو لاندي نشي نو په هغه باندي یې نوم او دمړینې تاریخ

ليکل کيدلای شي (خو چې ځمکه وقف نه وي) په هرحال ضرورت په صورت کې که فقهاوو استثنا يکې راوستلي ده خو بيا هم غوره داده چې څه ورباندي ونه ليکل شي.

په شرعي حکم کې ډير مصلحتونه او حکمتونه وي. که پوخ قبر منع نه واى، نن به هر لور ته قبرونه وو دودانيو او کښت کروندې لپاره به هم ځمکه نه موندله کيدله. (فتاوی رحيميه ج۱ ص ۳۸۵ دشامي ج۱ص۸۳۹ په حواله، مشکوة شريف ج۱ ص۱۴۸، نور الايضاح ص۱۴۰ دتفصيل لپاره وګورئ فتاوی رحيميه ج۸ ص۱۹۸، فتاوی دار العلوم ج۵ ص۳۷۷، کتاب الفقه ج۱ ص۸۶۴)

مسئله: کوم ديني مشر هم دقبر پخول خوښ کړي نه دي. که کوم بل شخص دکوم ديني مشر قبر پوخ کړ، نو په هم هغه ديني مشرې مواخذه نشته. (فتاوی دار العلوم ج ۵ ص ۴۵۵)

(که دکوم ديني مشر دا باور وي چې زما تر مړينې وروسته، زما بې فکره خير غوښتونکي زما قبر ته غير شرعي بڼه ورکوي، نو په مړه کيدونکي باندي له غيرشرعي امورو څخه دده ممانعت وصيت لازم دی. که په ژوند کې وصيت ونکړي نو مواخذه به شي. والله اعلم. محمد رفعت قاسمي.)

## په قبر باندي ديوال راګرځول

پوښتنه: په قبر باندي خو اوشا څلور پنځه فوټه لوړ ديوال له چت څخه پرته دخوندې ساتلو لپاره جواز لري او که نه؟ چوتره جوړول او ورباندي قبر جوړول چې دباران دسيلاب له اوبو څخه خوندي وي او دزايرينو دناستې لپاره ځای پاک وي جواز لري؟

ځواب: دښــکلا په نيت دقبر دپاسه هر ډول ودانۍ جوړول



حرام دي. داستحکام په نيت تحريمي مکروه ده. په ګناه کې تحريمي مکروه له حرامو سره برابر دي.

خو اوشا ديوال که څه هم يوه خبنته وي، دهغه دودانۍ شکل ځرګندوي او چوتره بلکې تر اصل خاورو نوره زياته خاوره اچول هم په ودانۍ کې راځي. دهديري دخونديتوب لپاره يې خو اوشا ديـوال جايز دی. لـه دې سره په قبر باندي ديـوال راګرځول دګنبدې دجوړولـو رواج سبب دی او پـه داسې ديوال په وقف ځمکه باندي دنورو حق دضايع کيدلو ګناه هم ده. احاطه که هرڅومره وړه هم وي، بيخونه يې لاندي ځمکه له ضرورت پرته نيسي چې دنورو حق تلفي يکې ښکاره ده.

دزايرينـو لپـاره دپـاک ځـای پـه غـرض چـوتره جـوړول کـوم شرعي مقصد نه دی. که دسيل (اوبو) خطره وي نو دقبر دننه داسې سمتي خبنتې چې په اورپخې شوي نه وي لګول، چاک او چولې يې په سمتو پوښل کيدلای شي. په دې ډول قبر له کنبيناستلو څخه هم ساتلي وي او دښې دپاته کيدلو لپاره يې دسرلور ته کومه ډېره ايښودل کافي دي. (خو چې ځمکه خپل ملکيت وي.)

که دسيلاب له امله يې خاوره لري شي نو په ځای يې نوره خاوره اچول او قبر سمول صحيح دي، که بيا هم قبر تـه دخاورې اچولو اړتيا وه دچوترې په ځای دي دقبر څلورو لورو ته ددالان په ډول خاوره واچوله شي او هغه ځای دي دا اړتيا په

اندازه لوړ شي. دقبر ساتل تر هغه مهاله ضروري دي ترڅو دمړي جسد خاوري کيږي، تر هغه وروسته يې د حفاظت ضرورت نشته .دقبر دکلکتيا ډير اهتمام کول صحيح نه دي.
(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۹۰ ،بحرالرائق ج ۲ ص ۱۹۴ په حواله ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۸، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۹۵)

مسئله :دهديرې دا حاطې په جوړولو کې دسود او زکوة دپیسو استعمال جايز نه دی. داځای دحلالې ګټې پیسې غواړي. دزکات دپيسو په مصرف يې زکات نه اداء کيږي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۱۰۸)

## په قبر دنوم ډبره اېښودل

مسئله :خام قبرجوړول سنت دی.پوخ قبر جوړول دشرعي خلاف او ګناه ده. (فتاوی محموديه ج ۲ ص ۳۷۶ ، طحطاوي ص ۳۳۵)

مسئله :په قبر باندي دمرحوم په نوم ډبره اېښودل مرحوم ته هيڅ ګټه نه لري. مرحوم ته اجر او ثواب په دې رسيږي چې له خپل حيثيت سره سم له بې وزلو او مسکينانو سره مرسته وشي. يادکوم صدقه جاريه کار لپاره لګښت وکړي، دا دمرحوم په هکله غوره ده.(فتاوی رحيميه ج ٦ ص ۳۰۸)

مسئله :دقبر پخول یا وربانديې ودانۍ جوړول منع دي، جواز نلري .ليکنه هم وربانديې مکروه ده (چې هديره وقف وي). جابر رضی الله عنه وايي :دقبر له پخولو ، په قبر له ليکلو او دقبر تر پښو لاندې کولو څخه رسول الله صلى الله عليه وسلم منع کړي ده .(ترمذي شريف ، جواب المتين مياصاحب ص ۵۳ ، امداد الاحکام ج ۱ ص ۸۱۳ ،احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۹۹ ،کتاب الفقه ج ۱ ص ۸٦۲)



## ددفن مسئلې

مسئله :دشپې له خوابې شکه او شبهې دمړي خښول جايز دي.
(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۲۲ ،ترمذي ج ۱ ص ۱۷۱ په حواله ، ابن ماجه ص ۱۰۹)

مسئله :قبرته دمړي دکښته کولو دعاء :بسم الله وعلى ملة رسول الله .(ترمذي شريف ج ۱ ص ۲۰۲)

مسئله : دمړي دخښولو په مهال دکیوړه څانګې(یوه خوشبويه ونه ده) يا دبتۍ لګول پرقبريا تري بيل ناروا او بدعت دی. په شريعت کې يې کوم ثبوت نشته .(فتاوی محموديه ج ۲ ص ۴۹۸، طحطاوي ص ۳۳۳ په حواله ، احسن الفتاوی ص ۳۷۱)

مسئله : له جنازې سره نامحرم هم ځي نو له همدې امله د خښولو په مهال دقبر دپاسه پرده کيږي.په قبرکې دا ايښودلو په مهال دي دميرمنې جسد نامحرم ونه ويني.(فتاوی محموديه ج ۲ ص ۴۴۷)

مسئله :دميرمنې دخښولو په مهال دپردې حکم دټولو ښځو لپاره دی ،يوازې دپرده کوونکي لپاره نه دی.(دټولو لپاره يو ډول دی).
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۱۲ ،ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳ په حواله ،علم الفقه ج ۲ ص ۲۰۰)

مسئله :دميرمنې دجنازې دلمانځه په مهال پرده جوړول نه ثابت دی او نه هم ضروري.(کفايت المفتي ج ۴ ص ۷۷)

مسئله :دميرمنې په جنازه يعني کټ باندې څه شی اچول ضروري دي او دخښولو په مهال هم وربانديې پرده کول ضرور دي ان تر دې چې په لحد کې کښيښودل شي ځکه ښځه له سره تر پښو دپردې شي دي ،دخښولو په مهال خو يې کوم ځای لوڅيږي، نو که کوم ځای لوڅيږي پرده کول ورته واجب دي.
(دلته ددیوبند په هديره کې پرده کيږي چې قبرته يې محرم کښته

کوي هم دمحرم سترګي يې په کوم ځای ونه لګيږي او غير محرم قبر ته دکښته کولو په مهال ييليږي . محمد رفعت قاسمي)

مسئله :دسړي د دفن په وخت کې په قبر پرده کول نه ده لازمه خو که عذر وي مثلاً باران وي يا واوره وي يا ډيره تودوخه وي بيا جايز دی.(علم الفقه ج ۲ ص ۲۰۰)

## په قبرکې دمړي په ښي اړخ اينبودل

سوال :په قبرکې مړی ستوني ستغ کښيښود شي يوازې مخ يې قبلي ته وي . يا يې په ښي اړخ کښيږدي چي ټول مخ يې قبلي ته شي .کوم صورت يې غوره دی؟

ځواب :په اړخ دي شي او مخ دي قبلي ته شي يوازې د مخ په اړولو دي کفايت نه کوي.(فتاوی محموديه ج۲ص۴۲۲،احسن الفتاوی ج۴ص۲۳۵،هنديه ج۱ ص۱۶۶،غنية المستملي ج۱ص۵۵۳،مراقي الفلاح ص۳۳۴، فتح القدير ج۱ص۴۷۱بحر الرائق ص۱۹۴ ،فتاوی البدايع ج۱ ص۳۱۹)

(سنت طريقه داده چې مړی په ښې اړخ مخ په قبله کښيښودل شي ، دشا لورته ورته خاوره واچوله شي ترڅو مړی نه واوړي يعني پوره مخ يې قبلي ته وي ، داغوره او له پورته يادوو شويو حوالو څخه ثابت دي – محمد رفعت قاسمي)

مسئله :په قبرکې په قصد سره دمړي مخ له قبلي ګرځول د معصيت سبب دی خو که سهواً وشي پروا نلري، تر خاورو اچولو وړاندي که معلومه شوه چې مخ يې د قبلي لوري ته نه دی ، نو قبر دي وسپړي .يعني خښتې، بانس ، تختې او نور څه دي لرې کړي، مخ دي دقبلي لورته کړي .ترخاوره اچولو



وروسته د قبر شيړل ګناه ده.(فتاوی رحيميه ج ۸ ص ۸۵ ، شامي ج ۱ ص ۸۳۷ ، دفن الميت په حواله – علم الفقه ج ۲ ص ۲۰۸)

مسئله : مړی شمالاً او جنوباً خښول چي مخ يې قبلي ته وي يو مسنون عمل دی . ځکه په حديث شريف کې دي چې کعبه معظمه په ژوند کې هم قبله ده او په مړينه هم . دا تفاولا (نيک فالي) ده ترڅو دا ګمان وړباندي وشي چې په ايمان او اسلام سره وفات شوی دی. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۱۴ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۷ په حواله او ابوداود)

مسئله :په قبرکې مړی ستوني ستغ څملول او مخ يې قبلي ته کول هم جايز دي او په اړخ اينبودل ،شاته يې خاوره اچول هم جايز دي. دا صورت يې ترستوني ستغ غوره او افضل دی.
(کفايت المفتي ج ۴ ص ۳۷)

مسئله :دمسلمان مړي مخ به په قبرکې دقبلي لورته وي، په کوموهيوادونو کې چي قبله ختيځ لورته وي دمړي سر د جنوب او پښې دشمال لورته مخ په قبله خښيږي.
(کفايت المفتي ج ۴ ص ۵۱)

## په قبرکې دمړي داينبودلو مسنونه طريقه

مسئله :په قبرکې دمړي اينبودل دقبلي په لور مسنون دي. په ښي اړخ يې اينبودل مخ يې دقبلي لورته کول سنت دی، د قبلي لورته يې پښې کول ناجايز دي. دځينو فقهاوو په نظر په قبرکې دمړي مخ قبلي ته کول واجب دي. (فتاوی رحيميه ج ۱ ص ۳۷۰ ،شامي ج ۱ ص ۸۳۷ په حواله ، هدايه ج ۱ ص ۱۶۲)

مسئله :کله چې قبر تيار شي مړی دقبلي له لوري قبر ته

کښته شي ، ددې صورت دادی چې جنازه له قبر سره قبلي لور ته کښېږدي ، کښته کوونکی د قبلي لورته مخ کړي او مړی راپورته کړي ،قبرته يې کښته کړي. قبرته د کښته کوونکو شمیر طاق یا جفت مسنون نه دی. رسول الله صلی الله علیه وسلم قبرته ځلورو کسانو کښته کړ.

مسئله :په قبر کې داېښودلو په مهال بسم الله وعلی ملة رسول الله ویل، مستحب دي.

مسئله :په قبر کې تراېښودلو وروسته د کفن هغه غوټې پرانستلي کیږي ،کومي چې د کفن د خلاصيدلو له ویري ورکړل شوي وي.(علم الفقه ج ۲ ص ۲۲۰)

**تر ښخولو وروسته به هرڅوک څومره خاوره اچوي ؟**

مسئله :چې مړی په قبر کې کښېښودل شي، په تختو او نور څه بوریا اچول او خاوره تویول جایز دي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۰۴ ، شامي ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۷)

مسئله : دمړي تر ښخولو وروسته، په قبر باندي هرڅوک څومره خاوره واچوي ؟ په دې کې کوم حد او اندازه نشته. غوره داده چې دري ، دري موټه خاوره قبرته واچوي دا کار ټولو حاضرینو ته مستحب دی. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۸۸ ، ج ۵ ص ۴۱۴ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۸ په حواله)

هر سړی دې د دواړو لاسو ډک موټ خاوره (یوه لپه) دري ځله په قبر اچوي.

مسئله : دعالمګیري په باب الصلوة الجـنایز ج ۱ ص ۱۶۳



کي دي چې مستحب داده تر څو هرڅوک چې په ښخولو کي حاضر دي ، دري لپي خاوره په قبر واچوي ،په اول ځل ووايي: مِنْهَا خَلَقْنَاكُمْ.

له دوهم ځل اچولو سره ووايي : وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ .

له دريم موټ (لپې) سره ووايي: وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَى.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۱۴)

مسئله :دقبر تر بشپړولو وروسته، که څوک راشي خاوري اچولو ته يې اړتیا نشته . (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۸۴ ، امداد الاحکام ج ۱ ص ۸۳۷)

**تر ښخولو وروسته دبقرة دسورت پیل او پای لوستل**

مسئله : دمړي تر ښخولو وروسته، یوسړی دبقرة دسورة پیل له الم څخه تر مفلحـــون پوري د سر لورته او بل سړی دبقرې د سورة پای له امن الرسول تر ختم پوري د پښولو رته په ټیټ غږ ووايي،داله حدیث څخه ثابت دي. په قبرباندي اذان کول ثابت نه دي.(فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۲۳۱)

مسئله : تر ښخولو وروسته، دسورة بقره پیل او پای لوستل له حدیث څخه ثابت دي ، دشهادت په ګوته په قبر کې خاوره اېښودل ثابت نه دي ، خو دمشایخو معمول دی. نو په دواړو صورتونو کي کومه خبره نشته .

دمړي تر ښخولو وروسته، یوه لحظه ځنډ کول، په ذکر او تسبیح مشغولیدل،دمغفرت دعا کول،کومه خبره نه ده، بلکې لاغوره دي تر څو يې په سوال او جواب کې سهولت راشي،ځینو

صحابه وو خو به لا ددي کار وصيت کاوو. (فتاوی محموديه ج ۲ ص ۲۷۹، ابوداود ج ۲ ص ۴۵۹ به حواله، شامي ج ۱ ص ۶۰۱، کفايت المفتي ج ۴ ص ۵۲، علم الفقه ج ۲ ص ۲۰۱)

مسئله: تر خښولو وورسته څو قدمه تلل او دعا کول، د مړي په کورکې راټوليدل او دعا کول د سنت خلاف يو عادت دی.
(فتاوی رحيميه ج ۲ ص ۱۹۴، شامي ج ۱ ص ۸۴۲)

## تر خښولو وروسته لاسونه اوچتول او دعا کول

مسئله: دثواب غوښتلو لپاره په قبرلاسونه پورته کول ضروري نه دي، دلاسونو له پورته کولو پرته هم ثواب رسيږي. له دي څخه چاته دا اشتباه هم پيدا کيږي چې ګواکې دقبر له مړي څخه څه شي غواړي. نوښه داده ترڅو لاسونه هسک نشي. که پورته کيږي نومخ پر قبله دي ودريږي، دا اشتباه به هم ختمه شي.

(فتاوی محموديه ج ۷ ص ۲۲۱ - امداد الاحکام ج ۱ ص ۸۳۷)

مسئله: دجنازي تر لمانځه وروسته دي مړي ته دعا نه کيږي ځکه، دجنازي په لمانځه کې دزياتوالي اشتباه پيدا کيږي.

له صحيح او معتمد طريقې څخه ثابت دي چې د مړي تر خښولو وروسته چې په څو مره وخت کې يو اوښ حلاليږي او غوښه يې ويشله کيږي، هغو مره وخت له قبر سره په تلاوت او استغفار مشغوليدل مستحب دي، له دي څخه مړي ته اُنس او ګټه پيدا کيږي. دا صحيح او ثابته طريقه پريښودل د مغفرت ارزښناک وخت په دنيايې خبرو تيرول، هسې دنوم لپاره دعا کول او تلل د سنت خلاف او وقت ضايع کول دي.

(فتاوی رحيميه ج ۱ ص ۳۵۹، مرقاة المفاتيح ج ۲ ص ۳۱۹ په حواله)



رسول الله صلی الله عليه وسلم چې به دچا له خښولو فارغ شو، هلته به دريده او ويل به يې: خپل وروړ ته له الله تعالی څخه مغفرت وغواړئ، هغه ته دثابت قدمي دعا وکړئ، اوس ور څخه پوښتنه کيږي. (فتاوی رحيميه ج ۵ ص ۱۲۶، ابوداود شريف ج ۱ ص ۹۵، مشکوة شريف ج ۱ ص ۱۴۹، فتاوی دارالعلم ج ۵ ص ۴۰۱ مشکوة ج ۱ ص ۲۶)

مسئله: مړی خښول او يا قدمونه وروسته اخستل او دعا کول بد عادت او مذموم او ناجايز دی. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۸۱)

(پورته ياده شوي سنت طريقه دي نه پريښودله کيږي.)

مسئله: له عبدالله بن عمر رضی الله عنهما څخه روايت دی چې دقبر دسرلورته دبقره پيل تر مفلحون پوري او دپښو لورته ئې دبقري وروستني اياتونه لوستل مستحب دي. په قبر دګوتي ايښودو يا ورته اشاره کول کوم ثبوت نلري، که يې څوک ونه کړي نو دعتاب وړ نه ده او تارک يې ګنهګار نه دی.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۹۱، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۸، اوج ۱ ص ۸۴۲ په حواله)

مسئله: د مړي تر خښولو وروسته دبقري د سورة پيل او پای پټ لوستل کيږي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۰۵ او امدادالفتاوی ج ۱ ص ۸۲۵)

## په قبر باندي اوبه پاشل

پوښتنه: کله چې مړی خښ شي بيا په قبر اوبه پاشي يا چې کله څوک فاتحه لولي نو ضرور اوبه پاشي، ايا دا صحيح ده؟
ځواب: دقبرخاوري دکلکولو لپاره ورباندي اوبه پاشل يو مندوب عمل دی، هغه ضروري ګڼل يا يې دثواب مستقل کار بلل بدعت او ګناه ده. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۲۴)

مسئله :په دي فکرچي دقبر خاوره کلکه اوقبر ساتلي وي تر خښولو وروسته اوبه ورباندي پاشل جايز بلکي مستحب دي. له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه ثابت دي. دسرله لوري يي وپاشي ،ترپښو يې ورسوي اوختم يي کړي. که دقبر خاوره تویږي، قبرسمول او بيا اوبه اچول پروا نلري، خو هره پنجشنبه يا جمعه داوبو پاشلو اهتمام کول کوم ثبوت نلري.
(فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۱۷۷)

## له قبر سره په اجوره قرآن کريم لوستل

پوښتنه :ځيني ځايونه دادستور دی چي دمړي ترخښولو وروسته څو ورځي په ځانګړي اهتمام ، مړي ته په اجرت قرآن ويل کيږي ،داشرعاً څنګه دي؟

ځواب : ناوراده ، لوستونکي او چي څوک يې مزودري ورکوي دواړه ګنهګار دي . دا اجوره حرامه ده ،بيرته ورکول يي ضرور دي.(فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۲۴۶ ، علم الفقه ج ۲ ص ۲۱۴)

مسئله :په راجح قول دامنع نه ده چي له اجوري پرته له قبر سره قرآن کريم تلاوت کيږي بلکي صحيح ده . دناظري او حفظ پکي تفصيل نشته .خوځيني ځايونه يي ضروري ګڼي داجوازنلري اودتارک ملامتول يي سخت منع دي .
(فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۲۴۵ ،احسن الفتاوی ج ۴ ص ۳۷۵)

مسئله : مړي ته دعاکول صحيح دی، دعا دي داسي کيږي چي که يي څوک ويني داسي ګمان ونکړي چي ګواکې له قبر څخه څه شي غواړي.(فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۲۳۴ ،احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۸۶)



## په قبر لاس پورته کول او دعا کول

مسئله :دمړي لپاره استغفار ويل، لاس پورته کول اودعا کول په هديره کي جايز دي، له لاس پورته کولو پرته هم دعا کول صحيح دي. خو دا چي خلک قبرونو ته ځي اوله هغوی څخه خپل مرادونه غواړي چي دا حرام او شرک دي ، نو له همدي امله دي لاس نه پورته کيږي. دا اشتباه اودهغه عمل تائيد به نه کيږي.(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۹۴، فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۱۰۸)

مسئله : دعا دلاس له پورته کولو پرته کيدلای شي او په لاس پورته کولو هم کيږي . رسول الله صلى الله عليه وسلم به دمړي ترخښولو وروسته مخ په قبله ودريد او په پورته شويو لاسونو به يي دعا کوله .

که لاسونه پورته شي او دعا وکړي، درسول الله صلى الله عليه وسلم ،پيروي به شوي وي ،خو مخ دي دقبرلورته نه کوي بلکي دقبلي لورته دي ګرځوي.(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۲۰۶ ، فتح الباري ج ۱۱ ص ۱۲۲ په حواله ، احسن الفتاوی ج ۱ ص ۳۵۲)

## پر قبر اذان کول

پوښتنه : ترتدفين وورسته په قبرباندي اذان کول څرنګه دي؟ داعقيده ده چي اذان مړي له شيطاني شرارت څخه ساتي؟

مسئله :رسول الله صلى الله عليه وسلم مړي ته دمغفرت ، دقبرله عذاب اوشيطاني شرارت څخه دساتلو لپاره دجنازي لمونځ کاوو او په قبرکي دمړي دايښودلو په مهال به يي ويل:

بسم الله وعلى ملة رسول الله . دخاوري اچولو په مهال به يي دري لپي خاوري ورباندي واچولي. په لومړی ځل به يي ويل: مِنْهَا خَلَقْنَاكُمْ. په دوهم ځل: وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ او په دريم وار به يي ويل: وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَى.

دهمدي ويلو لاربنوونه به يي كوله. ترخښولو وروسته به يې دسر لورته دبقري دسورة پيل او دپښو لورته دبقري وروستني اياتونه لوستل او تر ډيرو دتلاوت او نورڅه ويلو او دالله په دربار كې په عاجزي سره مړي ته ددعا كولو ثبوت هم شته. (مشكوة شريف ج ١ ص ١٤٨)

كه داسي وخت دااذان اړتيا واى، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم به امركړى واى او ترڅان تيرو صحابه وو به ضرور هغه عملي كاوو.

درسول الله صلى الله عليه وسلم په مباركه زمانه كي او دهغه تروفات وروسته، دراشدينو خلفاوو په دوره كې، په زركونو صحابه او تابعين وفات شول خو دچا په قبر اذان شوي نه دى، نه يي په دي عمل كړى دى. په مسنونه طريقه عمل كولو كي زموږ نجات او ژغورنه ده. له هغې څخه خلاف كول دلاري دوركولو سبب دی

نو هغه څه [illegible]

په دين ك[illegible]



له همدي كبله داخترونو دلمانځه او خطبي لپاره اذان او دجماعت لپاره اقامت نشته، ځكه درسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه كې په دين كي نه وو. همداسي په قبر باندي اذان كول په دين كې شامل نه دي، بالكل بدعت دي. ځكه له سنت څخه ثابت نه دي. (فتح القدير ج٢ ص١٠٢، بحرالرائق ج٢ ص١٩٦، عالمگيري ص١٦٦. تفصيل په فتاوى رحيميه ج١ ص٣٦٥ كې وګورئ.)

**مړی بل ځای ته نقل كول**

پوښتنه: مړی چي چيري ومري دوهم ښارته په منتقل كولو كې يي څه تحقيق دی؟

ځواب: بل ښارته دمړي وړل تحريمي مكروه ده، بل ځای ته يې په وړلو كې دخښولو ځنډ او دمړي دخراييدلو ويره وي، نور دامفاسد هم ورسره موندل كيږي:

١- هغه لازمي بلل كيدل. ٢- د ډير لګښت او دزياتو ستونزو زغمل.

٣- دا لازم بلل چي په پلرنۍ هديره كي دفن شي او په دي باندي ټينګار دا عقيده ثابتوي چي مړي له يوه او بل سره ملاقات كوي. حال دا چي دا غلطه خبره ده.

٤- دجنازي په انتقال كي دجنازي دلمانځه دتكرار احتمال [illegible]يږي او دا ناجايز ده.

(احسن الفتاوى ج ٤ ص ٢٠٩، طحطاوي ص ٣٣٧ په حواله، بحر ج٢ ص١٩٥)

مسئله: مستحب دا ده چي ميت داسي ځاى خښ كړاى شي چي هلته مړشوي وي. ترخښولو وړاندي كه له يوه ښار څخه

بل ښارته وړل کیږي څه خبره پکې نــــشته ،خو چي د جسد د
خرابیدلو ویره نه وي.

مسئله : ترخښولو وروسته دمړي ایستل ناروا دي، پرته له
هغه صورته چي په داسي ځمکه کې خښ شوی وي چي په
ناروا توګه هغه ځمکه غصب شوي وي یا ترخښولو وروسته
چا په شفعه خپله کړي وي.(کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۶۵، کفایت المفتي ج ۴
ص ۵۰، علم الفقه ج ۲ ص ۲۰۸)

## په امانت ډول خښول او بیا نقل کول

ځیني ځایونه چي چیري ځوک مړ شي په تابوت یا بل څه
کې یي امانت خښوي، بیا یې وروسته تابوت راباسي، خپلي
سیمي ته یي وړي او هلته یي خښوي ،خو ترخښولو وروسته
که امانت خښ وي یا دغسي دوباره یې را ایستل جواز نلري.
امانت خښول هم شرعي اصول ندي. (عزیز الفتاوی ج ۱ ص ۲۴۲)

مسئله :په امانت خښولو کې دا خیال وي چي څومره وخت
ځمکي ته سپارل شوي دي تر هغه وخته مړي نه خرابیږي. په
شریعت کې د دي کوم اصل نشته او داسي کول جواز نلري.
ځوک چي په داسي عقیدې سره دا کار کوي ، ګنهګاریږي.
ځکه ترخښولو وروسته شرعاً د مړي را ایستل ناروا دي او بل
ځای یي خښول سم نه دي، دا حکم عام دی.

داسي چي امانت خښیږي یا امانت نه وي، خو امانت خښول
لـه شریعت څخه ثابت نـه دي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۰۳، و ج ۵
ص ۴۰۸، ردالمحتار باب صلوة الجنایز ج ۱ ص ۸۳۷ په حواله)



## قبرسپړل او مړی را ایستل

مسئله :ترڅوپوري چي دا ګمان وي چي د مړي کوم اندام له
خرابیدلو او اوبوی کولو څخه خوندي نه دي، نو دقبر سپړل
حرام دي. خو داځو خبري وتلي دي : یو دا چي که مړی په نیول
شوي ځمکه کي کښیږدي او مالک یې دقیمت له اخستلو
څخه انکار وکړي یا په غصب شوي ځمکه کښې خښ شي او
مالک یي پکې خښول نه غواړي. یا دا چي له مړي سره څه مال
په قصد یا هیره سره خښ کړای شي. که هغه مال د مړي وي یا د
بل چا، که مال ډیروي یا لږ، یعني که فقط یو درهم هم وي، په
دي صورت کې قبرسپړل او مال را اخستل جوازلري، که جسد
خراب شوي وي او که نه وي.(کتاب الفقه ج ۱ ص ۲۶۶ علم الفقه ج ۲ ص ۲۰۷)

## د مړي تر خښولو وروسته یې بیا بل ځای ته وړل

پوښتنه :که د مړي ترخښولو وروسته یې دانتقال دا صورت
چي د قبر او لحد د سپړلو په ځای ټول قبر یوړل شي، څلور
خواوي یې دوه ، دوه نیم ګزه وخیزي دیوې ستري ونې په څیر
قبر او لحد ټول پورته کړای سي.

پوښتنه داده چي په دي صورت کې به هم هغه حکم وي کوم
چي د قبر د سپړلو او د مړي د را ایستلو دی.

ځواب : حامداً او مصلیاً : اصل خبره داده، انسان چي په
کوم کلي او ښار کي ومري ،په هغه ښار یا کلي کې دي خښ
کړل شي: که هغه وصیت کړي وي چي ما فــلانی ځای خښ

کړئ، داسې کول ضروري نه ده. شرعاً دا وصیت باطل دی. (شامي ج ۱ ص ۶۰۲)

پاته شوه دا خبره چې دهغه په قبر تیریږي وایې که زما وس وای دلته مې نه خښولې بلکې چیرې چې مړ شوی وای هلته به مې خښ کړای وای. په دې مسئله کې دومره تنګي هم نشته. امام محمد رحمه الله تر یو دوه میله لرې د خښولو دا امکان خبره کړې ده. (شامي ج ۱ ص ۶۰۲)

خو تر خښولو وروسته یې دبیا وړلو اجازه ورکړې نه ده.

طحطاوي تر خښولو وروسته دانتقال درې صورتونه لیکلي دي:

یو داچې که مړی په پردی ځمکه کې له اجازې پرته دفن کړل شوی وي، دا ځمکه غصب ده او مالک په هیڅ ډول د مړي په دلته پاته کیدلو خوښ نه وي، بلکې دهغه په ایستلو ټینګار کوي نو په داسې حالت کې دي بل قبر ته نقل کړای شي. دا صورت په اتفاق سره جواز لري.

دوهم صورت یې دا دی چې هسې د وهمي هدیرې ته وړل یې موخه وي، که دا د مړي دعظمت یا محبت له امله وي یا د مړي غوښتنه او وصیت په خاطر، دا صورت په اتفاق سره ناروا دی.

دریم صورت دا دی چې: د مړي په قبر داوبو راتلل زیات شي او مړي ورڅخه خوندي نه وي، په دې صورت کې ځیني علماء وایې چې دانتقال اجازه یې شته، خو ځیني یې منع وایي. دتاویل چې دوه، دوه نیم ګزه ځمکه وخیژي او یوړل شي، داکار نه ورکوي، ځکه اصل مقصد خو د جسد انتقال



دی، څه شي چې ورسره وړل کیږي، هغه د مړي تابع دی، اصل مقصود نه دی، دې ته هم د مړي انتقال وایې او د خاورې انتقال نه بلل کیږي. (فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۲۰۴، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۷۴ او ص ۳۸۰، غنیة ص ۵۶۳، ردالمحتار ص ۸۴۰)

## که مړی یووړل شي لګښت یې د چا په غاړه دی

مسئله: د مړي دانتقال لګښت د دفن په مصارفو کې نه راځي په ترکه کې نه راځي که دبالغ وارثانو په خوښه مړی منتقل شي یا وروسته ورباندې راضي شي دهغوی له برخې دي مصرف ورکړل شي، دورو ارثانو له برخې دي نه ورکول کیږي. (فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۳۶۴)

## په تریکټور یا بل څه هدیره پاکول

پوښتنه: دلته یوه پخوانۍ وقف شوې هدیره ده، له څو کلونو راپه دې خوا پکې مړي نه خښیږي، ځای، ځای پکې کهې دي. د ځمکې دهموارولو او پاکولو لپاره تر دریو فوټو د ځمکې کندل شرعاً څرنګه دي؟ ایا داکار په ترکټور یا بلډوزر یا بل شي کیدلای شي کنه؟

ځواب: د ځمکې دسمولو لپاره دې داسې لاره غوره شي چې د مړو احترام وساتل شي، دقبرونو بې احترامي کول، ورباندې ګرځیدل او کښیناستل جواز نلري، دا خبره له حدیث څخه ثابته ده. په اسلام کې چې د مړو او قبرونو څومره درناوی دی هغه له احادیثو څخه معلومیدلای شي. په بلډوزر یا ترکټور د ځمکې سمول د مړو ډیر سپکاوی او توهین دی. په قبرونو له

تیریدلو او کښیناستلو څخه ممانعت شوی دی نو د ترکتور د ګرځولو به څرنګه اجازه وي ؟

داچي هديره پخوانۍ ده نو د ډيرو قبرونو نښې به پاته نه وي دا خيال کول چي قبرونه به نه وي، کیدلای شي هلته قبرونه وي نو د ترکتور اراده مه کوئ. دوړو ماشومانو قبرونه ډیر کډي نه وي، دقبرونو دسپړلو امکان ډير دی ، دا اراده دي پريښودله شي او دهديري دپاکولو دي بله لاره غوره شي .

(فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۱۸۲ ، دمشکوة شریف ج ۱ ص ۱۴۸ په حواله)

## په هديره کې دکښيناستلو لپاره چوکۍ جوړول

پوښتنه : دلته دزړو کسانو لپاره په هديره کې چوکۍ ږدي ترڅو وربانـدي کښـيني ، پـه هـديره کـې چـوکۍ ايښـودل کیدلای شي کنه ؟

ځـواب : کـه سـپين ږيـرو تـه تکليـف وي، دامقصد څرګنديدلای شي، خو ورو ، ورو لـه دي څخـه غلطـه پايله راوزي ، بي خبره خلک له هديري څخه دتفريح ځای جوړوي هلته به ناست وي او په بي کاره خبرو اترو به مشغول وي، ستاسو چي کوم نيک مقصد وي هغه به پاته وي نو په هديره کې دي په زړه او ساده طريقه کښيني چوکي يا بل څه دي نه ږدي .که سپين ږيري په تکليف وي په ځمکه کښيناستلای

(... ج ۸ ص ۱۷۱)

... ی دی دتفريح ځای او باغ نه دی ... ې وشي، که خلکو ته دزيارت لپاره



په تلو ، راتلو کې ستونزه وه ، قبرونه دي پريږدي خوا وشا دي خالي ځايونو ته ځي هغه دي پاکوي او هلته په ځمکه کښيناستلای شي . محمد رفعت قاسمي)

مسئله :په هديره کې دجارو او صفاکولو لپاره دښځو مقررول صحيح نه دي .(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۵۷۹ )

(ځکه دفتنې ويره ده نو ښځې دي دزيارتونو دصفايي او څارنې لپاره نه مقررېږي. محمد رفعت قاسمي)

مسئله :دهديري په خدمت کې دي داسي کسان لګيا وي چي دقبرونو په ادب او احترام باندي پوهيږي ،ددي لپاره تر څو شوني وي مسلمان شخص ورته دچوپړ لپاره درول لازم دي. که مسلمان شخص ونه موندل شي، بيا خو مجبوري ده .

(کفايت المفتي ج ۷ ص ۱۳۷)

## دهديري دګټې لپاره ونې ايښودل

پوښتنه : دهديري دعايد دزياتوالي لپاره په هديره کې ميوه لرونکي ونې ږدي، څه حکم يې دی ؟ او په دي باندي ډير لګښت هم کيږي ،څه موده وروسته عايد تري ترلاسه کيږي؟

ځواب : په هديره کې داسي ځای چي فارغ وي او اصل مقصد ته چې دمړو خښول دي زيان ونه رسيږي، ونې ايښودل جواز لري، ددي ونو خرڅول هم جايز دی او دميوې بيه دي دهديري په کار لګيږي، دجواز لپاره يې دا شرط هم دی چې دونو ساتلو ، دميوو توييولو او دټولولو په مهال په قبرونو ګرځيدل او هغه تر پښو لاندي کول نه وي. دونو په ايښودلو کي

يي که دکتې تمه وي دهديري پيسې لګول جايز دي.
(کفايت المفتي ج ۴ ص ۱۲۱)

مسئله: دهديرې دونو دميوې خوړل په دې وجه چې هغه دقبرونو ده، پروا نلري خو که هديره وقف وي، نو دهغې په اړه چې ثرنګه شرط يا تعامل دی هغسې دې وشي. که دخرڅولو شرط و، بې بيې دې نه خوري، که بې وزلوته وقف و، شتمن خلک دې نه خوري. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۱۲، فتاوی عالمګيري ج ۱ ص ۱۵۶)

## دهديرې دونو حکم

مسئله: دهديرې ونې که تر هديرې وړاندې پکې وې او ځمکه دچا مملوکه وه او بيا يې هديرې ته وقف کړه، ونې دده دي چې هرڅه ورباندې کوي. که ځمکه دچا ملکيت نه وي ونې دې هغسې پکې پاتې شي، لکه دهديرې تر جوړولو وړاندې چې وې. (کفايت المفتي ج ۴ ص ۱۱٦)

مسئله: دهديرې ځمکه که دچا په ملکيت کې وه، دا ونې که يې ايښې وي او که پخوا په خپله شنې شوې وي، دمالک دي که يې هديرې ته زيان رسيده مالک ته يې وهل جوازلري.

خو که په ملکيت کې نه وي، وقف وي او ونې دځمکې دوقف په حالت کې راشنې شوې وي، نو دمقبرې اهل يې په تصرف کې اجازه لري. ځکه هغه ونې هم دوقف په حکم کې دي، اختيار يې له قاضي يا متولي سره ده. که چېرې قاضي نه وي نو هلته دهديرې اهل يې په تصرف کې واک لري. (کفايت المفتي ج ۴ ص ۱۱۵، هنديه ج ۲ ص ۴۵۵)

(که وغواړي ودې پلورې، دمقبرې په کارکې يې لګولای شي)



## په قبر دپاسه کرونده جوړول

پوښتنه: دزيد په باغ کې دچا قبرؤ. هغه يې په يوې کولو وران ويجاړ او بې نښې کړ. هلته يې دانې وکرلې، دلته له دانو څخه دراټوکيدلو او دقبرو دورک کولو حکم څه دی؟

ځواب: که قبر دومره زوړ وي چې مړی پکې خاورې شوی وي، هلته دقلبه (يوې) کولو څه خبره نشته، بلکې هغه کښت او کرونده صحيح ده. (خو چې ځمکه يې خپله وي) ياکه چا دزيد له اجازې پرته خپل مړی پکې خښ کړی وي، بيا هم زيد ته جايز ده چې هغه داځای وکري. که دزيد خپل مړی وي او يا دزيد په اجازه پکې خښ شوی وي، نو دزيد لپاره تر هغه چې دامړی خاورې شوی نه وي دکرلو جواز نشته، ترڅو هلته په غله دانو کې خرابې رانشي. له دې څخه دقبربې نښانه کولو حکم هم معلوم شو. (فتاوی محموديه ج ۷ ص ۲۲۱)

مسئله: په موقوفه هديره کې کرونده کول، قبرونه هوارول، ځمکه يې په کرايه ورکول او نورڅه جايز نه دي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۷۹، ردالمحتار ص ۸۴۰)

مسئله: داچې هديرې ته داور وړلو ممانعت دی نو په قبرونو دپاسه به دچو وښو دسوزولو ثرنګه اجازه وي. دپاکولو لپاره دې بله طريقه وکارول شي. (فتاوی رحيميه ج ۵ ص ۱۰۳)

## دهديرې دونو دمصرف ځای کوم دی؟

پوښتنه: په يوه احاطه هديره کې چې په مابين کې يې يو وړوکی مسجد هم دی، هديره خورا زړه ده، څلورو خواوو ته

چې کوم تملیکي ځمکې راځي ، هغه یې هم خرڅي کړې دي.
که دهدیرې ونې څوک ووهي او خپله ګټه ترې واخلي ، د
مسجد مصارف په مرسته او چنده پوره کړي حکم یې څه دی؟
ځواب :که هغه هدیره وقف وي، لکه څرنګه چې عادت او
عرف دی ، نو هیچاته دونو دوهلو او په خپله ښه کولو جواز
نشته. بلکې دوقف په ځایونو یې لګول واجب دي او له
هدیرې څخه شنه ونه له ضرورت پرته وهل جواز نلري. خو
وچې ونې دي ووهي او دوقف په ځایونو کې دي مصرف
کړي. که وقف کوونکی په مسجد کې دلګولو اجازه ورکړې
هم صحیح ده، که چا خپل ملکیت خرڅ کړی وي، په دغسې
حال کې هم هغه وهل او خپل کارورباندې کول جواز نلري. که
هدیره وقف نه وي بلکې دچا ملک وي نو بیا وچې ونې وهل
او په خپل کار کول ورته جایز دي.
(فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۲۳۹ ، دعالمګیري ج ۱ ص ۲۴۴ په حواله)

مسئله :دهدیرې دوښو دغوځولو ممانعت له دې امله دی
چې دهغو له تسبیح څخه چې کومه ګټه مړو ته رسیږي له هغو
څخه بې برخې کیږي . خو له قبرونو خوا وشا که دلارې د
جوړولو یا پاکولو لپاره ریبل کیږي، پروا نلري. دوښو
دسمولو لپاره که کله دقبر دپاسه واخستل شي هم کومه خبره
پکې نشته اماله تسبیح څخه چې یې کومه ګټه مړو ته رسیږي
په ریبلو یې هغه بې برخې کیږي،ښه داده چې غــوځ نشي ،تر
وچیدلو وروسته یې غوځول صحیح دي. (فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۱۸۹)



## په هدیره کې څاروي څرول

مسئله :په هدیره کې څاروي دوښو دخوړلو لپاره څرول منع
دي. نجاست او ناپاکي یې په قبرونو پاته کیږي چې دادمړي
بې عزتي ده . (فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۴۰۹ ، بحر الرایق ج ۵ ص ۲۵۴ ، کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۲۵)

مسئله : دیوه وقف شتمني دبل وقف په هکله استعمالول
شرعاً جواز نلري . نو دهدیرې لپاره وقف به دمشاعرې او
نورو لپاره مصرف کول څرنګه جواز ولري ؟ یعني اجازه یې
نشته . (فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۱۸۹)

## دقبرونو زیارت کول

مسئله :دقبرونو زیارت کول یعني هلته تلل او هغه لیدل
مستحب دی چې په هره اونۍ کې لږ تر لږه یوځل ورشي . ښه
داده چې دا ورځ دجمعې وي ، دمیرمنو لپاره هم دقبرونو
زیارت جواز لري، خو په دې شرط چې ځواني نه وي او دغم
دتازه کولو لپاره زیارت ونکړي. بلکې دعبرت او برکت د
ترلاسه کولو لپاره وي.(علم الفقه ج ۲ ص ۲۱۴ ، احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۸۶
،ردالمحتار ج ۱ ص ۸۴۳ ،فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۴۴)

مسئله :دقبرونو زیارت کول دعبرت حاصلولو او دآخرت
دیادولو په غرض مستحب دی. په تیره دجمعې په ورځ او تر
هغې یوه ورځ وړاندې یا وروسته .زیارت کوونکي ته ښایي
چې دعا او زارۍ وکړي ، عبرت واخلي او دقرآن کریم تلاوت
وکړي چې له دې څخه مړي ته ګټه رسیږي.
(کفایت المفتي ج ۱ ص ۸۷۰)

چې کوم تملیکي ځمکې راځي ، هغه يې هم خرڅي کړي دي.
که دهديري ونې څوک ووهي او خپله ګټه ترې واخلي ، د مسجد مصارف په مرسته او چنده پوره کړي حکم يې څه دی؟
ځواب :که هغه هديره وقف وي، لکه څرنګه چې عادت او عرف دی ، نو هيچاته دونو دوهلو او په خپله ښه کولو جواز نشته . بلکې دوقف په ځايونو يې لګول واجب دي او له هديري څخه شنه ونه له ضرورت پرته وهل جواز نلري. خو وچې ونې دي ووهي او دوقف په ځايونو کې دي مصرف کړي. که وقف کوونکی په مسجد کې دلګولو اجازه ورکړي هم صحيح ده، که چا خپل ملکيت خرڅ کړی وي، په دغسي حال کې هم هغه وهل او خپل کار ورباندي کول جواز نلري .که هديره وقف نه وي بلکې دچا ملک وي نو بيا وچي ونې وهل او په خپل کار کول ورته جايز دی.
(فتاوی محموديه ج ۷ ص ۲۳۹ ، دعالمگيري ج ۱ ص ۲۴۴ په حواله)

مسئله :دهديري دوښو دغوڅولو ممانعت له دې امله دی چې دهغو له تسبيح څخه چې کومه ګټه مړو ته رسيږي له هغو څخه بې برخي کيږي . خو له قبرونو خوا وشا که دلاري د جوړولو يا پاکولو لپاره ريبل کيږي، پروا نلري. دوښو دسمولو لپاره که کله دقبر دپاسه واخستل شي هم کومه خبره پکې نشته اما له تسبيح څخه چې يې کومه ګټه مړو ته رسيږي په ريبلو يې هغه بې برخي کيږي،ښه داده چې غوڅ نشي ،تر وچيدلو وروسته يې غوڅول صحيح دي. (فتاوی رحيميه ج ۲ ص ۱۸۹)



## په هديره کې څاروي څرول

مسئله :په هديره کې څاروي دوښو دخوړلو لپاره څرول منع دي. نجاست او ناپاکي يې په قبرونو پاته کيږي چې دادمړي بې عزتي ده . (فتاوی رحيميه ج ۲ ص ۴۰۹ ، بحر الرايق ج ۵ ص ۲۵۴ ، کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۲۵)

مسئله : ديوه وقف شتمني دبل وقف په هکله استعمالول شرعاً جواز نلري . نو دهديرې لپاره وقف به دمشاعري او نورو لپاره مصرف کول څرنګه جواز ولري ؟ يعني اجازه يې نشته . (فتاوی رحيميه ج ۱ ص ۱۸۹)

## دقبرونو زيارت کول

مسئله :دقبرونو زيارت کول يعني هلته تلل او هغه ليدل مستحب دی چې په هره اونۍ کې لږ تر لږه يو ځل ورشي . ښه داده چې دا ورځ دجمعې وي ، دميرمنو لپاره هم دقبرونو زيارت جواز لري، خو په دې شرط چې ځواني نه وي او دغم دتازه کولو لپاره زيارت ونکړي. بلکې دعبرت او برکت د ترلاسه کولو لپاره وي.(علم الفقه ج ۲ ص ۲۱۴ ، احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۸۶ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۴۳ ،فتاوی محموديه ج ۲ ص ۴۴۴)

مسئله :دقبرونو زيارت کول دعبرت حاصلولو او دآخرت ديادولو په غرض مستحب دی. په تيره دجمعې په ورځ او تر هغې يوه ورځ وړاندې يا وروسته .زيارت کوونکي ته ښايي چې دعا او زارۍ وکړي ، عبرت واخلي او دقرآن کريم تلاوت وکړي چې له دې څخه مړي ته ګټه رسيږي.
(کفايت المفتي ج ۱ ص ۸۷۰)

## هديري ته دتللو مسنونه طريقه

مسئله :کله چې دقبر دزيارت کولو لپاره ځوک ځي ، قبرته په رسيدلو ووايې : السلام عليكم دارقوم مؤمنين وانا ان شاء الله بكم للاحقون ونسال الله لنا ولكم العافية .

مسئله : دزيارت کولو په مهال ودريږي او په ولاړه ، ولاړه څه لوستل او ثواب يې مړي ته ببښل ، هغه او ځان ته دعا کول مستحب دي. (علم الفقه ج ۲ ص ۲۱۵ –ترمذي ج ۱ ص ۲۰۳)

مسئله :په ولاړه دي فاتحه ولولي، که ځوک ډير پاته کيږي يا په ولاړه ستړی کيږي، کښيناستل هم صحيح دي. که په ژوندکې له مړي سره بې تکلفه اړيکې وي نو دواړه ډوله صحيح دي . (فتاوی محموديه ج ۲ ص ۴۰۵ ، دشامي ج ۱ ص ۵۴۳ په حواله، احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۱۲)

مسئله : داخلاص سورت يا نور څه ويل او ثواب يې ورته ببښل هم ښه دي.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۵۱)

## په قبر باندې دسلام ويلو څه ګټه ده؟

پوښتنه :دانسان تر مړينې وروسته دانسان روح جنت يا دوزخ ته ځي نو په هديره کې دسلام جواب له چا څخه پيدا کيږي؟

ځواب : دمړي دروح اړيکې له قبر سره پاته وي ، ددې لپاره چې السلام عليكم ويل کيږي تفصيل يې په کتاب الروح دابن قيم کې وګورئ . دمړي له لوري دسلام جواب ويل دحديثو له



صحاح کتابونو څخه ثابت نه دي خو په نورو کې شته . دصحاح کتابونو له روايتونو څخه ښکاري چې فقط دا السلام عليكم ويلو حکم دی. ددې وجه داده چې که څه هم مړی يې نه اوري او نه ځواب ورکولای شي. خو زيارت کوونکي ته دعبرت لپاره دا الفاظ مشروع شوي دي ، لکه چې انتم لنا سلف ونحن لكم خلف، څرګند دي. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۹۴)

## دقبر دزيارت کولو لوري

مسئله : که دمړی دسر لورته ودريږي نو مړي ته دستونزو سبب دی، دپښو لورته دې ودريږي او فاتحه دې دثواب دببښلو لپاره ووايي .(فتاوی محموديه ج ۲ ص ۲۲۷ ،دشامي ج ۱ ص ۹۴۲ په حواله)

## دناپاکۍ په حالت کې دقبرونو زيارت کول

مسئله :قبرته دپاکۍ په حالت کې ورتلل ښه دي ، ځکه هلته دقرآن کريم تلاوت هم مسنون دی . دقرآن تلاوت دناپاکۍ په حالت کې هم جواز لري. که قرآن کريم نه تلاوت کوي نو دجنابت په حالت کې هم ورتګ ګناه نه ده، خو خلاف يې افضل او غوره دي.(يعني په پاکۍ کې ورتلل ښه دي .)
(فتاوی محموديه ج ۲ ص ۲۶۴ دشامي بحث زيارت القبور ج ۱ ص ۹۴۲ په حواله)

## داختر په ورځ کې دقبرونو زيارت

مسئله :داختر ورځ دخوشحالۍ ورځ ده . ډير وخت په خوشحالۍ کې له آخرت څخه غفلت کيږي او دقبرونو په زيارت کولو اخرت ياديږئ. که ځوک داختر په ورځوکې د

قبرونو زیارت وکړي نبه دی کومه خبره پکې نشته .خو التزام
که څه هم عملي وي چې نور دا فکر وکړي چې لازمي دی بیا
صحیح نه دی.

که څوک دا خترپه ورځ دقبرونو زیارت ونکړي په هغه
ملامتي ویل صحیح نه ده، په دي کې احتیاط لازم دی.
(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۲۷۷)

مسئله: دشپې زیارت کیږي یا مړو ته څه ویل او ثواب یې
ورته بخښل صحیح دي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۵۳ – مشکوة ج ۱ ص ۱۵۴)

مسئله: دمور او پلار زیارت ته تلل که په خپل ملک کې وي
او که په بل ملک کې، دورځې له تعین پرته څه خبره نه ده،
ورتلای شي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۵۸)

## دمزاراتو دنذر حکم

پوښتنه: کومه ځمکه چې پاچهانو دپیرانو په نوم وقف کړي
وي، که دهغه عاید یې دلنګر لپاره جاري کړی وي نو خوړل
یې څرنګه دي؟ هغه چې پیرانو ته نذر شوي وي، دهغه خوړل
څرنګه دي؟ ایا میراث پکې جاري کیدلای شي؟

ځواب: که وقف کوونکی دوقف عاید لنګرته دجاري کولو
اجازه ورکړي وي نو مستحق ته یې خوړل جایز دي. که نذر
دپیرانو او مزارونو په نوم وي نو خوړل او نظریې جایزنه دي
او که دبیوزلو لپاره وي، نو هغوی ته یې خوړل جواز لري. که
هغه په شرعي ډول وقف شوي وي په میراث کې نه وړل کیږي،



بلکې واقف چې یې برخه څرنګه معلومه کړي ده هغسې دي
په مستحقینو ویشل کیږي. که منظم وقف نه وي بلکې دکوم
خاص شخص ملکیت وي نو په شرعي ډول میراث پکې جاري
کیږي. (فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۵۴ دطحطاوي ص ۴۰۳ په حواله)

مسئله: له زیارت سره نژدې که مسجد وي یا کومه کوټه، څه
خبره پکې نشته، که قبر دلمونځ کوونکي مخته نه وي نو په
هدیره کې لمونځ کول پروا نلري. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۵۵)

## مزارته پیسې ورکول څرنګه دي؟

پوښتنه: زه چې په کومه لاره موټر ګرځوم، په هغې لاره یو
مزار دی، خلک پیسې راکوي چې زیارت ته یې ورکړم،
زیارت (مزار) ته دپیسو ورکړه څرنګه ده؟

ځواب: مزارته پیسې په دي نیت ورکول چې په بې وزلو به
یې صدقه کړي جواز لري. که دمزار نذرانه مقصد وي، بیا
ناجایزه او حرامه ده. دا خو داصولو خبره ده. خو نن سبا د
خلکو دحالاتو په لیدلو ویل کیږي چې دعوامو مقصد دوهم
دی نو ځکه ممنوع بلل کیږي. (آپ کې مسائل ج ۸ ص ۲۶۵)

مسئله: درسول الله صلی الله علیه وسلم دقبر دزیارت کولو
لپاره کومه ورځ مغلومه نه ده. دکال په جریان کې مینه وال
ورته په هره نیته راځي. داچې درسول الله صلی الله علیه وسلم
په مبارکه روضه عرس او غونډه نه کیږي نو دنورو دینې
مشرانو په مزارونو به څرنګه جایز وي؟ له همدې امله دینې

مشرانو ، محدثینو او فقهاوو په څرګندوو الفاظو دا رواجي عرسونه ناجایز بللي دي .(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۳۱۹)

## په قبر د څادر غوړول

پوښتنه :په قبر څادر غوړول څرنګه دي؟ چاویل چې په کعبه پوښ غوړېدلی دی نو پر قبرباندي يې اچول څه خبره ده؟

ځواب : دعایشې رضی الله عنها له روایت سوي حدیث څخه په دیوالونو باندي د څادر د ځوړند کولو ممانعت راغلی دی ، داله دي سره چې په ښکاره کومه بدي پکې نه وه، دشرک شبه یا بل څه پکې نه وه، نو په قبرونو باندي څادر غوړول دشرک د وهم او دغیر الله دتعظیم له امله په لومړۍ درجه ناجایز دي.

کعبې مبارکې ته خو په خپله رسول الله صلی الله علیه وسلم پوښ ورکړی و ، دهغې تعظیم کفر ته مفضي نه دی. ځکه یې هم په لمانځه کې استقبال ضروري دی خو قبرونو ته په مخ ګرځولو لمونځ مکروه ده.(احسن الفتاوی ج ۱ ص ۳۷۶)

مسئله : په قبر باندي دښکلا لپاره ګلان اچول ښه نه دي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۵۷ ، دعالمګیري ج ۱ ص ۳۶۳ باب السادس په حواله)

که دګلانو بیه مړي ته دثواب په نیت صدقه شي مړي ته یې ګټه رسیږي. رفعت قاسمي.

## په قبرباندي دڅراغ حکم

...ښتنه : په قبر باندي د څراغ ، ګرېتی ، لوبان یا نورو ... حکم څه دی؟



ځواب :بدعت او منع دی. دمړي لپاره خوشبويې په دري ختونو کې ثابت دي : یو دروح ختلو په مهال ، دوهم دغسل ورکولو او دریم دکفن ورکولو په مهال .

درسول الله صلی الله علیه وسلم دقول او فعل د پوهیدلو لپاره دصحابه وو تعامل کتل ضروري دي، دهغو کړه وړه درسول الله صلی الله علیه وسلم دقول او فعل تفسیر دی.

نن سبا چې ددي دومره اهتمام کیږي، هغه لازم بلل کیږي، نو په بدعت کې یې څه شک او شبهه نشته ځکه هم ناجایز دي په شریعت کې کوم ثبوت نلري.

(احسن الفتاوی ج ۱ ص ۳۷۴ ، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۱۵)

مسئله : دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم دمبارک لاس برکت دی ،بیا داچې دسترو ، سترو مشایخو او اولیاوو په مزارونو ګلان اچوي ، دهغوی په هکله دا عقیده هم مشکله ده چې دهغوی دعذاب تخفیف ته اړتیا ده . که کوم شتمن ومړي او ډیر حقوق یې په ذمه پاته وي ،دنصوصو په حکم دقبر دعذاب وړ دی نو دهغه په قبر دي ګلان نه ږدي .

(علم الفقه ج ۲ ص ۲۰۸ ، فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۳۸۲)

## داولیاوو له مزارونو څخه غوښتنه

سوال : ددیني مشرانو په دربارکې حاضریدل او داویل چې تاسي مستجاب الدعوات یاست، ماته دعا وکړئ چې الله تعالی مو فلانی وړاندیز پوره کړي ، په شریعت کې ددي څه اصل دی؟

ځواب : په دي هکله مشروع خبره داده چې دزيارت کولو په مهال، له سنت سره سم سلام وربانددي وو ايې او قبرونو ته د مغفرت دعا وکړي. که څه وو ايې ثواب يې دهغه روح ته وبښي . دا خورا ښه دي . که کومه غوښتنه کوي، له الله تعالی څخه دي کوي ، مثلاً داسي : ای الله ! د دي په برکت زما حاجت پوره کړي . مشرانو ته داسي ونه وايې چې تاسي دعا وکړئ ، يا وو ايې زما فلانی کار وکړئ ، دا ثابت نه دي او قرآني اياتونه په دي دلالت کوي . نو داسي هغه مخاطب کول چې تاسي دعا وکړئ ، نه ويل کيږي. بلکې له الله تعالی څخه هغوی ته دمغفرت دعا کيږي او د درجو دلوړتيا غوښتنه يې کيږي او که دهغوی په ذريعه دخپلو حاجتونو دپوره کيدلو دعا وشي هم څه خبره نه ده . په حصن حصين کې راغلي دي چې دصالحانو په واسطه دعا کول مستحب دي. چې الله تعالی دهغوی په برکت دعا قبوله کړي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۴۲ – ۴۴۳ . حصن حصين ص ۱۸)

مسئله :له مړي څخه په دي عقيده غوښتل چې ګواکې هغه متصرف في الامور دی (واک لري) لکه دعوامو عقيده چې ده ، دا صيحح نه ده بلکې په دې سره د کفر ويره ده.

که له الله تعالی څخه دهغه په واسطه ، دعا او غوښتنه وشي مثلاً وويل شي :يا الله ! زما داکار دفلانی ديني مشر په برکت ترسره کړي . جواز لري. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۲۴ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۱۷۵ باب الاعتکاف په حواله)



مسئله :قبرته سجده کول حرام دي عام او خاص و يو ته هم صحيح نه ده. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۵۲)

**ایاتر مړيني وروسته داولياوو فيوضات باقي پاته وي؟**

پوښتنه : داولياوو تصرف دهغوی فيوض او برکات تر مړينې وروسته يې هم پاته کيږي او که تر دي ظاهري مړينې وروسته ختميږي؟

ځواب : فيوض او برکات يې تر مړينې وروسته پاته وي. مثلاً دا چې له زيارت او نژديوالي څخه يې زايرينو ته برکات حاصليږي او په دوی هم درود او رحمت وي ، ترهغه چې اولياء دالهي رحمت مورد وي څوک چې يې زيارت کوي هغوی هم له خپلو مرتبو سره برابر له برکتونو څخه ګټه اخلي.

پاته شوه دا خبره چې هغوی تصرف کوي او کنه ؟ هغوی ته څه اختيار ور کړل شوی دی ، کنه ؟ په دي هکله سمه عقيده درلودل لازم دي.

په عالم کې له الله تعالی پرته څوک متصرف نشته ، دهغه وحده لاشريک، ذات له حکم او ارادي پرته يو ذره هم حرکت کولای نشي. دهغه په خدايي کې هيڅوک شريک نشته او هيچا ته د څه شي اختيار نشته.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۷۸)

**ایا دمړي روح کورته راځي ؟**

پوښتنه :دمړي روح کورته راځي او که نه ؟ که نه راځي نو په خوب کې ولي ليدله کيږي؟

ځواب: په خوب کې د چا روح لیدل دا معنی نلري چې د هغه روح کوزته راځي. په خوب کې لیدل د روحاني تعلق په سبب ده. له کور سره د هغې هیڅ اړیکې نشته. ډیر ژوندي خلک چې لري، لري هستوګنه لري په خوب کې لیدل کیږي. د خوب کیسه بیله ده، د شیانو څرګند تړون ورسره ضرور نه دی. :ارواحو نړۍ بیله ده. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۶۰، امدادالاحکام ج ۱ ص ۸۱۸)

مسئله: روح کورته نه راځي، د دې کوم ثبوت نشته، داسې خیال او عقیده مه لرئ. (فتاوی دارالعلوم ج۵ ص ۴۳۳)

مسئله: دا عقیده غلطه ده چې د پنجشنبې په ورځ روح د خپلو قریبانو کره راځي او د ثواب په هیله وي، د جمعې د لمانځه ترکولو وروسته ځي. د دې هیڅ حقیقت نشته. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص۴۶۹)

## د روح سرګرداني

د ځینو کسانو دا عقیده ده چې که څوک ځان وژنه وکړي، د هغه ورح ګمراه او لالهانده کیږي، په روحګانو کې ځای نشي موندلای. دا خبره بالکل غلطه ده، بې اصله ده، په شریعت کې هیڅ اصل نلري خو ځان وژنه یوه ستره ګناه ده.

مسئله: دنیا ته د مړو د روح د تلو راتلو فکر غلط دی. ځکه هغه چې نیک دي دنیا ته راتلل نه غواړي، هغه چې بد دي هغوی اجازه نلري.

مسئله: ځینې ناپوهان دا فکر کوي چې که کومه میرمن د ماشوم د زیږولو په مهال ومري ناپاکه ده. دا خبره بیخي غلطه ده بلکې په حدیث کې راځي چې دا میرمن شهیده ده.



مسئله: ځینې خلک دا باور لري چې د برات په شپه د مړو روح کورته راځي او ګوري چې زموږ لپاره څوک څه پخوي کنه، داسې عقیده باطله ده.

مسئله: د ځینو عوامو دا عقیده ده چې د هرې پنجشنبې ماښام د مړي روح خپل کورته راځي او ګوري چې څوک ورته ثواب ببښي. که څه ثواب و موندل شي خوښه، کنه ناهیلي بیرته ګرځي. دا خیال غلط دی، بده عقیده ده په شریعت کې کوم اصل نلري. (اغلاط العوام ص ۲۰، د زیات تفصیل لپاره زما کتاب مسایل شرک او بدعت وګورئ)

## ایا مړي، خپلوان پیژني؟

مسئله: تر مړینې وروسته د روح ملاقات ثابت دی، په یوه روایت کې دي، هغه خپلوان چې پخوا مړه شوي وي داسې ورته خوشحاله وي، لکه څوک چې له سفر څخه بیرته راشي. خپلوان ور څخه د نورو ژوندو خپلوانو د حال احوال پوښتنه کوي. د هغوی په ښو حالاتو خوشحاله کیږي او د مور او پلار په هکله، د ورو ماشومانو سعي او هڅه له حدیث څخه ثابته ده چې د هغوی د ښښنې لپاره یې کوي. (فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۲۴۰)

مسئله: مړ پیدا شوی ماشوم هم د والدینو شفاعت کوي. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۰۵)

## د مړي د کور غړو ته خواره استول

مسئله: په کوم کور کې چې څوک مړ شوي وي، د هغه کورته خواړه استول سنت دي. څوک چې د مړینې یا په بل مصیب کې

اخته وي، هغوی ته دي خپلوان يا همسايه خلک څه پاخه کړي او ورته دي ليږي. نور تکليفونه او دنوم لپاره کارونه يا په بدل کې کارونه لکه او س چې رواج دي، معيوب او منع دي. دمرستې په نيت دثواب لپاره خواړه ورته استول مناسب دي.

دا خواړه يوازې دهغو خلکو لپاره وي چې دمړي په کار يا غم کې لګيا وي. داسې نه چې ټول خپلوان يې خوري. داهم دناپوهۍ خبره ده چې وايي دمړي په کورکې تر دريو ورځو څه پخول جايز نه دي، يا بد دي او يا هم دوبال سبب دي.

درسول الله صلی الله عليه وسلم سکنی دکاکا زوی، جعفر رضی الله عنه په شام کې بيت المقدس ته نژدې شهيد شو. دهغه دشهادت خبر مدينې منورې ته دحي په ذريعه رسول الله صلی الله عليه وسلم ته را ورسيده او رسول الله صلی الله عليه وسلم خلکو ته خبر ورکړ چې دجعفر رضی الله عنه کورنۍ ته خواړه چمتو کړئ، ځکه هغوی ته چې خبر ورسيږي هغوی به مصروف کړي. (چې دجعفر رضی الله عنه دمرګ خبر راغله هغوی به په غم او تکليف کې وي دخوړلو څښلو انتظام به ونکړي).
(بخاري ج ۱ ص ۱۷۱، ابوداود او ترمذي، الجواب المتين ص ۵۴، کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۷۰)

مسئله: څوک چې ومري، دهغه خپلوانو او ګاونډيانو ته مستحب ده چې هغوی يې په دغې ورځ دخوړلو څښلو انتظام وکړي، دوی ورسره کښيني او ټينګار وکړي تر څو يې وخوري. دغم، تجهيز او تکفين له امله دخوړلو پخولو موقع ورته نه موندله کيږي. رسول الله صلی الله عليه وسلم هم ددې



امر کړی دی. (مشکوة ص ۱۵۱ - مرقات ج ۴ ص ۹۶)

نو په حديث دعمل کولو په نيت، دمړي خپلوانو ته مستحب ده تر څويې دکور لپاره دخوړو بندوبست وکړي. دا د اجر او ثواب کار او دمړي له کورنۍ سره دهمدردي څرګندونه ده. خو دا کار يوازې دالله تعالی درضا او په حديث باندي دعمل په نيت وي. يوازې درسم، نوم او ريا لپاره نه وي. دمحققينو په نزد ددې موده يوه ورځ او يوه شپه ده. (فتاوی رحيميه ج ۸ ص ۱۹۵، دشامي ج ۱ ص ۸۴۱ په حواله، غاية الاوطار ج ۱ ص ۴۲۲، احسن الفتاوی ج ۴، ص ۲۰۴، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۴۱)

مسئله: په شريعت کې يوازې دومره ثابت دي چې تر هغه وخت دمړي دکور دخوړو بندوبست وکړای شي چې دغم او تکليف زياتوالی دی. دهغوی تسلا وشي، هغوی ته خوړل څښل برابر شي، هغوی راوبولي يا يې هلته وروړي. خورا غوره داده چې دا خواړه برابرونکي په خپله هم ورسره په دې نيت شريک شي چې دهغوی تسلا وشي. تر دې زيات څه ثابت نه دي. بلکې دمړي خپلوانو ته دخوشحالي دورځې په څير ميلمستيا ورکول مکروه دي. په شامي کې راغلي چې که د دفن لپاره له لرې څوک راغلي وي يا دتسلا لپاره وي، هغوی ته په دې خوړو کې دګډون ځای شته، لاکن خپلوان چې له لرې، لرې راځي او دلته يې اړولې وي او څو ورځې پاته کيږي لکه څرنګه چې رواج دی او دخوشحالي دميلمستيا په دول ټوليږي دا هر څه مکروه او بدعت دی. (نظام الفتاوی ج ۱ ص ۱۴۷)

### دمړي کورنۍ ته ترڅو ورځو پورې خواړه واستول شي؟

پوښتنه: ایا دمړي کورنۍ ته تر دریو ورځو پورې خواړه استول مستحب دي که یوه دوه ورځې؟

ځواب: دمړي کورنۍ ته دا قاربو او ګاونډیانو لپاره یوه ورځ او شپه خواړه استول مستحب دي. تر یوې ورځې وروسته دخوړلو ښبلو شیان ورته استول مکروه دي، په دې رسم کې غیرعادي تکلیف او غلو سره، دابدوالی هم شته چې عوام یې شرعي حکم بولي او دا په شرعي حکم کې زیاتوالي او بدعت دی. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۰۴، ردالمحتارج ۱ ص ۸۴۱ په حواله، احسن الفتاوی ج ۱ ص ۳۵۸)

مسئله: دمړي کورنۍ ته چې کوم خواړه یې خپلوان استوي دمړي خپلوانو ته یې خوړل صحیح دي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۴۸، ردالمحتارج ۱ ص ۸۴۴ په حواله)

### دمړي خواړه څوک خوړلای شي؟

مسئله: کوم کسان چې دمړي په تجهیز او تکفین کې لګیا وي هغوی هم دا خواړه خوړلای شي. (معارج النبوة ج ۱ ص ۷۱۰)

مسئله: دمړي کورنۍ ته چې دمیلمستیا کوم رواج را پیدا شوی دی دا واجب الترک دی. یوازې دمړي دکورنۍ هغه خپلوان چې له لرې څخه راغلي دي، بیرته تللای نشي یا هغه کسان چې دمړي دکورنۍ دتسلا لپاره یې او سیدل ضرور دي. هغوی که دمړي دکور خواړه خوري خو خیر، نور ټول تعزیه ورکونکي دي خپلو، خپلو کورونو ته لاړ شي، نه دي



میلمستیا خوري او نه دي دمړي په کور کې اوسیږي.

مسئله: دمړي نژدې خپلوان دمړي کورنۍ ته که ورسره ورخواړه وراستوي مستحب دي. (کفایت المفتي ج ۴ ص ۱۰۹)

مسئله: مړي ښخوونکو ته دمړي دکورنۍ میلمستیا ورکول جایز نه دي. (کفایت المفتي ج ۴ ص ۱۰۷، عالمګیري ج ۱ ص ۱۷۸، مراقي الفلاح ج ۱ ص ۳۲۹)

مسئلة: دا هم صحیح نه دي چې مړی ښخ شي او ټول خلک دمړي کور ته راشي. کله چې له دفن څخه فارغ شي عام وګړي دې خپلو، خپلو کارونو ته لاړ شي. (کفایت المفتي ج ۴ ص ۳۳)

### دمړي خواړه ضروري ګڼل

پوښتنه: دمړي تر ښخولو وروسته خپلوان دمړي دوارثانو کور ته ورسره دخوړلو لپاره راځي، دا خبره ښه ده خو نور هم ډیر خلک په دې خوړو کې ګډون کوي، له دې امله هغه خواړه کمیږي، ایا دتسلا لپاره په خوړو کې شریک شي؟

ځواب: دا رواج ربښتیا هم ناجایز دی، ډیره بې غیرتي ده. په دې ګناه کې خوړونکي او خواړه ورکوونکي دواړه ګډ دي. نژدې خپلوان که دا رواج لازمي وګڼي او نه ګډون کوونکي بد وګڼي یا دا خواړه دمړي دکورنۍ له لوري وي، نو هغوی ته دا فعل هم ناجایز دی. (احسن الفتاوی ج ۱ ص ۳۸۱، دردالمحتارج ۱ ص ۸۴۲ په حواله)

### دمړي دخپلوانو له لوري میلمستیا

مسئله: یو رواج دا دی چې تر ښخولو وروسته دمړي د کورنۍ غړي دټولني خلکو ته دعوت ورکوي چې فلانۍ ورځ راشي او راسره میلمستیا وخورئ.

دایاد ولرئ چې دادعوت او دهغه منل دواړه منع دي.
هیڅکله هم جواز نلري له دي بد رواج څخه ځان ساتل لازم
دي. علامه شامي ددي دعوت په اړه لیکي: ددي په
حراموالي کې هیڅ شک نشته، دشوافعو او نورو هم ددي په
ناوړا والي کې اتفاق دی. (امداد الاحکام ج ۱ ص ۱۱۵)

(ځینې ځایونه ترښخولو سمدستي وروسته په هدیره کې
دمړي خپلوان اعلان کوي چې ټول خلک دي زما کورته راشي
او له موږ سره له ډوډۍ خوړلو پرته دي نه ځي. داطریقه هم
دشرعي خلافه ده، دعقل خلاف هم ده. ځکه په کوم کور کې
چې مړی شوی وي، هغوی په غم کې ډوب وي. له لوږې سره،
سره یې خوړلو ته رغبت نه وي او دی په منظم ډول دخوړلو
ددعوت اعلان کوي.

الله تعالی دي موږ ټولو ته په ژوند او مړینه کې دشریعت
موافق عمل کولو توفیق راکړي. - محمد رفعت قاسمي)

## دخوړو داستولو غلط رواج

مسئله: ځینې ځایونه دمړي دخپلوانو له لوري ورته خواړه
راځي، دا ښه خبره ده. بلکې مسنونه طریقه ده، خو په دې کې
ځینې خلک په ډول، ډول خرابیو کې اخته دي چې اصلاح یې
ضروري ده. مثلاً بعضي ځایونه دادل بدل په خیال وي. خواړه
داسي ورکول کیږي لکه ددوی په مړي چې هغوی ورکړي
وي. یا هم تر هغه په کمه اندازه.



که دنژدې خپلوانو په موجودیت کې لرې خپلوان خواړه
واستوي داعیب ګڼي. نژدې خپلوان که لاس تنګې هم وي
دنوم بدي له ویرې، له تکلیف سره لوړیه خواړه استول
ضروري ګڼي که څه هم ددي کار لپاره پور اخلي.
داسې رسمونه دشریعت خلاف دي، په خوړو استولو کې له
بې تکلیفي او سادګي څخه کار اخستل مناسب دي. ځینې
خلک لرې خپلوانو ته استول نه کوي. دا ټول امور داصلاح وړ
دي. (اصلاح الرسوم ص ۱۷۷، مولانا تهانوي رحمه الله)

## دمړي په کورکې خواړه خوړل

پوښتنه: اوریدل کیږي چې دمړي په کورکې ترڅه مهاله
مخله او دکور خلک دخوړو خوړل سم نه ګڼي، ددي شرعي
حکم څه دی؟

ځواب: ددي کوم ثبوت نشته، بلکې دمړو خپلوانو یعني
دهغه کور چې مړی پکې شوی له خوړو څخه شرعي پرهیز
نشته، داچې دغم له امله یې نه خوري بیله خبره ده.

نن سبا دا رواج جوړ شوی دی او اهتمام یې هم کیږي ترڅو
دمړي په کورکې وي له لوږې سره، سره دخوړو خوړل ګناه
ګڼي.

ددي رسم پرېښودل واجب دي، په تکلیف سره دي څه
خوري. په عزیزانو، خپلوانو او ګاونډیانو دالازم دي چې
دمړي په خپلوانو په ترغیب او تشویق سره څه و خوري.

(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۱۴)

## دمړي په کورکي د میرمنو غونډیدل

دمړي په کورکې کله میرمنې هم راغونډیږي. حال دا چې تر یوه وار تعزیې (فاتحې) وروسته بیا تعزیه مکروه ده. (دا دعوامو لپاره، خو اصو ته نه ده).

په ښکاره خو د میرمنو راتلل د صبر او تسلا لپاره وي خو هلته د تسلا یوه خبره هم نه کوي، بلکې غم یې زیاتوي او په ژړلو پیل کوي یا هلته کښیني، د دنیا خبرې پیل کړي او د مړي خپلوان تر نور بار او دباو لاندې کړي، ډیرې میرمنې خو لا داسې جامې اغوندي لکه په خوشحالۍ کې چې ګډون کوي. نور هم مفاسد او منکرات پکې لیدل کیږي چې ځان ساتل ورڅخه ضروري دي. (اصلاح الرسوم، ص ۱۷۴)

ډیر ځایونه خو میرمنې د ژړلو په حال کې بې پردې کیږي د پردې هیڅ خیال نکوي. ځینې ځایونه خو میرمنې د غم له زیاتوالي له نامحرمو خپلوانو لکه لیور، د کاکا زوی، د ماما او خاله زوی او نورو سره په نژدې نژدې کې ژاړي. دا هم حرام دي. ځکه د غم او درد په حالاتو کې خو د شریعت احکام نه ختمیږي. ځینې ځایونه خو د کور او خپلوانو میرمنې له کور څخه د جنازې د ایستلو په مهال ژاړي او ترکور بهر وزي. د غیر محرمو خلکو په وړاندې بې حجابه کیږي، دا ټولې ناروا دي. ځینې ځایونه راغلې میرمنې په قصدي ډول داسې خبرې کوي چې د کوروالو ژړا راسي او ځینې میرمنې خو هسې په تکلیف



ژاړي دا ټول غلط او منع دي، یعنې د شریعت خلاف دي. (اصلاح الرسوم)

ځینې ځایونه خو د نزع په مهال د دې په ځای چې کلمه او یاسین ولولي او مړي ته د نزع د سهولت او خاتمې د خیر دعا وکړي میرمنې ژړا پیل کړي، که ناروغ څه پوهیږي هغه ډیر پریشانه کیږي، د دې په ځای چې د نزع تکلیف یې کم شي هغه زیاتیږي. یاد ولرئ چې په زوره ژړل، غم کول او ګریبان څیرل ټول حرام او ګناه دي. که ژړا راتله له او از ایستلو پرته د اوښکو په راتلو څه پروا نلري. (اصلاح انقلاب امت ج ۱ ص ۲۳۳)

(د رسول الله صلی الله علیه وسلم زړه به له غم او تکلیف څخه غمجن کیده او په د غسې حالت کې به یې له سترګو څخه اوښکې هم راتلې، دا د انسانیت کمال دی چې له خوشحالۍ او د خوشحالۍ له خبرو ورته خوشحالي پیدا کیږي او د زحمت او غم له اسبابو څخه ورته غم او تکلیف پیدا کیږي، که د چا د غسې احساس او خیال نه وي د انمیګړتیا ده، کمال نه دی.)

## په مړي باندې ژړا کول

مسئله: په مړي باندې په لوړغږ ژړل او چیغې وهل حرام دي. له غږ پرته د اوښکو په بهیدلو ژړل په اتفاق سره مباح دي.

نوحه جواز نلري یعنې داسې چې د مړي نیکې بیانیږي او ژاړي، مخ توروي، مخ وهي، ګریبان څیري او نور ناروا دي. ځکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد دی: (څوک چې ځان په چاپیره وهي او ګریبان څیري هغه له موږ څخه نه دی.)

څرګنده ده چې د مړي د پاته کسانو له ژړا څخه چې یو حرام کار دی ، مړی په عذاب کیږي. هو ! که مړي د ژړلو وصیت کړي وي ( عذاب شته) . که مړي ته معلومیده چې دده خپلوان دده تر مړینې وروسته په غیر شرعي طریقه ژاړي او داګمان ولري چې که له منع کولو یې وصیت وکړي نو خلک منع کیږي او په وصیت یې عمل کوي، نو ورباندې واجب دی چې (له غیر شرعي) ژړلو څخه د منع کولو وصیت وکړي، که همداسې وصیت ونکړي نو ددوی په ژړا مړي ته تکلیف رسیږي.

(کتاب الفقه ج ۱ ص ۸٦۰)

(ترغسل ورکولو وروسته ،د میني له امله مړی ښکلول جواز لري. لکه رسول الله صلی الله علیه وسلم چې عثمان ابن مظعون رضی الله عنه ښکل کړ او ابوبکر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارک تندی تر مړینې وروسته ښکل کړ. محمد رفعت قاسمي)

مسئله : غم او درد بې اختیاره کار دی. شرعا پکې کوم حد او اندازه نشته . مخ نیوی یې هم نه کیږي .دا منع ده چې د غم لباس واغوندي ،دا خبره ثابته نه ده. (بیان یا نور څه کول او ژړل دا منع دي. ) (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۱۷)

(رسول الله صلی الله علیه وسلم تر ټولو راضي بقضاء الهي او حمد ویونکی و ، له دې سره ، سره یې د خپل زوی ابراهیم په مړینه د میني او شفقت د زیاتوالي له امله وژړل خو په دغه حالت کې یې هم زړه د الله تعالی له رضا او شکر څخه ډک ؤ او ژبه یې په ذکر



او حمد مشغوله وه . د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد دی : الله د سترګو په اوښکو او د زړه په غم سزا نه ورکوي ځکه دا د بنده په واک کې نه دي ، د خپلې ژبې لور ته یې اشاره وکړه ، ارشاد یې وکړ :خو دا دي په غلطي ؛ یعني په ژبه نوحه او غم کول سزا ورکوي. محمد رفعت قاسمي)

## د غم موده او کار بندول

مسئله :د کوم خپلوان په مړینه تر دریو شپو پورې غم کول مباح دي، ددې ثبوت له صحیح حدیث څخه شته ، د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد دی :په الله او اخرت باندې د مومني میرمنې لپاره دا روانه ده چې تر دریو ورځو دیرغم وکړي. خو د میړه په مړینې تر څلورو میاشتو او لس ورځو غم کوي.(شامي ج ۲ ص ۸۵۱)

مسئله :په عالمګیري کې دي چې د مصیبت په مهال تر دریو ورځو په کور کې کښیناستل جایز دی خو پرینښودل یې ښه دي. خو نوحه کول ناجایز دي.

مسئله : د ورځو او تاریخ له تعین او د رسم او رواج له پابندۍ پرته ،د قرآن تلاوت کول او ثواب یې بخښل ځای لري.

مسئله :د چا د خپلوانو د مړینې له امله یې خپلوانو ته تر دریو ورځو کار بندول جایزدي، خو دا دي ضروري نه ګڼي او څوک چې کار نه بندوي هغه دي نه ملامتوي.

(فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۱۹۰ – ۱۹۳، مجموعه فتاوی ج ۳۱ ص ۹۸ عیني ج ۳ ص ۳۰٦)

## ثواب بخښل څه شی دی؟

تر مړینې وروسته یې خدمت او یا ورسره ښه کول خو یو دادی چې له الله تعالی څخه ورته مغفرت او رحمت وغواړي.
لکه چې وویل شول : د جنازې دلمانځه هم اصلي مقصد همدا ده . د زیارت قبور په لړکې چې کوم حدیثونه راغلي دي، په هغوی کې هم دقبر ښتنانو ته له سلام سره ، سره مغفرت هم وغوښتل شي. د خیر دغوښتلو له دي طریقي سره ، سره رسول الله صلی الله علیه وسلم د مړو د خدمت او هغوی ته دګټې رسولو یوه بله طریقه هم ښوولي ده چې دهغه له لوري صدقه ورکړي او یا بل د خیر کار وکړي او ثواب یې ورته وبخښي .
ثواب بخښل ددي نوم دی چې ورڅخه دژوندو غم سپک شي او مړو ته اسانتیا هم پیدا شي. (معارف حدیث ج ۳ ص ۴۹۰)

دثواب دبخښلو طریقه خورا ساده او اسانه ده . خو هغه طریقي چې دا اوس غوره شوي دي ، دا نه الله تعالی ، نه رسول الله صلی الله علیه وسلم ښوولي دي ، نه صحابه وو غوره کړي دي او نه هم ددین امامانو خوښي کړي دي. ددي طریقو عاملین وایي : که مونږ دثواب درسیدلو دا رواج ونکړو وروبه (خلک) ناراضه کیږي نو ځکه به یې مونږ کوو .
دا یوازې بدعت نه دی بلکې شرک هم دی. ځکه کوونکی یې دا دالله جل جلاله لپاره نه کوي، بلکې له ټولنې څخه دومره داریږي چې هغه یې خدای بللی دی، دا شرک دی چې دغیر الله



درضایت لپاره یې کوي.
هرنفلي عبادت چې انسان یې دځان لپاره کوي ، هغه دي نورو ته دثواب درسیدلو په نیت وکړي، دهغه ثواب ورته رسیږي، مړه او ژوندي دواړو ته ثواب رسیږي، فقط دا نیت وشي چې ددې ثواب فلاني ته بخښم، نو ثواب ورته رسیږي.
(اصلاح الرسوم مولانا تهانوي رحمه الله)

## دثواب دبخښلو لپاره غونډه

مسئله : دنافله صدقاتو ، تلاوت ، تسبیح او تهلیل یا نور څه بیل ، بیل ثواب مړي ته بخښل له حدیث څخه ثابت دي، خو دثواب بخښلو او رسیدلو لپاره دغونډې اهتمام، په هغه کې دقید او رسم پابندي یا دمړي دخپلوانو له لوري میلمستیا کول ، دا ټول بدعت او ناروا دي.
(احسن الفتاوی ج ۱ ص ۳٦٦ ، درد المحتار ج ۱ ص ۸۴۲ په حواله)

مسئله :څوک چې څه شی ولولي ثواب یې رسیږي. که یې نوي ولولي یا یې وړاندې لوستلي وي.

مسئله :دثواب لپاره دټول قرآن لوستل ضروري نه دي خو مره چې ولولي دهغوی ثواب بخښل صحیح دي.

مسئله :بل چاته دتلاوت کولو ویل صحیح دي، په دې شرط چې ورباندې درنه تمامه نشي، کنه بیا صحیح نه ده.
(آپ کې مسائل ج ۸ ص ۴۵۷)

## ایا ثواب ویشل او بیا بخښل کیږي؟

پوښتنه : که څو مړو ته ثواب وبخښل شي ایا ورباندې تقسیم او بیا رسیږي؟

ځواب : په دې مسئله کې دعلماوو اختلاف دی. دځینو نظر دی چې دبرخې په اندازه رسیږي .لکه څوک چې یوه روپۍ په څو بېوزله کسانو وویشي، ټولوته یوه ، یوه نه رسیږي، بلکې ورباندې ویشل کیږي او برخه ورته رسیږي.

ځینې علماء وایي :هر یوه ته پوره ،پوره رسیږي. ځکه دالله تعالی رحمت ډیر پراخ دی، که هر یوه ته دیوې ،یوې روپۍ پوره ثواب ورکړي، کوم کمښت نه راځي، بلکې درحمت دپراخي غوښتنه داده چې هر یوه ته پوره ،پوره ورسیږي.

دثواب ډیر او کم رسیدلو دارومدار په خلوص پوري دی .که له اخلاص سره لږ څه دثواب لپاره ورکړي، هغه به زیات وي ترهغه چې د ډیرشي ثواب پرته له اخلاص څخه ورته وبخښي.

نو ډیره اړتیا خلوص ته ده او که له دې سره څه شی هم زیات وي، بیا خو نو غوړ په غوړو دي.

(فتاوی محمودیه ج ۷ ص۲۳۴ ، دردالمحتار ج ۵ ص ۶۰۵ په حواله)

مسئله :که یو مهال څو مړو ته ثواب وبخښل شي، ټولو ته رسیږي .خو که لومړی یوه مړي ته وبخښل شي، بل وخت ددې صدقې یا نورڅه ثواب نورو مړو ته نشي رسیدلای. ځکه هغه ثواب لومړني مړي ته رسیدلی دی.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص۴۱۹ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۴۴)

مسئله :که څوک دیوه عبادت ثواب څو مړو ته وبخښي، هغه ثواب په ویش سره دهغوی روحګانو ته نه رسیږي، بلکې هر یوه ته پوره ، پوره څومره چې دهغه دعبادت لپاره مقـــرر دی



رسیږي .(علم الفقه ج ۲ ص ۲۱۰ ، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۱۹)

له علي رضی الله عنه، څخه روایت دی چې درسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد دی :څوک چې په هدیره تیریږي او یوولس ځله دا اخلاص سورة (قـل هـو الله) ولولي او دمړو روحګانو ته یې وبخښي. دغو مړو ته چې څومره ثواب ورکوي هغه یوازې دالله فضل دی، دهغه په خزانه کې دڅه شي کمښت نشته .(فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۳۸۸)

**ایا دثواب په بخښلو ټول ګناهونه معاف کیږي؟**

پوښتنه :که څوک وفات شي په ژوند کې یې دوړو او سترو ګناهونو ارتکاب کړی وي، اوس که یې اولاد ډیر قرآن کریم او ډیره صدقه خیرات کړي نو وړې او غټې ګناوې یې ټولې معاف کیږي او که یوازې وړې؟

ځواب : په دې باندې اتفاق دی چې طاعات او حسنات د وړو ګناهونو کفاره کیږي او دسترو ګناهونو نه کیږي. لکه په قرآن کریم کې چې له " إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ" څخه مطلب وړې ګناوې دي نه غټې. له حدیث څخه هم دا ثابت دي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۳۶)

مسئله :مړو ته دصدقو او قرآن کریم ثواب رسیږي، مړو ته دژوندو له دعـاء او استغفار څخه ګټه رسیږي. دا له قرآني نصوصو او حدیثونو څخه ثابت دي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۴۷ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۴۴ ، باب صلوة الجنایز په حواله)

***************

## دیولک پنځه ویشت زره ځله کلمه ویلو ثواب بخښل

پوښتنه : یولک پنځه ویشت زره ځله کلمه ویل او بیا مړي ته یې دبخښلو امید دی. دا روایت په کوم کتـاب کې دی او لا اله الا الله ویل کیږي که محمد رسول الله هم ورسره یو ځای شي ؟

ځواب : دا روایت دحدیث په کتابونو کې ترنظر تیر شوی نه دی. ځینو مشایخو رانقل کړی دی ، نو عمل وربانـدي صحیح دی. معمولاً، لااله الا الله دی .کله ، کله محمدرسـول الله هم ورسره ویـل کیږي . دترمذي او ابن ماجه په حدیث کې راځي چې(افضل الذکر لا اله الا الله).

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۴۲ ، مشکوة باب ثواب التسبیح ص ۲۰۱ په حواله)

## په اجرت(مزدوري ) دثواب بخښل

مسئله : په معلوم یا مشروط اجرت که قرآن کریم دمړي لپاره وویل شي، په دې هکله محققین لیکي چې مړي ته یې ثواب نه رسیږي. چې ویونکي ته یې ثواب نه وي ځکه دا اجرت نیت لري، نو مړي ته به له څه شي ورسیږي. خو که څوک یوازې دالله تعالی لپاره قرآن کریم تلاوت کړي او ثواب یې مړي ته وبخښي، انشاء الله ثواب به یې مړي ته ورسیږي. که یې کور ووایې او که په قبر او ثواب ورته وبخښي ، فرق نلري.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۳۵)

مسئله :درجب په میاشت کې مړي ته ثواب بخښي، ددې کوم اصل نشته. دکومې ورځې له قید څخه پرته چې کومه



ورځ غواړي په بې وزله خلکو خواړه وخوري یا نغدي پیسې ورکړي ، ثواب دې مړي ته وبخښي .

مسئله : که څوک په ژوند کلمه او قرآن کریم ووایې او خپل ځان ته یې ثواب پریږدي، تر مړیني وروسته ورته رسیږي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۵۱ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۴۴ په حواله)

## دثواب بخښلو طریقه

مسئله:دثواب بخښلو په طریقو کې نن سبا ډیري نامشروع خبري او رواجونه ګډ شوي دي. ان تردې چې ډیر خلک هغه شیان مسنون اومشروع فکرکوي چې بالکل ناروا دي او همداسې خرابي پکې پیښیږي.

مسئله :دثواب دبخښلو اواستولو طریقه داده چې دکوم عبادت چې ثواب لیږل مقصودوي، دهغه عبادت له فراغت څخه وروسته ،الله تعالی ته دعا وکړي چې یا الله ددي (نفلي) عبادت ثواب دفلاني شخص روح ته ورسوي.مثلاً ،دقرآن کریم کوم سورت تلاوت کړي یا بل ذکر وکړي یا نفل لمونځ وکړي یا کوم بې وزله ته خواړه و ر کړي یا نفلي روژه ونیسي یانفلي حج وکړي. بیا له الله تعالی وغواړي یا په زړه کې دثواب رسیدلو نیت وکړي،نو الله تعالی یې په خپل فضل سره دهغه دعبادت ثواب ورته رسوي.(علم الفقه ج۲ص۲۴۰ ،فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۱۲۴ ، شامي ج ۱ ص ۸۴۴ ، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۵۱)

مسئله :کله چې عبادت کوئ ورسره سمدستې هم هغه وخت نورو ته دثواب په نیت کوم شرط نه دی. تر دې چې له

هغه څخه فارغ شئ او دثواب درسیدلو نیت وکړئ هم جایز دی او ثواب یې نوزو ته رسیږي. (علم الفقه ج ۲ ص ۱۲۰، فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۰۸، دشامي ج ۱ ص ۶۰۵ په حواله)

مسئله: نابالغ ته هم دخپلو حسناتو (نیکیو) ثواب رسیږي. له دې څخه دا هم معلومیږي چې بل ته هم ثواب بخښلای شي. په جنازه کې یې هم دعا کول ګټوردي، له دې څخه هم دثواب بخښلو افاده ثابتیږي. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۰۵، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۱۹، مشکوة ج ۱ ص ۸۲، عالمگیري ج ۵ ص ۹۴)

## ثواب بخښونکي ته هم ثواب پیدا کیږي؟

مسئله: که څوک دخپل نفلي عبادت ثواب بل چاته وبخښي، داسي نه کیږي چې دهغه عبادت ثواب ده ته بېخي پاته نشي، بلکې ده ته هم رسیږي او هغه ته هم رسیږي چې ورته بخښلي یې دی. دایو الهي فضل دی. له همدې امله علماء لیکي: څوک که نفلي عبادت کوي هغوی دي دهغه ثواب دمؤمنانو روح ته بخښي ترڅو یې ده ته هم ثواب ورسیږي او هغو خلکو ته هم، بلکې مؤمنانو ته دګټه رسولو په سبب امیدی دی ده ته دوه برابره ثواب ورسیږي. (علم الفقه ج ۲ ص ۲۱۰، فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۴۱)

## دثواب بخښلو مسائل

پوښتنه: مړي ته دصدقې، خیرات، تلاوت اویا نورڅه ثواب رسیږي. اهل سنت اوجماعت دثواب رسیدلو په هکله متفق دی. امام ابوحنیفه(رح) دبدني نفلي عباداتو دثواب په رسیدلو هم قایل دی. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۳۰)

یعني میت ته دنفلو ثواب رسیږي.



مسئله: مړي ته دثواب رسیدلو لپاره لومړی، دریمي، لسمي او څلوېښتمي ورځو قید ختمول ضرور دي. شرعاً دا ځانګړتیاوې دثواب رسیدلو لپاره روا نه دي، بدعت او حرام دي. دتاریخ له قید څخه پرته کله چې وغواړي ثواب بخښله دې کوي. څلورمه، پنځمه یا اوومه یا دکومې بلې ورځې له تخصیص پرته بې وزلو ته خواړه ورکړل شي، دارسوم او رواجونه چې عوامو معلوم کړي دي، څه اصل نلري. هره ورځ دثواب بخښلو اواستولو لپاره برابر ده. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۳۴، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۴۲ په حواله)

مسئله: په دریمه ورځ تلاوت اودقرآن کریم ختم له خیر القرون څخه ثابت نه دي، اوس یې التزام دومره کیږي چې عوام هغه ضروري ګڼي، له همدې امله باید هغه ترک شي. دارسم ماتول ضرور دي، که بیاهم کومه ورځ داسې لازمه وبلله شي او رواج شي هغه هم بندول ضرور دي. کومه طریقه چې له سلفو ثابته نه وي، هغه لازمول که څه دعقیدې په لحاظ نه وي، هستې په عمل کې وي واجب الترک ده.

فاتحه او وړاندې خواړه ایښودل جایز نه دي. همداسې یوولسمه ورځ هم جوازنلري. ټول هغه رسوم چې شارع علیه السلام، صحابه وو او ددین امامانو کړي نه دي یا یې حکم کړی نه دی، هغه ټول ناروا اوبدعت دي، خو کفر او شرک نه دي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۳۷، دردالمحتار ج ۱ ص ۸۴۲ په حواله)

مسئله: څوک چې مسلمان ومړي ثواب ورته بخښل کیږي.بې لمانځه مسلمان ته هم کیدلای سي .

(فتاوای دارالعلوم ج۵ ص۴۳۷)

مسئله :که دچا ټول قرآن کریم یاد نه ؤ او یوازې لس جزء یې یادؤ، که هغه لس سیپاري دري ځله تلاوت کړي،دټول قرآن کریم ثواب ورته نه حاصلیږي. خو دلسو سیپارو دري ګونه ثواب ورته ترلاسه کیږي. که پوره قرآن کریم نه کیږي دا غوره ده چې دهمدې لسو سیپارو تلاوت څو ،څو ځله وکړي، ثواب یې وبخښي ،مړي ته رسیږي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۳۲)

مسئله :که دهندوانو په کومه هدیره کې، کوم ماشوم خښ وي، هلته ورتلل او څه لوستل ضرور نه دي .

مسئله : داهل هنود (هندوانو) ماشوم چې ومړي هغه جنتي دی.(خو ثواب بخښل یوازې دمسلمانانو په هدیره کې حکم لري. یعنې یوازې دمسلمانانو په هدیره کې یې د لوستلو او ویلو حکم شوی دی.) (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۵۳ ، شرح فقه اکبر ص ۱۲۱ ، مشکوة باب زیارت القبور ج ۱ ص ۱۵۴)

مسئله : که دغیرمسلم ماشوم،کوم مسلمان په زوی والي نیولي وي،دفقه له قاعدې سره سم هغه ماشوم کافر بلل کیږي ځکه دماشوم لپاره دمور او پلار دیوه اسلام شرط دی او یا به هغه ماشوم دشعور او تمیز په حالت کې اسلام منلی وي او که له دې وجوهاتو کومه یوه نه وي نو دفقه دقواعدو په حساب هغه مسلمان نه ګڼل کیږي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۷۰ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۸۳۱)



## ایا په مړه صدقه کول ضروري دي؟

مسئله :مړه شوي ته دخیرات کولو په هکله حکم دادی چې که مړي وصیت کړی وي نودهغه دپاته مال په دریمه کې عملي کول ضروري دي او ترهغه زیات دوارثانو په اجازه پورې اړه لري .که وارثان بالغ وي او اجازه ورکړي نو په زیات مال کې هم وصیت جاري کیږي او که نه، نو بیا نه کیږي. که مړي وصیت کړی نه وي او ومړي ، ترمړینې وروسته یې ټول مال له ملکیت څخه وزي او دوارثانو په ملکیت کې ورځي. بیا دوارثانو اختیار دی چې څومره غواړي هغومره دې خیرات کړي اومړي ته دې ثواب وبخښي.که کوم وارث نابالغ وي، دهغه په برخه کې صدقه کول جواز نلري.

په مړه باندې کومه صدقه او خیرات کول لازم نه دي، که یې په خپله خوښه صدقه وکړه نو ثواب یې رسیږي.

(فتاوی دارالعلوم ج۲ ص ۴۲۴ کتاب الجنایز)

## ناراضه والدینو ته دثواب بخښل

مسئله :که والدین له چا څخه ناراضه وو او وفات شول ، د هغه لپاره دقرآن کریم تلاوت،صدقې او خیرات ثواب و بخښل شي، ورته استغفار وشي، دهغه پورونه اداکړل شي،که یې وس ؤ، دهغه له لوري حج وکړل شي . انشاء الله هغوی به راضي شي او اولاد به مطیع وګڼل شي. په حدیث شریف کې راځي: څوک چې دمور یا پلار له لوري حج وکړي، هغه دهغه له لوري اداءکیږي او دهغه روح ته زیري ورکول کیږي او اولاد

دخدای جل جلاله په نزد مطیع او امر منونکی بلل کیږي.

مسئله: دنفلو په واسطه هم ثواب ورته استول کیږي.

(فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۳۸۷) دتفصیل لپاره وګورئ: (مشکوة شریف ص ۳۲ کتاب العلم، ترمذي ج ۱ ص ۱۸۵ او شامي ج ۴ ص ۸۴۴)

## دمړي له خوا حج بدل کول

مسئله: دمړي له لوري حج بدل کیدلای شي، که هغه وصت کړي وي دهغه دشتمنې په دریمه برخه حج بدل (دهغه لپاره حج) کیدلای شي. که په دریمه برخه حج ناشونی و، بیا که وارثان بالغ او حاضر وو او په ټول مال یې دحج بدل اجازه وکړه نو په ټول مال هم اداء کیدلای شي. که مړي وصیت کړي نه و، بیا دوارثانو خوښه ده. دالري نه ده چې الله تعالی یې په دي صورت کې هم حج قبول کړي او ګناهونه یې وبخښي.

(آپ کې مسائل ج ۴ ص ۴۰)

یادونه: دمړي له لوري دحج بدل کولو په هکله تفصیل زما په "مکمل ومدلل حج وعمره کتاب" کې وګورئ.

## دمړي له خوا قرباني کول

دمړي له خوا او دمړي لپاره قرباني کیدلای شي. ددې لپاره څو صورتونه دي:

۱- چې مړي وصیت کړی وي چې زما له شتمنې زما لپاره قرباني وکړئ، دهغه له وصیت سره سم چې دهغه له مال څخه قرباني وشي، جواز لري. خو ددې قربانۍ ټوله غوښه او نور څه مستحقو کسانو (هغوی چې دزکات مستحق دي) ته صدقـه



کول واجب دي.

۲- که مړي وصیت کړی وي یا یې کړی نه وي، خپلوان او دوستان یې په خپلو پیسو ورته نفلي قرباني کوي، دا صحیح دي او ددې قرباني غوښه شتمن او بې وزله ټول خوړلای شي.

۳- څوک له خپل مال څخه او په خپل نوم قرباني وکړي، ثواب یې یوه یا ډیرو مړو ته وبخښي، داسې هم صحیح ده. ددې غوښه هم ټول شتمن او بې وزله خوړلای شي.

(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۸۶، شامي ج ۵ ص ۲۹۳)

## دمړي لپاره قرباني ښه ده او که صدقه؟

پوښتنه: مړي ته دثواب لپاره پیسې صدقه کول ښه دي او که په هغو پیسو قرباني وشي او ثواب یې ورته وبخښل شي کوم یو غوره دی؟

ځواب: دقربانۍ په ورځو کې دپیسو او نورڅه تر صدقې قرباني کول او ثواب یې بخښل غوره دي، ځکه په صدقه او خیرات کې فقط دمال ورکړه ده او په قرباني کې دمال ورکړه ده او فدا کول یې هم دي. یعني دوه مقصده ترلاسه کیږي.

(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۸۷)

## دثواب دبخښلو غوره طریقه

مسئله: دثواب لپاره دا طریقې غوره او ښې دي چې ددینې مدرسو له بې وزلو زده کوونکو سره څه نغدي یا دجامو مرسته وشي یا دتفسیر، حدیث او فقه کتابونه او نور څه واخستل شي مدرسې ته وقف شي، ترڅو طالبان ورڅخه ګټه واخلي او مړي

ته هم تل ثواب رسیږي.دتاریخ اوورځي له تعین پرته بیوزلو
ته خواړه ورکړل شي اوثواب یې وبخښل شي،داهم ښه دي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص۴۵٦، دردالمحتار ج ۱ ص ۸۴۴ په حواله)

## تعزیتي جلسه جوړول

مسئله :دکوم مسلمان په مړینه دمړي دخپلوانو تعزیت کول، یعني دصبر تلقین کول له سنت څخه ثابت دي.که هلته د ورتللو موقع نه وه،دلیک په واسطه هم تعزیه له سلفو ثابته ده.

که له مړینې څخه ډیرو کسانو ته صدمه ورسیږي،دډیرو کسانو تعزیې ته ضرورت احساسیږي او دټولو هلته تلل او رسیدل ستونزمن وي، نو ددي لپاره اسانه لاره داده چې یوه تعزیتي جلسه وکړي او ډیر کسان دسفر له ستونزو ژغورلي وي. دمړي په خپلوانو هم دډیرو میلمنو بار نه وي او په ستره غونډه کې یو ځای دعا کول هم دقبول وړ وي.په ښکاره خو په داسي تعزیتي جلسه کې کومه بدي نشته، خو ډیر ځایونه دي کارهسي دیوه رسم او رواج بڼه خپله کړي ده . مقصد یې دا وي چې په اخبارونو کې یې نوم راشي، شهرت یې وشي، یا وایې که تعزیتي جلسه جوړه نکړو خلک به مو ملامت کړي او داسي نور،که داسي وي ترک یې ښه دی.(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۳۴)

مسئله:دچاپه مړینه دري ځلوردقیقې پټه خوله کښیناستل اودغم ښکاره کول، رواطریقه نه ده.په دې سره له نصارا او نوروسره مشابهت راځي نوځکه دارواج پرېښودل ضروردي.



## دتعزیې (فاتحې) مسنونه طریقه

مسئله :تعزیه تر دریو ورځو ډیره جواز نلري،څوکه غایب تر دریو ورځو وروسته راشي، بیاهم کیدلای شي، دډلي په شیر یې راتلل صحیح نه دي ،که په ناڅاپې توګه سره یوځای شي پروا نلري. دهر یوه بیل، بیل تعزیه کول مسنون دي. خو که دکومې کورنۍ څوک مشر وي اوله هغه سره کشران هم وي، نو بیا دمشر تعزیه کافي ده ،دتعزیې دعا ده :

اعظم الله اجرک واحسن عزائک وغفر لمیتک.

تر دي زیات داسې مضمون بیانیدلای شي چې ورسره غم سپکیږي، تسلا او داخرت فکر پیداکیږي، دتعزیې په دعاکې لاس پورته کول بدعت دي. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۲۳۵ کتاب الجنایز)

مسئله :دتعزیې سنت طریقه داده چې ترخښبولو وړاندې (که موقع نه وه) وروسته، دمړي کورته ورشي، تسلا ورکړل شي، دصبر تلقین او ترغیب ورکړل شي، دمړي په هکله دعایه جملې وویلې شي. دتعزیت الفاظ او مضمون تعین شوي نه دی.بیل،بیل دي.دصبر او تسلا لپاره چې کومې جملې برابرې وي هغه وویلې شي.دتعزیې په هکله په حدیث شریف کې ډیر فضیلت ښودل شوی دی. په یوه حدیث کې راځي څوک چې دمصیبت او پریشانۍ په مهال خپل ورور ته تسلاورکړي اوتعزیه یې وکړي،الله تعالی به دقیامت په ورځ هغه ته دعزت جامه وروا غوندي. (ابن ماجه شریف ص ۱۱٦)

همداسې په حدیث شریف کې دي: څوک چې د غم رسیدلي تعزیه وکړي، الله تعالی به هغه ته دومره ثواب ورکړي څومره چې هغه مصیبت رسیدلي ته یې (دهغه په صبرکولو) ورکوي.
(ترمذي ج ۱ ص ۱۲۷)

مسئله: که څه مجبوري یا لریوالی وي اوپه خپله حاضریدلای نشي، دلیک په واسطه هم تعزیه کیدلای شي، داسي هم سنت دي. رسول الله صلی الله علیه وسلم معاذ ابن جبل (رضی الله عنه) ته، دهغه دزوي دمړیني له امله لیک ولیک.
(فتاوی رحیمیه ج ۶ ص ۳۴۲ دحصن حصین پنځم منزل ص ۱۸۰ په حواله)

## دتعزیې موده

مسئله: په کوم کورکې چې څوک مړي، دهغه دغم په هکله پوښتل مستحب دي. دغم دپوښتلو یعني تعزیې وخت له وفات کیدلو وروسته تر دریو ورځو پوري دی. تر هغه وروسته مکروه دی. له هغو پرته چې یاپوښتونکی اویادکورڅښتن موجود نه وي چې په داسي صورت کې تر دریو ورځو وروسته هم مکروه نه ده. ددې لپاره کوم خاص الفاظ مشخص نه دي، بلکې دحال له مقتضا سره سم دغم پوښتل او تسلا کیږي.
(کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۶۸)

مسئله: په تعزیت کې به دتسلا الفاظ ویل کیږي لکه دا: صبرکوئ الله تعالی به درته د صبرکولو اجر درکړي او نور. د تعزیې لپاره په مسجدکې (ددې کار لپاره منظم) کښیناستل مکروه دي، په کورکې به وي. (فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۴۱۷، علم الفقه ج ۲ ص ۲۰۷)



دمړینې یا دغسي دبلي سختې پیښې له امله تسلا ورکول او ورسره دهمدردۍ اظهارکول، دهغه دغم دسپکولو هڅه کول په مکارم اخلاق (ښو اخلاقو) کې دي. رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپله ددې اهتمام کړی دی. نورو ته یې هم ددې لارښوونه کړې اوترغیب کړی یې دي. لکه له عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه څخه چې روایت دی: رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد وکړ: چاچې دمصیبت دڅښتن تسلا وکړه هغه ته دمصیبت دڅښتن په برابر اجر دی.
(معارف الحدیث ج ۳ ص ۴۶۳ دجامع ترمذي او ابن ماجه په حواله)

## درسول الله صلی الله علیه وسلم تعزیتي لیک

له معاذ بن جبل رضی الله عنه څخه روایت دی چې دهغه زوی وفات شو، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته د تعزیت لیک ولیک. دهغه ژباړه داده:

بسم الله الرحمن الرحیم

دالله درسول، محمد صلی الله علیه وسلم له لوري، معاذ بن جبل ته، تاسي دې سلامت یاست. زه لومړی دالله حمد وایم، هغه چې له هغه پرته بل معبود نشته. تر حمد او ثنا وروسته، دعا کوم چې الله تعالی درته ستر اجر درکړي. دصبر توفیق درکړي او موږ او تاسو ته دشکر کولو برخه راکړي. ددې لپاره چې زموږ ځانونه، مالونه، اهل او عیال ټول، لوی الله جل جلاله دښې تحفې په توګه راته سپارلي دي، امانت دي (له دې سره سم ستاسو زوی له تاسره دالله جل جلاله امانت ؤ.)

الله هغه تاته له خوشحالۍ سره درکړی ؤ ، له هغه څخه دګټې اخستلو موقع يې درکړي وه. اوس يې درڅخه دلوی اجر په بدل کې واخیست، تاسو ته دالله تعالی له لوري د رحمت او لارښوونې زیری دی، که ته دثواب په نیت صبر وکړې نو ته له صبر(اوشکر)سره اوسه.(ګوره)ستاژړاستا اجرضایع نکړي، بیابه ورته پښیمانه یې.په یاد ولره چې دچا ژړل مړی بیرته نه راګرځوي او نه داغم او درد لرې کوي، هغه چې د کولو دی، هغه، هغه کوي. هغه چې شوي دي ، هغه شوي دي. والسلام.

درسول الله صلی الله علیه وسلم په دې تعزیت لیک کې هر مؤمن ته دتعزیې ، نصیحت او تسلی پوره سامان دی. چاته چې کومه صدمه ورسیږي، کاشکي په خپلو مصیبتونو کې درسول الله صلی الله علیه وسلم له دې ایمان روښانوونکي ، ارام کوونکي تعزیې څخه ارامي حاصله کړو صبر او شکر خپل شعارکړو اوپه اخرت کې دالله تعالی له رحمت او هدایت څخه برخمن شو. (معارف الحدیث ج ۳ ص ۴۶۸)

## په مړینه باندې دصبر اجر او ثواب

له ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد وکړ : دالله تعالی لارښوونه ده چې کله زه دیوه مؤمن یو خپلوان ترې واخلم بیا هغه دثواب په هیله صبر وکړي.له ماسره دهغه بدله له جنت څخه پرته بل څه نه دی.(ترمذي ج ۱ ص ۱۹۸، بخاري ج ۱ ص ۱۷۵ باب الجنایز، معارف الحدیث ج ۲ ص ۴۶۴)



## دمیره مړې (کونډې) عدت

مسئله : که دچا میره دمیاشتې په لومړۍ نیټه وفات شو، میرمن حمل نه درلود نو دسپوږمۍ په حساب یې عدت تر څلورو میاشتو او لسو ورځو پورې دی. که پرته له لومړۍ نیټې په کومه بله نیټه ومري، هره میاشت دیرش شپې وشمیرلې شي ، څلور میاشتې او لس ورځې پوره کړي.یعنې ټولې یوسل او دیرش ورځې، تروفات وروسته چې دومره وخت تیر شي نو عدت ختم شو.

مسئله :که میرمنې حمل درلود او میره یې مړشو نو د ماشوم تر پیدا کیدلو پورې یې عدت دی. په دې صورت کې میاشتو ته اعتبار نشته. که دمیره تر مړینې څه موده وروسته ماشوم وزیږید نو هم عدت ختمیږي.
(عالمګیري-امداد الفتاوی، احکام میت ص ۱۲۶)

مسئلة :دحاملې عدت دماشوم په زیږیدلو ختمیږي، خو که ماشوم نقصان شي نو تفصیل یې دادی چې که دماشوم کوم اندام مثلاً ، پزه ،ګوته یا بل څه جوړ شوي ؤ، نو عدت یې ختمیږي او که کوم اندام جوړ شوی نه و ،فقط دغوښې یوه ټوټه وه ، په هغه سره عدت نه ختمیږي ، داسې اټکل کیږي چې دامیرمن حمل نلري،عدت به یې ترڅلورو میاشتو او لسو ورځو پورې وي.(شامي ج ۲ ص ۸۳۱ ، احکام میت ص ۱۲۸)

مسئله : که تر نکاح وروسته، تر واده وړاندې یې میړه مړشو ، بیاهم په میرمنې باندې دوفات عدت واجب دی.

مسئله : که د کومې میرمنې په ګیډه کې دوه بچیان وو، یو وزیږي او بل پاته وي، ترڅو چې یې دوهم ماشوم زیږولی نه وي عدت نه ختمیږي. (شامي ج ۲ ص ۸۳۱ - احکام میت ص ۱۲۹)

یادونه : دا عدت دهغې میرمنې دی چې میړه یې مړشوی وي، په دې کې د میرمنې دعمر قید نشته، که په هر عمر وي خو که طلاقه شي دهغې دعدت حساب بیل دی.

کله چې کومه میرمن کونډه شي، دعدت په رسم میرمنې راټولیږي، وایې موږ ددې له عدت څخه دوتلو لپاره راغلي یو. ځینې میرمنې دا ضروري ګڼي چې کله یوه میرمن له عدت څخه خلاصه شي، هغه له هغه کوره بل کورته بیایي او ددې ډیر اهتمام کوي، دا دواړه خبرې غلطې دي. مسئله دا ده چې کله څلور میاشتې او لس ورځې یې تیرې شي یا یې دحمل وضع وشي، هغه میرمن له عدت څخه په خپله وزي، که څه هم په هغه کور کې هستوګنه لري. (اصلاح انقلاب امت، احکام میت ص ۱۴۱)

(ځیني ځایونه چې دمیرمنې عدت پوره شيء والدین یا دکورنۍ غړي ورته جامې ورکوي، دا غیر شرعي شیان دي، ځان ژغورل ورڅخه ضرور دي. رفعت قاسمي)

## دمړینې په حال دمهر معاف کیدل

یوه غلطي چې خورا عامه ده داده چې کله کومه میرمن مري ورته وایې، مهر معاف کړه او هغه یې معاف کړي، میړه یې همدا معاف کول کافي ګڼي او ځان دمهرله بار څخه خلاص ګڼي. که یې کوم وارث پاته شي هغه ته یې نه ورکوي.



په یاد ولرئ چې یو خو په داسې وخت کې معاف کول دسخت زړه خبره ده، بله خبره داده چې کله هغه په فکر او حال کې هم وي او په خپل زړه یې معاف کړي هم مهر نه معافیږي. ځکه دمرض الموت په وخت کې معافول د وصیت په حکم کې ده او میړه ته وصیت کیدلای نشي. ځکه دوارث په هکله وصیت کول باطل دی. خود میرمنې بل وارث چې عاقل او بالغ وي خپله برخه میراث په دې مهر کې په خپله خوښه پرېښودلای شي، که یې پرېږدي. خو که وارث لیوني یا نابالغ وي، دهغه برخه دهغه په اجازه هم نه بخښله کیږي.
(اصلاح انقلاب امت ج ۱ ص ۲۳۸)

یوه غلطي په خلکو کې داده چې کله یې دمړینې وخت راشي او دی شخص مهرورکړي نه وي، میرمن یې مجبوروي ترڅو مهر ورته وبخښي، په داسې حال کې میرمن په زړه کې ورباندې راضي نه وي، خو دخلکو په ټینګار یا پر رواج مجبوریږي له شرمه هغه معافوي. یاد ولرئ چې دمهر داسې معافول جواز نلري، ستر ظلم دی. (احکام میت ص ۲۲۶)

## دناروغ په ناسته لمونځ کول

مسئله : کوم ناروغ چې له دریدلو څخه بې وسه وي یعني که قیام کوي نولویږي یا یې ناروغي ډیریږي یا یې دنه رغیدلو ویره وي، یا ورته ډیر تکلیف وي. هغه ته په ناسته لمونځ کول جایز دي. خو که د دریدلو وس یې وي او په ناسته

لمونځ کوي بيا جايز نه دی.که دلږې شیبې لپاره دريدلای شي، هغومره دي ودريږي آن تر دي که يې په ولاړه دتحريمي تکبير ويلای شوای ،يعني طاقت يې ؤ، نو دتحريمي تکبير دي په ولاړه ووايي بيا دې کښيني. ځيني ناروغان ولاړ وي، کښيني او دتحريمي تکبير وايي .داسي صحيح نه ده.

(فتاوی رحيميه ج ۱ ص ۲۳۰ –شامي ج ۱ ص ۷۱۰)

مسئله : دناروغ معذور لپاره غوره طريقه دده چې د لمانځه لپاره ستونې ستغ څملي، دواړه پښې دقبلي لورته کړي. ځنګنونه ودروي او سر څه لوړ کړي ترڅو يې مخ قبلي ته شي، داسي هم کيږي چي په ښي يا کيڼ اړخ څملي لمونځ وکړي، بيا هم ښي اړخ تر چپ غوره دی.

خوداټول صورتونه په داسي حال کې دي چې څوک د داسي کولو وي او که څوک له داسي کولو څخه هم بې وسه و، څرنګه چې ورته شوني وي هغسي دي لمونځ وکړي .

(کتاب الفقه ج ۱ ص ۸۰۳)

## که تر مړيني وړاندي قضاء شوی لمونځ ادا نکړای شي؟

پوښتنه : که دقضا شوي لمانځه داداء کولو وار نه راغی او څوک په مرض الموت اخته شو او دفديې طاقت يې نه و، نو له مواخذې څخه دخلاصيدلو يې څه صورت دي؟

ځواب :دپاته شويو لمونځونو اداء کول يا (تر مړيني وروسته) فديه ورکول له عذابه دخلاصي سبب کيدلای شي نور نو دالله خوښه ده لکه چې ارشاد کوي :



ويغفر مادون ذلک لمن يشاء . (فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۳۶۲)

مسئله : که قضا شوي لمونځونه ډير وو چې شميرل يې مشکل ؤ ، تر ښه فکر کولو وروسته دي تخيمني حساب ورته وکړي. مثلاً په ۱۴ يا ۱۵ کلنۍ کې بالغ شوی دی تر څلور پنځه کلونو يې لمونځ کړی نه دی يا يې کله کړی او کله يې پري ايښی دی. په دي صورت کې ددي شخص اندازه مثلاً څلور کلونه کيږي، نودی دي په خپل اټکل دغومره لمونځونه وکړي.

په نړۍ کې که څوک پوروړی وي، اندازه يې معلومه نه وي په تخمين سره هغه اداء کوي چې په ذمه يې څه پاته نشي. همداسي دي فکر وکړي چې څومره لمونځونه تري قضا شوي دي، هغه دي اداء کړي او مناسب داده چې څومره کيدلای شي زيات دي وکړي چي سراسر ګټه ده .

(فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۳۵۳ ، هدايه ص ۱۳۸ باب القضاء)

## که دلمونځ نه کوونکي له لوري فديه ورکړل شي

مسئله :که کوم مړي وصيت کړی نه و او څه شتمنې ورڅخه پاته شوي نه وه ،په وارثانو باندي يې دده له لوري هيڅ کفاره واجب نه ده . که دتبرع په توګه دهغه دلمونځونو کفاره اداء کړي صحيح ده او خورا ښه خبره ده . کيدلای شي الله تعالی تر ګناهونو ورتير شي . په دي کې څه خبره نشته . دايقيني خبره نه ده چې مړی دي بري الذمه شي خو هيله يې شته .اما دا فديه

ورکول دي شتمن خلک دلمانځه په پرېښودلو زړور نکړي. ځکه ایا دلمانځه پرېښودونکي داباور دی چې دده وارثان به یې فدیه ورکړي کنه ، دوهمه داچې له وصیت پرته او دمال له پرېښودلو پرته که یې فدیه ورکړي برائت یې یقیني نه دی.

په هرحال دفرایضو پرېښودل ستره ګناه ده ،پوښتنه یې حتمي کیږي،بخښنه دالله تعالی اختیاردی.ویغفرمادون ذالک لمن یشاء.(فتاوی دارالعلوم ج ۵ ص ۳۶۵ ، ردالمحتار ج ۱ ص ۶۸۵ باب قضاء الفوائت)

## دمړي له لورې دلمانځه او روژې اداء کول

مسئله :که دمړي وارثان دهغه په حکم دهغه قضا شوي لمونځونه اداءکړي ، دالمونځونه دهغه له لورې صحیح نه دي ځکه لمونځ بدني عبادت دی او هر مکلف ته یې حکم دی چې هغه یې په خپله اداء کړي، دبل چا په اداء کولو دده په ځای نه اداء کیږي.خو په حج کې نیابت قبلیږي یعنې که وارث د مړي له لورې حج وکړي نو دده له ذمې فرض ساقطیږي، که څه هم مړي یې وصیت کړي نه وي.(درمختار ج ۱ ص ۶۷۳ ،امدادالاحکام ج ۱ ص ۶۶۸)

## که ناروغ په ژوند کې دلمونځونو فدیه ورکړي داڅرنګه ده؟

مسئله :شیخ فاني(ډېر زوړ،دژوندپه وروستیوشپو ورځو کې) که دروژې فدیه و رکړي صحیح ده خو دلمانځه فدیه که په خپله په ژوند کې ورکوي صحیح نه ده اولمونځونه یې په دي فدیه سره نه ساقطیږي . ځکه په لمانځه کې دا سهولت شته چې که یې په ولاړه کولای نشي په ناستودي وکړي اوکه د



کښیناستلو وس ورسره نه وي په څملیدلودي وکړي،که یې په رکوع او سجده سره کولای نشوای په اشاره دي وکړي.خو تر مړیني وروسته یې دپاته شویو لمونځونو او روژو فدیه ورکول په وارثانو ضرور ده چې وصیت یې کړي وي او مال یې هم پاته شوي وي.ددې حکم دزکات په څیر دی چې دبې وزله تملیک پکې ضرور دی، که یې داسلامي علومو بې وزله شاګردانو ته ورکړي هم صحیح ده، په دې کې یې ثواب ډېر دی. ځکه ددیني زده کړې له زده کوونکو سره مرسته ده.

(فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۴۳۸ ، هدایه ج ۱ ص ۲۰۴ دکتاب الصوم په حواله)

مسئله : په توبه یاحج یوازې ګناه بخښله کیږي فرایض نه معاف کیږي.داسې چې که څوک حج وکړي یا توبه وباسي نو دپوروړیو پور یې هسې په ذمه پاته دی. لکه څرنګه چې تر حج وړاندې و. همداسې حقوق الله چې قرض دي لکه لمونځ او نور ، په اداء کولو اداء کیږي. په توبه یې تاخیر معاف کیږي او ژر اداء کول یې لازم دي. ان که په قضا راوړلو کې تاخیروشي بیا ګنهګاره کیږي.(فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۳۳۷ ، شامي ۲ - ۲۷۶)

مسئله : دقضا شویو لمونځونو کفاره دهغوی اداء کول دي او الله تعالی ته په عجز سره توبه کول دي. صدقه ورکول واجب نه دي ،خو که صدقه ورکړي، داچې په صدقه سره الهي غضب دفع کیږي نو هیله ده دالله تعالی غضب چې دلمانځه په تاخیر یا ترک کې وي، هغه پاته نشي او د بې وزلو دحاجت په پوره کولو کې الهي رحمت وشي . کنه اصل خو دلمانځه اداء

کول دي چې په ژوند کې دصدقې په ورکولو نه ساقطیږي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۳۵۴)

مسئله :قضاء شوي لمونځونه او روژې یوازې په توبه نه معاف کیږي، بلکې قضا راوړل یې لازم دي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۴ص ۳۶۳ ،ردالمحتارج ۱ص ۶۸۰)

## په مرض الموت کې په خپله فدیه ورکول

مسئله: که څوک د مرض الموت په مهال په خپله دلمونځونو فدیه ورکړي دا نه صحیح کیږي . په ده واجب دی ترڅو وصیت وکړي، دروژې فدیه که په خپله په مرض الموت کې ورکړي دا جوازلري خو صحت یې دده تر مړینې وروسته ثابتیږي.

مسئله :دلمانځه اوروژې فدیه،یوه بې وزله(چې دنصاب خاوند نه وي) ته دیوې فدیې پیسې ورکول صحیح دي، بل ته یې هم ورکولای شي. (درمختارج ۱ ص ۶۷۴)

## دقضا شویو لمونځونو فدیه څه وخت ورکړل شي؟

په ژوند کې دپاته شویو لمونځونو فدیه نه اداء کیږي. بلکې دپاته شویو لمونځونو قضا راوړل لازم دي.خو که څوک په همداسي حال کې ومري چې قضا شوي لمونځونه یې په ذمه پاته وي، نو دهر لمانځه فدیه دفطر دصدقې په څیر پاوکم یوچارک غنم دي.دفدیې په ورکړه کې ورځني قیمت ته اعتبار دی.دغه وقت چې غله په څومره وي په هغه حساب فدیه ورکړل کیږي.داچې وتر مستقل لمونځ دی نو له دي امله په یوه ورځ اوشپه کې شپږ لمونځونه شمیرل کیږي . دیوې



شپې او ورځې په قضا شویو لمونځونو کې شپږصدقې لازمیږي. که مړی ددي وصیت وکړي نو دمال له دریمې برخې څخه یې دا صدقه ورکول کیږي او دا واجب ده. که یې وصیت کړي نه وي نو دوارثانو په ذمه واجب نه ده. ټول وارثان که عاقل او بالغ وو او په خپله ،خپله خوښه دا صدقې اداء کړي نو هیله ده چې دمړي دابار له غاړي واوړي. (آپ کي مسائل ج ۲ ص ۳۵۹)

## دلمونځونو فدیه څومره ده؟

مسئله:ترمړینې وروسته دلمونځونو کفاره وارثان ورکوي، په ژوندکې دکفاري حکم نشته. دلمانځه کفاره پاوکم یو چارک (یو کیلوګرام او ۶۳۳ ګرامه) غنم دي. په شپه او ورځ کې دشپږو لمونځونو ورکول کیږي یعني له وترو سره . په فدیه ورکولو کې شخص اختیار لري چې غنم ورکوي او که نغدي پیسې .نغدي ښې دي ځکه نوري اړتیاوي په پوره کیږي.که دیني کتابونه ورباندي واخلي داهم صحیح ده . خو داپکې ضروري ده چې هغه کتابونه به په بې وزله زده کوونکو ویشي اودهغوی ملکیت به یې ګرځوي.داسي چې په دیني مدرسوکې کیږدي جواز نلري، په هغوی سره کفاره نه اداء کیږي. بلکې مالک ګرځول پکې ضروردي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۳۶۴ فتاوی محمودیه ج ۱۳ ص ۵۰)

مسئله :دهرې ورځې روژې فدیه له یوه لمانځه سره برابره ده. درمضان المبارک له روژو پرته که بله کومه نذر روژه پاته وي ، دهغې فدیه هم ورکوله کیږي.

مسئله :زکات که د څومره کلونو پاته وي، دهغه حساب کېږي او اداء کېږي.

مسئله : فرض حج که مړي کړي نه وي ، دمړي له کلي څخه دې څوک دحج بدل لپاره واستول شي او پوره لګښت دې ورکړل شي.

مسئله:څومره دفطرصدقې چې پاته وي، دهرې يوې فديه دې ورکړل شي.

مسئله :واجبه قرباني که پاته شوي وي، يو پسه يا ديوې برخې بيه صدقه کېږي .

مسئله:که دتلاوت سجده پاته شوي وي احتياط په دې کې ده چې دهرې سجدې په بدل کې ديوه لمانځه بدل فديه ورکړل شي.

مسئله :که پاته شوي لمونځونه يا روژې سمې شميرلای نشي په اټکلي حساب دې وکړي. (رساله حيله اسقاط، محمد شفيع رحمه الله)

مسئله : ددې مصرف هغه دی چې دزکات او صدقې مصرف دی، ډېرمستحق کسان دي چې ډېرارړ دي لکه قرضداره خلک يا نور. که دمدرسې زده کوونکو ته ورکړل شي هم ښه مصرف يې دی خو په فس، مني ارډر، درافټ او نورو کې نه حسابيږي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۴۶۹)

مسئله :که مړی وصيت وکړي اوشتمني هم ترې پاته شي، او وارثان يې په دريمه برخه کې هغه وصيت پوره نکړي ګنهګاره کيږي. مړی هم له اخروي مواخذې ترهغه وخته خلاص نه دی څو يې الله تعالی ونه بخښي.(فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۳۶۸ ،ردالمحتارج ۱ باب قضا الفوائت.فتاوی محموديه ج ۷ ص ۹۸)



## مړيني ته دچمتوکيدلو طريقه

له الفرقان مياشتنی (لکهنو) ۱۹۷۷م ۱۳۹۷هـ څخه په مننه.

يادونه : د ۱۳۶۱ هـ کال دذې قعدې دمياشتې د ۲۹ نيټې په شپه، دګران ورور حاجي محمد حسين مرحوم دخښولو په مهال چې قبرڅه وځنډيده مولانا منظور نعماني مرحوم د ديوبند دارالعلوم دشورى غړي چې کومه وينا کړي ده ، دلته به دتبرک لپاره راوړله شي.

بسم الله الرحمن الرحيم

كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ وَإِنَّمَا تُوَفَّوْنَ أُجُورَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَمَن زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلاَّ مَتَاعُ الْغُرُورِ (آل عمران-ايه ۱۸۵)

درنو حاضرينو! تر اوسه لا دقبر تيارولو ته وخت شته ، يوه ورور راته وويل چې په دې ځنډ کې څه ووايم . دده په دې خبره راته ياد شول چې دا يو نبوي سنت هم دی. په صحيح بخاري شريف کې يو بېل باب دی چې دهغه عنوان دی:

باب موعظ المحدث عندالقبر.

په هرحال ددې سنت داداء کولو په نيت زه څو توري عرض کوم ، الله تعالى دې قبول کړي او موږ ته دې الله ورڅخه دګټې اخستلو توفيق راکړي.

ماچې دآل عمران دسورت آيت تلاوت کړ،دهغه ژباړه داده: (هر ژوندی به دمړينې خوند وڅکي او ستاسو داعمالو نتايج

به په بشپړه توګه دقیامت په ورځ درته ورسیږي نو په هغه ورځ چې څوک له دوزخ څخه وژغورل شي او جنت ته ننوزي، هغه به بریالی وي او دادنړۍ ژوند هسې دغولولو متاع ده.)

له دې ژباړې څخه به درته معلومه شوې وي چې په دې آیت کې دمړینې او آخرت یادونه شوې ده. ددې په لمړنۍ برخه کې ویل شوي دي چې هر ژوندی شی مري او دژوند ښښتن ته به یوه ورځ هرو مرو مړینه راځي.

که قرآن کریم داهم ویلي نه وای، زموږ هم داباور و چې هر ژوندی موجود یوه ورځ مري. هغه انسان چې په قرآن کریم باندې هم ایمان ونلري، دهغه په مړینه کې هم کوم شک نشته. ځکه به څوک پکې شک وکړي چې دنړۍ دټول عمر تجربه دا ښيي چې دهر ژوندي پای مړینه ده.

په هر حال دایو حقیقت دی چې هر ژوندی به دمړینې خوند وڅکي. دایو یقیني بلکې په سترګو لیدل شوی حقیقت دی چې کوم کافر هم ورڅخه انکار کولای نشي.

خو دانبیاوو علیهم السلام معلومات چې دالله لوري دي، تر مرګ وړاندې داهم وایي چې مړینه هسې یوازې فناه او ورکه نه ده ،بلکې په حقیقت کې مړکیدل له یوې نړۍ بلې نړۍ ته تلل دي. یوه ورځ داسې هم راتلونکې ده چې لکه په ورځنۍ ډول چې په انفرادي ډول خلک مري او له دې نړۍ بلې نړۍ ته ځي، همداسې به ټول عالم او بشپړه نړۍ په یوه شیبه کې فناه



شي. دامهال چې چیري هم په کایناتوکې کوم ژوندی سری وي، هغه به ټول ومري او بلې نړۍ ته به لاړ شي.دانړۍ چې موږ پکې هستوګنه لرو خرابه او ویرانه به شي، کوم خلک چې له دې نړۍ څخه تللي وي، دالله تعالی په قدرت سره به بله نړۍ ورته جوړه شوې وي.دلته چې یې کوم بد یا ښه کار کړی وي یا یې دلته ښه یا بده زندګي تیره کړې وي. هلته به له دې سره ورته برابره سزا یا جزا موندله کیږي. دادآیت ددې جز انماتوفون اجورکم ،مطلب دی.

په هرحال دانړۍ زموږ لپاره دعمل ځای دی اودجزا ورکولو ځای بله نړۍ ده . هغه چې موږ تر مړینې وروسته ورځو ، هلته چې کوم ژوند راکول کیږي هغه به محدود او دځو ورځو نه وي، تل پاتې اولامحدود به وي. دا زموږ خوښه ده چې دهغه ژوند لپاره کار نه کوو او ځان نه په دوزخ کې ژوند جوړ وو که له بدیو اوګناهونو څخه ځان ساتو، نیکي کوو او په جنت کې ژوند جوړوو. غرض دادی چې دخپل ځان دجنتي او دوزخي جوړولو سبب په خپله موږ او زموږ اعمال دي. شاعر ډیر ښه وایي :

"په عمل سره ژوند جوړیږي دجنت او ددوزخ هم
داخاورین په خپل فطرت کې نه نوري دی او نه ناري."

کله چې دامعلومه شوه چې دانړۍ دارالعمل دی، په راتلونکې کې به ددې ځای داعمالو په نتایجوکې اوسو، نو

فکر وکړئ چې هغه کسان څومره غلطي کوي او څومره زیانمن دي چې ددې ژوند مهلت او وخت په بېخبرۍ کې تیروي او له دې ځایه تر تللو وروسته چې په هغې نړۍ کې د تل لپاره دهستوګنې دارامي لپاره به یې هیڅ تیاري کړې نه وي، بلکې ددې نړۍ په خوندونوکې دومره ډوب دي چې ګواکې تل همدلته اوسیږي او کله هم مړینه نه راځي.

## پیغمبران ولې راغلي دي؟

له دې غفلت څخه دراېهرکولو او ددنیا دمینه والو لپاره د آخرت دیادولو لپاره، دالله تعالی پیغمبران راغلي دي او دالله تعالی په ټولو کتابونو کې یې دادرس ورکړی دی. خو انسان داسې بې خبره او بې فکره دی چې له دې سره، سره له آخرت څخه بې پروا ده او خپله مړینه یې بیخي هیره کړې ده. ددې غفلت لوړه درجه داده چې هغه همداسې انسانان چې هره ورځ مري او له دې نړۍ څخه سفرکوي وینې خو بیا هم دانبیاوو له دې درس څخه خپله مړینه نه یادوي. هغه تر ځان مشران بلکې همزولي او واړه وینې چې ناروغه کیږي، ناروغي یې ډیریږي. دطبیبانو او ډاکټرانو له ډیرو هڅو سره، سره ددرملنې ورته کومه ګټه نه رسیږي. کومه دوا ورته کار نه ورکوي. دناروغ وروستنۍ شیبې راځي، نزع پیل کیږي، څوشیبې وروسته ورته دمړینې ملایکه راځي، روح یې اخلي او دی هسې بې روح جسد پاته کیږي. غسل ورکوونکی یې له بستري څخه



اخلي او په یوه وړه ډډه یې لمبوي، کفن ورکوي دجنازې لمونځ یې کوي. په وحشت ځای ځنګل کې یې دزرګونوړان ویجاړ قبرونو په منځ کې خښوي، پنځوس منه خاوره ورباندې اچوي، ټول همدا مړی یوازې پرېږدي، هریوخپل کورته ځي...

څه غور خو وکړئ، هر مړی زموږ دعبرت او نصیحت لپاره څومره سامان له ځان سره لري، خو غافل انسان دا هر څه وینې کله هم فکرنکوي چې موږ ټول به له دې منزل څخه تیریږو او زموږ دژوند پای به هم همداوي. په حقیقت کې دغفلت دا درجه چې دنورو مړینه وینې او خپله مړینه ورته په یاد نه راځي، له نړۍ څخه دنورو تلل وینې خو په خپله دآخرت دسفر لپاره دچمتو کیدلو فکر نه کوي، وروستنۍ درجه ده.

مړینه تر ټولو ښه نصیحت او واعظ دی. په مبارک حدیث کې راځي : "کفی بالموت واعظاً"

یعني مړینه دانسان لپاره ښه واعظ دی.

په یوه بل مبارک حدیث کې دغفلت دلرې کیدلو لپاره یو خاص تدبیر بیانوي. رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد کوي: "اکثر ذکرها ذم اللذات."

یعني دخوندونو ختموونکي مړینه ډیره یادوئ. په دې سره به مو له زړونو څخه غفلت لرې شي.

درسول الله صلی الله علیه وسلم عادت ؤ چې دشپې به ډیره برخه تیره شوه او لږه برخه به یې پاته وه، دکورنۍ کسان به یې

دغفلت له خوب څخه راویښول او ارشاد به یې کاوو:

" اذکر الله ،اذکر الله جاءت الراجفة تتبعها الرادفة جاء الموت بما فیه جاء الموت بما فیه. (یاځئ، الله یاد کړئ، الله یاد کړئ دنیا دلاندې باندې کیدلو داخرت زلزله راتلونکې ده، هغه چې وړاندې ترې راځي، هغه به هم راشي، ستاسو له ټولو سختیو او مصیبتونو سره، سره راځي، وګورئ مړینه راځي.)

مقصد داچې رسول الله صلی الله علیه وسلم هم دغافلو خلکو دهوښیارولو او له غفلت څخه دایستلو لپاره دمړینې یادونه کوله. خو زموږ غفلت په داسې اندازه دی چې له مړینې څخه مو هم نشه نه لرې کیږي او زموږ په څېرنور چې مري او په ځمکه کې ښخیږي، وینو یې هم زموږ دقبرپوزلې او یوازیتوب نه رایادیږي او فکر نکوو چې کله زموږ دا وخت راشي چې یقیناً راتلونکی دی، په موږ به څه تیریږي.

## دخپل قبر لپاره څه وکړو؟

درنو مشرانو او ګرانو وروڼو! اوس مهال چې موږ ژوندي یو، جوړیو، ګرځو راګرځو، موږ ته شوني ده او زموږ اختیار دی چې په قبر کې دارامي، روښانتیا او اُنس انتظام وکړو او له دې تنګ اوتاریک کډې څخه دځان لپاره ښکلې باغ تیار کړو. خو که موږ دامهلت په غفلت تیر کړو کوم څه چې داخرت لپاره یې کول وړ دي. ونه کړو، له الله ونه ډاریږو، داخرت له محاسبې څخه بې پروا سو، دالله تعالی نافرماني او دخلقو



حق تلفي وکړو نو یقین وکړی چې داقبر به یوه تاریکه کوډله نهٔ وي، بلکې یو وړوکی دوزخ به وي. په هغه کې به اور وي. په هغه کې به مار او لړم وي، هلته به دخبراخیستلو لپاره څوک نه راځي، کوم یار او مرستندوی به نه وي، تنده به وي خو څوک داوبو ورکولو به نه موندل کیږي. ښې او کیڼ لورته به اور وي، دژغورلو به څوک نه وي، چیغې او نارې به مو وي خو داوریدلو به څوک نه وي. بیا به دا د یو دوو ورځو کار نه وي، که مو اعمال درحمت او قبول وړ نه وي نو ترقیامته به داعذاب مسلط وي. (الله تعالی مو دې ترې وساتي.آمین)

درسول الله صلی الله علیه وسلم په مبارک حدیث کې دي:

"انما القبر روضة من ریاض الجنة او حفرة من حفرة النار."

(قبر به یا دجنت له باغونو څخه یوه باغچه وي یا به ددوزخ له ژورو څخه یوه ژوره وي).

په یوه بل حدیث کې راځي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد وکړ: هره ورځ قبر ناري وهي:

"انا بیت الغربة انا بیت الواحدة ،انا بیت التراب،انا بیت الدود."

(یعني زه دنابلدتیا کور یم، زه دیوازیتوب جونګړه یم، زه دخاورو کور یم، زه دچنجو خزانه یم.)

وړاندې په همدې حدیث کې نبوي ارشاد دی:

کله چې دالله تعالی مؤمن بنده ښخ کړای شي،قبر یې په مینه استقبال کوي هغه قبر ورته دومره پراخ شي چې ترڅو یې

نظر لګیږي ، هغه پراخي او پراختیا ویني. خو که کوم بدکاره او بې ایمانه خښ کړای شي نو دقبر معامله ورسره دیوه دښمن په څیر وي، هغه ورته ډیر تنګ شي ، خواوشا ورسره داسې زهرجن ماران وي چې که یې یو ځمکه وچیچې هغه به بې وښو شي ، دشنه کولو صلاحیت به تري لري شي.

## چې په مړینه زموږ باور دی نو بیا ؟

اوس تاسو فکر وکړئ،موږ په یقیني توګه مرو او قبر ته ځو، په قبرکې چې له موږ سره کومه معامله کیږي، دهغه په هکله رسول الله صلی الله علیه وسلم خبر راکړی دی او موږ هم په هغه سم پوهیدلي یو.که مو ترقبر وروسته دځپلو بدوکړو، وړو له امله خدای مکړه دوزخ ته واستوي، هلته هم تر قبر په سخت عذاب زموږ باور دی. نو له قبر او اخرت څخه بې پروایې او په غفلت کې ژوند تیرول ، مړینه هیرول ، دلته دځو ورځو په عیش کې مست پاته کیدل، په خپل ځان باندې څومره ستر ظلم دی.

مشرانو او عزیزانو ! څه چې کولای شئ په دې ژوند کې یې وکړئ، همداوخت یې وکړئ . دامعلومه نه ده چې سباڅه مهال دمړینې ملایکه داجل پیغام راوړي اوتاسو به څه کولای نشي. په الله سوګند دلته چې زموږ ټول ژوند په غفلت کې تیر شي، هغه چې ورځ او شپه بلکې میاشتې او کلونه په موږ په غفلت تیریږي اوځي، هلته به دشیبې ،شیبې ارمان وي او که



موږ وغواړو چې ددې غفلت دتلافې لپاره مو یوه ورځ یا لږه موده دنیا ته بیرته را واستوي یا ددوه رکعته یا یوې سجدې وخت بیا راکړي یا یوازې دتوبې او استغفار لپاره یوازې یوه شیبه ددنیا ژوند راته وبخښل شي، نوموږ ته دافرصت نه راکوي زموږ غافل او مجرم خلکو به هغه مهال دډیري رسوایي او ستر غم وخت وي. قرآن کریم دهغه ذلت او حسرت تصویر داسې انځور کړی دی :

وَلَوْ تَرَى إِذِ الْمُجْرِمُونَ نَاكِسُو رُؤُوسِهِمْ عِندَ رَبِّهِمْ رَبَّنَا أَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَارْجِعْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا إِنَّا مُوقِنُونَ .(السجده -۱۲)

ژباړه :او چې ته ووینې چې مجرمان سرښکته دخپل رب په وړاندې ولاړ او وایې :ای زموږ ربه! موږ اوس ولیدل، او وامو وریدل ، نو موږ بیرته ولیږه ، موږ به ښه کارونه وکړو اوس مو پوخ باور راغلی دی.

خو داچې غوښتنه به غلطه او بې ځایه وي، نو نه اوریدله کیږي او څرګند به وویل شي :

فَذُوقُوا بِمَا نَسِيتُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هَذَا إِنَّا نَسِينَاكُمْ وَذُوقُوا عَذَابَ الْخُلْدِ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ . (السجده – ۱۴)

ژباړه :نو اوس یې خوند وڅکئ، ځکه چې تاسې له دې ورځې سره مخامخ کیدل هیر کړي وو.اوس موږ تاسي هیر کړي یې. دځپلو کړنو په بدل کې دتل پاتې عذاب خوند وڅکئ.

په قرآن کریم کې دي چې بل ځای به وویل شي :

حَتَّى إِذَا جَاءَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ رَبِّ ارْجِعُونِ .(المؤمنون، ۹۹)

ددي آیاتونو مطلب دادی چې دا مجرمین او هغوی چې خدای یې هیر کړی ؤ کله وروباندي مړینه راشي ، دخپلو بدیو او غفلت پایلې وګوري نو داګړ بړ پیل کړي چې ، ای الله! دڅه مهال لپاره موږ بیا دنیا ته واستوه ، هغه چې موږ پریښودله او ترې راغلو ترڅو ښه کړه وړه وکړو. خو داسې به هیڅکله هم ونشي. دابه هسي ددوی چیغې وي، دقیامت تر ورځې به هغوی دبرزخ په عالم کې پاته شي ، هلته به دخپلو کړو، وړو خوند څکي .کله چې دقیامت وخت راشي او دصور شپیلۍ پو کړای شي . دحشر اونشر دوهم عالم ودریږي په هغې ورځ اړیکې سره وشلیږي، کوم عزیز او دوست ورسره پاته نشي، نه یې څوک د کومې خبري پوښتنه وکړي، هسې به پریکړه وشي چې په کومه پله کې دایمان او ښېګنو درنښت وي، هغه به ژغورلي وي، کامیاب به هغوی وي، په کومو پلو کې چې داوزن نه وي یعني د ریښتني ایمان او غوره اعمالو له شتمني څخه خالي وي ، له دې نړۍ څخه تش لاس تللي وي، هغوی به هلته ډیر په زیان کې وي ، هغوی ته به دوزخ وي هلته به پاته وي . ددوزخ اور به یې مخونه سوزوي، صورتونه به یې ورته خرابوي اودلیدلو وړ به نه وي.

*******

*****



## له غفلت څخه راویښ شئ

الله تعالی په بیا ، بیا اعلان کړی دی ، څوک چې څه کوي ددې نړۍ په ژوند کې دي وکړي تر دې وروسته به چاته دعمل مهلت پیدا نشي.

نو اې دخدای بندګانو! دژوند دامهلت چې دایې هم معلوم نه دي چې تر څه وخته به وي غنمیت وګڼئ،قدر او ارزښت یې وپیژنئ، که تر اوسه درباندې وخت په غفلت کې تیر شوی دی، له اوس څخه ویښ شئ ، داخرت او دهغه دژوند لپاره چې ریښتونی ژوند دی تیاري ونیسي .

زما مطلب دا نه دی چې تاسو له دنیا او دهغې له شیانو څخه بیل شئ ، دفقر تغر وغوړوئ ، په ځنګل کې کښینئ ، کور او اولاد پریږدئ. یوازې تسبیح وواياست.نه،نه دشریعت غوښتنه دانده ، نه دخدای درضا او داخرت دسمولو لپاره ددې اړتیا ده. الله تعالی له موږ څخه دومره غواړي چې دهغه په را استول شویو او درسول الله صلی الله علیه وسلم په راوړل شویو لارښونو کې ژوند وکړو، زموږ په زړونو کې ایمان وي، کړه وړه مو نیک وي، موږ ددنیا ټول ضروري کارونه وکړو خو دالهي احکامو پابندي پکې وي.

وروڼو! دادنیا دمؤمن لپاره هم ده اودکافر لپاره هم ، خو توپیر پکې دادی چې مؤمن دالهي احکامو پابند وي او په دنیا کې تصرف کوي او کافرله دې پابندۍ پرته پکې لتاړ دی.

دالله تعالی درضا او داخرت دنجات اوفلاح لپاره دي ته ضرورت نشته چې تاسو بالکل تارک الدنیا اوسئ؛ یوازې ددې ضرورت دی چې څه کوئ، هغه دالله تعالی دقانون په دننه کې کوئ او دایوازې په لمانځه اوروژه کې نه دي، بلکې په خوړلو څښلو،تجارت او راکړه ورکړه کې ، له خپلو مشرانو او وړوخپلوانواو دوستانو ،خپلوګاونډیانو،عامو انسانانو سره په معامله کې ، لنډه داچې دژوند په هره څانګه کې دالله تعالی داحکامو او دهغه دلاربنوونومتابعت وکړئ.بس همدا داسلام حقیقت دی چې وربانديي داخروي نجات او د الهي رضا دارومدار وربانديي ولاړ دی.

## دغفلت دلرې کولو طریقه

زه پوهیږم او دامنم چې الحمدلله زموږ په زړونو کې ایمان شته ، خو څه کمې چې سته او ربښتیا هم ډیر کمښت دی، ددې سبب هغه غفلت دی چې زموږ په زړونو کې دی اودهغه له امله نه دخدای له نیولو او نه یې هم له محاسبې څخه څه راته په یاد راځي او نه موږ داخرت فکر مشغول کړي یو. نوترټولو لومړی او تر ټولو سترکار زموږ دغفلت زایلول او له منځه وړل دي ، دآخرت لور ته زړونه متوجه کول دي. داغفلت لرې کیدلای شي، فقط په وار وار سره دمړینې اوترمړینې وروسته دقبر، حشر او نشر او په آخرت کې د را پیښیدونکو پیښو په یادولوسره کیږي. نو زه تاسو ټولو جنابانو ته ،هره یوه ته بیل



، بیل عرض کوم چې ډیر نه، په شپه او ورځ کې لږ تر لږه یوځل ضرور داسې وکړل شي چې هغه مهال په ډیره توجه دافکر وشي چې، یوه ورځ به موږ هم ضرور همداسې مرو، لکه نور چې وینو. نو پام وکړئ هغه وخت به څومره سخت وي، چې په قبر کې مو کښیږدي،څه حال به مووي،ترقیامته به څه راباندي تیریږي،بیا به دحساب اوکتاب په مهال چې زموږ دګناهونو فهرست زموږ په وړاندي وي او زموږ په خلاف زموږ لاسونه شاهدي ووایې ، زموږ به څرنګه رسوایې وي اوکه موږ د بخښلوړ نه وو او دوزخ ته واچول شو هلته به مو حال څه وي.

همداسې په دې فکر کې چې په زړه کې دخدای ویره پیدا کړي ورسره دخپلو ورځنیو ښو او بدو اعمالو محاسبه وکړي. په دې توګه به په داسې کولو سره غفلت لرې شي، خدای دې وکړي چې یو وخت داسې کیفیت پیدا سي چې دهرکار په کولو په زړه کې دافکر پیدا شي چې، آیا په دې سره الله راضي کیږي او که دالله دنارضایتي کار دی؟

دداسې کیفیت نوم تقوی اوخشیة الله دی چې دټولو نیکمرغیو بنسټ دی او دا دولایت مقام دی .بیا به مو له مړینې څخه کومه ویره او تر هغه وروسته په راتلونکو مراحلو کې کوم زیان او اذیت نه وي ،بلکې په خوشحالۍ سره به دمړینې استقبال کیږي اوپه هره مرحله کې به دالله تعالی فرشتې دالله تعالی زیري درکوي ، تاسو به ډاډمن کوي او

درته مبارک شه به وو ايي: أَلا إِنَّ أَوْلِيَاءَ اللَّهِ لاَ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَ هُمْ يَحْزَنُونَ . الَّذِينَ آمَنُواْ وَكَانُواْ يَتَّقُونَ . لَهُمُ الْبُشْرَى فِي الْحَياةِ الدُّنْيَا وَفِي الآخِرَةِ لاَ تَبْدِيلَ لِكَلِمَاتِ اللَّهِ ذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ .(يونس ٦٢ – ٦۴)

ژباړه: واورئ! دالله په دوستانو نه ډار شته او نه به غمجن کيږي. دوی همهغه دي چې ايمان يې راوړئ اوله الله څخه ډاريږي. په دنيا او آخرت کې دهغوی لپاره دخوښې زيری دی. دالله پاک خبر اوړي راوړي نه، او بس همدا ډيره لويه کاميابي ده.

په ځينې روايتونوکې راځي چې کله دمړينې ملايکه کوم مؤمن ، صادق او نيک بنده ته راشي او روح يې اخلي نو لومړی ورته وايي : " لاتخف مما انت قادم عليه" يعني هغه بل عالم ته چې ځي ، هلته ستا لپاره راحت او سوکالي ده . په دې مړينه به ستا ټول وحشت او ويره ختمه شي. بيا ملايکه ورته وايي : "لاتحزن على الدنيا ولا على اهلها وابشر بالجنة"

يعني ددنيا او ددنيا اهل چې ستا خپلوان او عزيزان دي، هغه چې درڅخه پاته کيږي، دهغوی لپاره غم مکوه، خوشحاله اوسه چې ددنيا بدل جنت او ددنيا داهل بدل به دجنت له اهل څخه به ستا په واسط پاته شي، ته مړکيدونکی په خوشحالي له دنيا څخه تللو ته چمتو شه.

په ځينې رواياتوکې راځي، هغه صالح بنده ته چې له الله تعالی



سره يې زړه لګيدلي وي، دمړينې ملايکه راشي نولومړی دالله له لوري ورته سلام رسوي او ورته وايي :

رب يقرء ک السلام – ستا رب په تا سلام وايي.

اوس تاسو پوهيدلای شئ چې کله دمړينې فرشته دا ډول پيغامونه کوم نيک مرغه بنده ته ورسوي، هغه به څومره خوشحاله وي او څرنګه په بشاشه او غوړيدلی څهره به له دې نړۍ څخه ځي.

دالله تعالی نيک بندګانو ته تر مړينې وروسته پيښبو په اړه قرآن کريم دازيری اوروي :

يَا أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ . ارْجِعِي إِلَى رَبِّكِ رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً . فَادْخُلِي فِي عِبَادِي. وَادْخُلِي جَنَّتِي . (الفجر ۲۷ – ۳۰)

جنابانو ! دالله تعالی دا انعامونه او دملايکو دا بشارتونه حاصلول زموږ هريوه لپاره شوني دي ، شرط يوازې دا دی چې موږ دا اوسنی دغفلت حالت لرې کړو ، دالله تعالی څخه ويره اوتقوی په ځان کې پيدا کړو او بيا خپل ژوند دهغه له لارښوونو سره برابر تير کړو .

يو عارف ښه وايي : " درته ياد دي چې کله تا په دې دنيا لومړنی قدم کښيښود ، کورنۍ دي خوشحالي کوله خو تا ژړل اوس په دنيا کې داسې ژوند وکړه چې کله له دې نړۍ څخه لاړ شې ، ټول درپسې ژاړي خو ته خوشحاله لاړ شې ګواکې له قيد څخه خلاصيږې او خپل کورته ځې."

دابن جریر (رح) په تفسیر کې یو روایت دی: کله چې یو صالح مؤمن شخص ته د مرګ فرشته راشي نو لو مړی ورته وایې: "زه تا راسره بوزم او که دې په دې نړۍ کې پریږدم؟" هغه ورته وایې ته ما دلته په پریشانیو او مصیبتونو کې پریښودل غواړي. قدموني الی الله تعالی – ما په بیړه د الله لور ته بوزه.

ځینې داړمن کسان دامهال له دې کبله هم خوشحاله وي چې اوس به موږ هغه عالم ته رسیږو چې هغه ته رسول الله صلی الله علیه وسلم او دهغه نور اصحاب او پخواني انبیاء پخوا لا تللي وي. هلته به انشاء الله دهغو جنابانو زیارت او لیدل کتل را په برخه شي. لکه په شفاء دقاضي عیاض کې چې منقول دي: دبلال رضی الله عنه دوفات وخت چې راغی، د هغه دمیرمنې له خولې ووتل: (واحزناه) یعني های څومره دغم وخت دی. بلال رضی الله عنه سمدستې وویل: نه، نه! واطرباه غدا القي الاحبته محمداً وحزبه.

ډیر د خوشحالي ځای دی، زه به سبا انشاء الله دخپلو تللو دوستانو یعني رسول الله (صلی الله علیه وسلم) او دهغه دملګرو ملاقات وکړم.

خو دا کیفیت او داشتمنې به هغه مهال حاصلیږي چې موږ ورته ځان وړ وګرځوو، که موږ په داسې غفلت کې ژوند تیر کړو، دآخرت له محاسبې څخه بې پرواشو، دشیطان په لاره لاړشو هغه چې زموږ عام حال دی، نو موږ لره مصیبت دی او غم دی غم.



## څه پوهیږو که داوږځ دژوند وروستنۍ ورځ وي؟

موږ ډیر په دې غلطۍ کې یو چې ښه ژوند وکړو او کله چې مړینه راشي توبه به وکړو، الله تعالی غفور او رحیم دی. خو دا یاد ولرئ چې دا شیطاني وسوسې دي. یو خو دا چې څوک خبر دي چې د مړینې وخت راشي، ایا دتوبې وخت به هم پیدا شي. ورسره دا چې دتوبې قبول او نه قبول قانون په څرګنده په قرآن کریم کې بیان شوی دی چې دتوبې منل او نه منل دهغو کسانو په هکله دي چې په ناپوهې سره بدکارونه وکړي او کښینې بیا ژر دزړه له کومې توبه وکاږي. خو هغه خلک چې ټول عمر دتوبې په بې باکې کې ګناه کوي چې مرګ ته ورنژدې شي بیا توبه کوي، په داسې بې پروایو کې تو به هیڅ هم نه ده. قرآن کریم په خورا څرګندو تورو اعلان کړی دی: إِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللَّهِ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السُّوءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ يَتُوبُونَ مِن قَرِيبٍ فَأُولَـٰئِكَ يَتُوبُ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيماً حَكِيماً. وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ حَتَّى إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ إِنِّي تُبْتُ الآنَ. (النساء ۱۷-۱۸)

ژباړه: الله پاک یوازې دهغو خلکو توبه مني چې په ناپوهۍ سره بدکار وکړي او بې له درنګه ترې توبه وباسي نو دهمدغو خلکو توبه الله پاک مني، او الله پاک په هرڅه ښه پوه او دحکمت څښتن دی. خو دهغو کسانو توبه نشته چې دمرګ تر غرغرو بد کارونه کوي او چې مرګ ووینې وایې اوس مې په ریښتیا توبه ده.

داهم چاته معلومه نه ده چې مړینې ته څومره وخت پاته دی، څه پته ده چې داورځ دژوند وروستنۍ ورځ او داشپه دژوند وروستنۍ شپه وي. همدا موږ او تاسو اورو چې فلانی صاحب ښه روغ ناست وُ ناڅاپه یې زړه ودرید او په دوو دقیقو کې ختم شو.

په هرحال هره ورځ بلکې هره شیبه دتوبې او استغفار وروستنۍ مهلت وګڼل شي او ژر تر ژره له الله تعالی سره خپله معامله پاکه شي. کوم وخت چې په غفلت تیر شوی او کوم بدکارونه چې په دې غفلت کې راڅخه شوي دي، دهغوی په هکله په پاک او عاجزه زړه له الله تعالی څخه بخښنه وغواړو او دبیا لپاره په بشپړ عزم ددې امر منلو وعده وکړو او ورته دمغفرت او رحمت هیله ولرو. که زموږ داتوبه، دامعافي غوښتل له پاک زړه څخه وي نو په یقین سره به زموږ وړاندې ګناهونه وبخښل شي. په حدیث شریف کې دي :

التائب من الذنب كمن لا ذنب له.

یعني له ګناه څخه تر توبه کولو وروسته انسان بالکل بې ګناه غوندې وي. بلکې په یوه حدیث شریف کې راځي :

کیوم ولدته امه " یعني تر ریښتوني توبه کولو وروسته انسان له ګناهونو څخه داسې پاکیږي لکه هغه چې د زیږیدلو په مهال بې ګناه دنیا ته راغلي دی.



په قرآن کریم کې له یوې اشارې څخه داسې معلومیږي چې دتوبه کوونکي پخواني ګناوې هم په نیکیو بدلیږي. په سوره فرقان کې یو آیت دی :

إِلَّا مَن تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا فَأُولَٰئِكَ يُبَدِّلُ اللَّهُ سَيِّئَاتِهِمْ حَسَنَاتٍ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا.(الفرقان-۷۰)

له دې آیت څخه معلومیږي، هغه نیک مرغه خلک چې ریښتوني توبه وکړي، پاته ژوند په ریښتوني او ښو کړو وړو سره تیرکړي نو دهغه ګناهونه هم الله پاک په نیکې بدل ورکوي. الله اکبر! داده درحمت کرشمه.

خو داسې فکر کول چې یوازې په ژبه داویل چې زما توبه ده، یا د "استغفرالله ربي من کل ذنب واتوب الیه." په ویلو به مستحق وګرځي، نه هیڅکله نه.

دتوبې حقیقت دادی چې په تیرو غلطیو او ګناهونو له زړه پیښمانه وي او دبیا لپاره په حتمي توګه داپریکړه وشي چې بیا به داغلطي او ګناه نکوي.

که بیاهم دبشري کمزوري له امله هغه خطا وکړل شي بیا دې هغسې توبه وکړل شي، الله تعالی بخښوونکی او رحمت کوونکی دی.

په هرحال دتوبې په مهال په زړه کې پښیماني او په پخوانیو غلطیو خفګان او دبیا لپاره له ګناهونو څخه ځان ساتل ضروري دی. له دې پرته که په ژبه زرځله هم توبه وویله شي ګټه نه ورکوي.

ښه یاد ولرئ ، انسان هر چاته دوکه ورکولای شي ، دځپل ځان په غولو لو کې هم اخته کیدلای شي، خو الله ته هیڅکله هم دوکه ورکولای نشي،هغه علیم بذات الصدورذات دی، ښه پوهیږي چې ستا توبه هسي په ژبه ده او که له زړه څخه هم ده.

اوس زه داوینا پای ته رسوم او په پای کې له الله تعالی څخه دځپلو ګناهونو معافي غواړم او تاسو ته هم الله تعالی ته دمغفرت او رحمت دعا کوم. تاسو هم ،ځان ته او ماته داسي دعا وکړئ . دخدای رحمت ته دسپارلولپاره موږ دا د شپې مهال دلته را غونډ شوي یو.

(تردې وروسته په دعااواستغفارویلوداسلسله ختمه شوه.)

## مړینه څوک نه پریږدي

که ستاسو اړیکي پراخي هم نه وي بیا هم تر اوسه څومره دوستانو مو ستاسو په وړاندي له دې نړۍ څخه سفرکړی دی. څرنګه جوړ او ځواکمن ځوانان ، څرنګه سپورت کوونکی ، پهلوانان،څرنګه کشران ، څرنګه واړه ماشومان چې په خیال کې یې هم مړینه نه راتله ، په کتلو ، کتلو لاړل . نوموتي علماء چې دعلم او فضل شهرت یې فضا نیولی وه ، وتلي لیکوالان چې دهغوی دقلم یوې ، یوې لیکي دشوق اوعقیدي سترګي رڼولي، دقومونو مشهور مشران چې دهر قدم نښې ته یې په کروړونو متعلقین منتظر پاته کیدل ، ددین سپیڅلي مشران چې تقوی یې دبشریت ویاړ او نازوه ، ځواکمنان چې درستم



او سهراب نومونه یې روښانه کول ...

مینه ناک میړونه ، ترځان تیري میرمنې، خوږې میندي، نیک مرغه زامن ، خدمت کوونکي لوڼې ، خواږه دوستان ، ددې ټولو دیو په یو تللو دردناک او زړه دردوونکي مثالونه ډیر ستاسو تر نظر تیر شوي دي.

نوداځه دي چې ددي ټولوترلیدلو وروسته بیا هم په داسي غفلت او بي پروایې کې اوسئ.

په ژبه اقرار کوو چې دمړینې وخت معلوم نه دی،هرځای ، هروخت ، هره شیبه اوهره ګړۍ هرانسان ته دمړینې پیغام رسیدلای شي، خو ستاسو په زړه کې مړینه تاسو ته په زړه کې نژدي نه ده ، مړینه چې رانژدي شي نه ځوان پریږدي نه زوړ، نه ماشوم ، نه بد او نه نیک ، نه روغ او نه هم ناروغ.

دنورو مثالونو په کتلو تاسو هم داګلیه بشپړوي. خو له دې ګیلي څخه خپل ګران اوخوږ ځان مستثنی کوي. پلانونه جوړوي چې فلانۍ ازموینه به په فلاني کال تیروم ، تر فلاني کال پوري به دومره روپۍ جمع کوم ، په فلاني کال به هلک یا نجلۍ ته واده کوم ، په فلاني کال به له فلانۍ دندي څخه تقاعد اخلم . په فلاني کال به دومره جایداد اخلم ، په فلاني کال به له فلاني کار څخه دومره ګټه ترلاسه کوم. مړینه او بي وخته مړینه هروخت وینئ بیا هم په خپل ذهن کې هر وخت داسي طرحي جوړوئ...

## ستاسو به هم تعزیه (فاتحه) واخستله شي

هغه ورځ راتږدې کیدونکې ده چې تاسو به د بل په ځای کې نه بلکې نور به ستاسو په ځای کې ستاسو د تعزیې لپاره راغونډ وي، تاسو به بې حسه، بې حرکته، د واورې په څیر سوړ، پر تخته د پاسه د غسل لپاره پراته یاست.

کله چې تاسو په دې درجه بې وسه شئ چې په خپله بې وسې به ستاسو هم رحم راځي. کله چې ستاسو ماشومان ستاسو د رابللو لپاره ناري وهي او تاسو اشاره لا هم کولای نشئ. کله چې مو میرمن ستاسو په غم ژاړي، لیونتوب ته ورسیږي او تاسو یې یو څاڅکی اوښکه هم وچولای نشئ، کله چې مو مور او پلار ویش او واخ کوي او تاسو تسلا ورکولای نشي. کله چې ستاسو جسد په چارپایي کښېږدي او اوچت یې کړي، کله چې نور ستاسو د جنازې لمونځ کوي، کله چې تاسو په تنګ او تیاره کډي (قبر) کې کښېږدي او په زرګونو منه خاوره درباندې واچوي، ...



هغه وخت ژر راتلونکی دی، هغه شپه رارسیدونکې ده، چې ته په د خوشحالي مجلسونه، په خوشحاله محفلونو کې، رنګین او له خوند ډکو ناستو کې، په خپلو خنداګانو افسوس وکړې.

آیا یادیږي دي "مړینه!".

(مرحوم مولانا عبدالماجد دریاابادي، دصدق جدید لکهنو نه په منند.)
(۷ صفر المظفر ۱۳۹۷ هـ، ق ۲۸ جنوري ۱۹۷۷ م)

پای

ربنا فاغفرلنا ذنوبنا وکفرعنا سیاتنا وتوفنا مع الابرار.

محمد رفعت قاسمي د دیوبند خادم
۲۷ ذي قعده ۱۴۲۹ هـ ق
۲۷ نومبر ۲۰۰۸ د جمعې شپه

د ژباړې پای
عبدالله ګل ریان
د هجرت د نړۍ لالهانده ژوند
دیکشنبې ورځ ۱۴۳۱/۲/۲۳ هـ ق، ۱۳۸۸/۱۱/۱۷ هـ ش